

# د افغانستان کالنی

# د اطلاعاتو او کلتور وزارت

گڼه ٤١

مسوول مدیر: محمد صدیق سروری

اعضای مسلکی :
طورانشاه شهیم، آصفه مهر ، غلام‌سخی، نوراحمد ومحمد آصف.

دچنگابښ ٢٦- ١٣٥٣ - ١٣٥٤

# فهرست


| شماره | موضوع | صفحه |
| --- | --- | --- |
| ۱ـ | بیانیه ها، پیامها و مصاحبه‌های ښاغلی رئیس دولت وصدراعظم | |
| ۲ـ | ددولــت دښاغلــی رئیس اوصدراعظم سفرونه | ۸۹ |
| ۳ـ | مسافرتهای ښاغلی محمد نعیم‌نماینده خاص ښاغلی رئیس دولت وصدراعظم | ۱٤٦ |
| ٤ـ | ییك نگاه تاریخ افغانستان تاپایان دوره هوتکی هـــا | ۱٥٦ |
| ٥ـ | افغانستان درقرن ۱۹ | ۱۸۳ |
| ٦ـ | دافغانستان جغرافیی ته یـوه‌لنډه کتنه | ۲۰۲ |
| ۷ـ | مصورخپرونه از ۲۲٤ به‌بعد | |
| ۸ـ | فعالیت ها و اجراآت دولــت | ۲۲٥ |
| | صدارت عظمی: | |
| ۹ـ | وزارت امور خارجه | ۲٤٥ |
| ۱۰ـ | وزارت داخله | ۳۱٦ |
| ۱۱ـ | وزارت عدلیه | ۳٥۲ |
| ۱۲ـ | وزارت مالیه | ۳٦٦ |
| ۱۳ـ | وزارت معارف | ۳۸۲ |
| ۱٤ـ | ریاست پوهنتون کابل | ٤۰۰ |
| ۱٥ـ | وزارت تجارت | ٤۱۰ |
| ۱٦ـ | وزارت فواید عامه | ٤۲۰ |
| ۱۷ـ | وزارت اطلاعات وکلتور | ٤۲۹ |
| ۱۸ـ | وزارت مخابرات | ٤۷٦ |
| ۱۹ـ | وزارت صحیه | ٤۸۱ |
| ۲۰ـ | وزارت معادن وصنایع | ٤۷۸ |
| ۲۱ـ | وزارت زراعت | ٤۹٦ |

| شماره | موضوع | صفحه |
|---|---|---|


۲۲ـ وزارت پلان ۵۱۱

۲۳ـ ریاست افغانی سره میاشت ۵۱۵

۲٤ـ ریاست هـوانوردی ملکـی و توریـزم ۵۲۰

۲۵ـ ریاست بناروالی ۵۳٤

۲٦ـ ریاست المپیك ۵۳۷

۲۷ـ پروتوکولها ۵٤۲

۲۸ـ دپښتنواوبلوڅودملی خپلواکی‌بښونکی نهضت کرونولوژی ۵۸٤

۲۹ـ معرفی ولایات کشور ۷۱۰

۳۰ـ اخبار علمی ۷٦۳

۳۱ـ مصاحبه های بناغلی وحیـــدعبدالله معین سیاسی وزارت‌خارجه ۷۸۰

۳۲ـ جهان درسال ۱۳۵۳ ۷۹۲

۳۳ـ جهان در ربـع اول سال ۱۳۵٤ ۸۰۰

۳۳ـ شگفت های زمینه ادبیـــات‌امروز ۸۰۳

۳٤ـ موسیقی در افغانستان ۸۲۱

۳۵ـ ستاره شناسی ۸۳۳

۳٦ـ جوایز جهانی نوبل ۸٤۹

۳۷ـ پارهٔ ازاختراعات مهم جهان ۸٦۵

۳۸ـ کرونولوژی اخبار خارجی ۸۷۲

۳۹ـ دداخلی خبرونوکرونولوژی ۹۲۷

٤۰ـ بقیه پروتوکولهابعدازکرونولوژی

# سر یزه

په افغانستان کښي دانقلابي نظام ټینګیدوزمونږ ټولی اجتماعی موسسی دخلکو داکثریت په ګټه واړولی اوټولنی ته یې په نوی ډول:جوړیدو بنسټ کیښود.

داطلاعاتو اوکلتور وزارت چه ددغه اوښتون په محراق کښی واقع وو ، دانقلاب له هماغی لومړی ورځي څخه ترنن ورځي پوری ددولت اوعامه افکارو تر منځ دیوه استواره پله په څیرواقع شوی اودجمهوری دولت ټول لــوړهد فونه یی دټولنیز ارتباط دوسایلو لــه لاری دافغانستان دولس غوږونوته رسولی دی .

دکو ښښونو عمومی موخه دی ته متوجه ده، چه خلکوته دجمهوری دولت دترټولو اصیلو ارمانونو لاره روښانه کړو اودوی یی تل په جریان کښی وساتو اودخلکو دنظریو اوغوښتنو د متقابل انعکاس له لاری دکار مجریان دنویو اجتماعی بنسټونو دتشکل دعملیی په میسر کښی ودرؤو.

ددغه منظور په اساس دانقلاب دزمانی دوهمه کالنی چه په هغی کښی ددغه وزارت اودنورو اداری او اجتماعی تاسیساتو دهیلواوقدرتونو یوه برخه منعکسه شوی ده، دوطنوالوقضاوت ته وړاندی کوو ترڅو وګورو چه څه شوی دی اوڅنګه پری قضاوت کیږی؟

په پای کښی ټولو هغو کسانو،کارکوونکو، لیکوالو اوقلمی ملګروته کور ودانی وایم چه ددغی کالنی په ترتیب ، تدوین،چاپ اوخپرولو کښی یی دجمهوری هدفونو اوآرزوګانو سره سم زیار کاللی اومرسته یی کړی ده .

پوهاند ډاکترنوین داطلاعاتو اوکلتور وزیر

# بیانیه ها

# پیامها

# و مصاحبه های

# بناغلی محمد داود

# رئیس دولت و صدراعظم

# دجمهوری انقلاب دد وهمی کالیزی په مناسبت
# ددولت دنباغلی ریئس او صدراعظم وینا

## گرانو وطنوالو !

لوی خدای ته شکر کوم چه ماته ئی توفیق راوبا ښه چه پدغه نیکمرغه ساعت کی دافغانستان د ملی بیاژوند دوهمی کالیزی دبختوری نمانځنی د زړه دکومی مبارکی تاسو گرانو ملگرو ـ دافغانستان تاسو فداکار ارود او تاسو گرانو خویندو او ورونو ته چه دانقلاب له همغو لومړیو شیبو څخه موپه خلاصه اوتوده غیږمو ددغه ملی قیام تودهرکلی وکړ اوستاسی ملاتړ اوتائید سبب شو چه په تیرو دوو کلونو کی زمونږ ټولی گامی او پخوانی هیلی دعمل جا مه واغوندی در کړم ·

ددغه شان ورځی دبختور توب علت دادی چه زمونږ په هیواد کی دانقلابی نظام ټینگیدل ډیره ستره معنی لری ·

ښایی ددوه پنځوسم کال دچنگابن دشپږویشتمی نیټی دانقلاب بری زیات علتونه ولری خو تصور کوم چه دهغه خورا مهم علت دتیر نظام دیوه ملی هدف اوملی ایدیالوژی نه درلودل وو· ځکه تیر نظام څنگه چه د ودی د آهنگ په لاره کی دټولنی سترخنډ شوی ؤاو دا توان یی نه درلود زمونږ د ولس مادی او معنـــوی اړتیاوی تر سره کړی ،همدا وجه وه چه دتیر سیاسی مسلط نظام څخه دخلکو د اجتماعـی وجدان بیزاری په افغانستان کـی دجمهوری نظام دټینگیدو سبب شوه خودانقلابی کارسخت پړاود انقلاب له بری څخه وروسته پیل کیږی·

له یولاس نه بل لاس ته اوله یو نظام نه بل نظام ته د سیاسی قدرت ورتگ یقیناً سخت کـاردی خو له هغه څخه ډیرسخت دنمونی اوپه زړه پوری ټولنی مینځ ته راوړل دی چه باید دهراجتماعی نظام منطقی معلول وی ·مونږ باید معتقد ونه اوسوچه هرڅه مود چنگابن په ۲٦ سـرتـه رسولی دی دغه نیټه یواځی دبری په لــور زمونږ دولس دحرکت ټکی و· منتهی سم او اصولی ټکی خو باید دی ته پام وساتو چه زمونږ په مخ کی ډیری پریمانه ستونزی شته زمونږ لومړی ستونزه دایډ یالوژیك فقر څخه زمونږ دولس ژغورل دی مونږ په سلگونـــو کلونو کی دمنځنیو پیړیو دنظام تر اغیـزی لاندی خپله خوزنده قوه دلاسه ورکړیده اوتر هر څه دمخه مونږ دیوبــل تعمیر ته اړیو ، دخپل ولس دشخصیت تعمیر او دهمغه جوهر تعمیر ته چه زمونږ دژغورنی یووالی او طاقت یواځینی عامل دی ددی مقصد دپاره مونږ د افغانستان دولس دملی اوولسی انقلاب دتیوری تسوید او تدوین ته ضرورت لرو اودغه کار باید دټولنی دتکامل او دخلکو داجتماعی شعور ددرجی دتناسب دقانون په اساس وشی ځکه له انقلابی تجربی پرته اود بری د وسایلـو د تدارك نه پرته هر اقدام ناکامه کیږی او دغه هــدفــو نــه ، نه تــر ســره کیږ ی مگر دا چه ټول یاخه ناخه د خلکو اکثریـت

عملادافغانستان دملی ودانۍ رستاخیزته ورسوئ او گام په گام دخپلی ټولنی او ولس دطبیعت دپیژندنی له لاری دافغانستان دانقلاب تیوری تشخیص کړو اودهغی په تطبیق کی هلی ځلی وکړو ٠

لکه څنگه چه موبیا بیا ویلی بیاهم وایو چه یواځی په خبرو اجتماعی ستونزی نشی حل کیدی مونږ باید عملا ثابته کړو چه دخپل وطن سره مینه لرو ځکه زیات خلك له دی اوبواو خاوری سره مینه لری خود فداکاریءد ورکړی دپاره چمتو نه دی داسی چه بایدمونږ فداکاری وکړو دایمان او عقیدی دپاره فداکاری دعشق او هیلی دپاره فداکاری اود هر هغه څه دپاره فداکاری چه زمونږ دوطن دلوړتیا د پاره دقربانۍ وړدی ٠

زمونږ ټولنه دخپل شخصیت دژوندی کولو دپاره یوی انقلابی روزنی ته اړه لری خو زمونږ دخلکو اخلاقی، اجتماعی او معنوی انقلاب داجتماعی حالت له بدلون څخه پرته نه شی ترسره کیدای ٠

دافغانستان جمهوری دولت هلی ځلی کوی چه ددغه هیواد دوگړو ذهن دتیروخت داوړدو زړو او فاسدو سوابقو څخه پاك اوهغه له یوی ملی روحیی سره سم دیوی مترقی ټولنی داخلاقی او انسانی اصول سره دعصر او زمان سره سم آشنا کړی ٠

دتیرو پیړیوچه دوچ کلك تولید طریقه نور توان نلری چه دټولنی دفقیراو موروثی ژوند سطحه حتی په همغه پخوانی حال وساتی هغه افکار اواجتماعی موسسی چه غوښتی یی وی داستثمار له لاری گټه واخلی‌نشی کولی زمونږ په خلکو کی ځای ولری ځکه اوس دافغانستان جمهوری دولت په کلکه پدی لټه‌کی دی چه‌د ټولنی او ددولت تر مینځ درځ له مینځه یوسی او ددغو دوو اجتماعی پدیدو له ترکیب څخه دملی حاکمیت داعمالو دپاره یو واحد عنصر پیدا کړی ٠

همدا وجه ده چه داجتماعی اصلا حاتو د تطبیق په برخه کی دولت هلی ځلی کوی تل مبتکر و اوسی او ددی خاوری د حقیقی وطن پالو په وړاندی داجتماعی او اقتصادی عدالت دتطبیق په لاره کی زیار وباسی ٠

مونږ پخپل وطن کی زیات شیان لرودښه ژوندانه دپاره دافغا نستان دولس طبیعی شتمنی زمونږه ستره پانگه ده او مونږ کولی شو دپاملرنی وړدغو منابعو څخه دنوی او پخپل ځان باندی دمتکی افغانستان دجوړښت دپاره استفاده وکړو ٠

زمونږ دهیواد طبیعی زیرمی او منابع ورځ په ورځ دافغان ولس دروښانه سبادپاره زمونږ امیدونه تقویه کوی ٠

خو لکه څنگه چه علم ثابته کړیده ، له بده مرغه چه دکشف اودگټی اخیستو دپړاو ترمینځ زیات واټن دی ٠ جمهوری دولت له دغو منابعو څخه دچټکی او ممکنی استفادی د پاره دکورنیو انسانی طاقتونو په استخدام‌بر سیره د دوستو دولتونو بی قید او شرطه مرسته هم جلب کړیده دغه مرستی په‌اوسنی فرصت کی مونږ ته موقع را کوی چه په‌علمی لارو چارو خپلی پروژی او پلانونه مطا لعه او تنظیم کړو او دمشخصو دردونو دپاره مشخص علاجونه ولرو ٠

دولت به دوروستیو نه دمخکینیوستونزود پیژندنی له لاری پرمختیایی اوه کلن پلان داسی تنظیم او تطبیق کړی چه وکولی شی د ټولنی سملاسی اوضروری ستونزی تروسه‌وسه

لری‌کړی او دوروسته پاتی کیدو عوامل په چټکی سره له مینځه یوسی .

مونږ کوښښ کوو چه په ټولو مواردو کی زمونږ طرز تفکر او طرز العمل پخپله زمونږ د اجتماعی مقیاسونو سره سم وی او پدغه ټکی ټینگار دملی تنگ نظری ساری ندی .

زمونږدخلکودوطن پالنی اوناسیونالیزم محتوا انسانی او بی تعصبه ده او امید لرو په انسانی خدمت کی دگټو رسولو سبب شی .

دملی خپلواکی او ملی اقتصاد دټینگښت د پاره زمونږ مبارزی دنړی دآزادی غوښتونکو ولسونو دمبارزو منطقی دوام دی .

په هر صورت ناسیو نالیزم به په هر حال کی زمونږ د اجتماعی مناسباتو روح و ی او مونږ غواړو دخپلی ټولنی دغوښتنی اوایجاب سره سم دسبانی ټولنی دودانی دپاره دخپل منطقی اوملی حل لاری عنوان کړو .

## بهرنی سیاست :

گرانو وطنوالو! دافغانستان خارجی سیاست دنه انسلاك په اساساتو ، په بین المللی چارو کی په آزادقضاوت، په مثبتی او فعالی بیطرفی، دنړی له ټولو سوله دوستو هیوادو سره په روغه جوړه‌کی په گړژوند اوله‌هغوی سره په مثبتی اوگټوری همکاری ولاړدی .

دافغانستان جمهوریت د ملگرو ملتو د یووفاداراوفعال غړی دی دملگروملتو دموسسی دمنشور په پیروی دنړی اوسیمه ایزی سولی اوامنیت دساتنی اوټینگښت او دهیوادو تر مینځ دمثبتو اواغیزمنو همکاریو د زیاتوالی اوپراختیا په لاره کی هلی ځلی کوی .

دبین‌المللی مسألواوستونزوپه باب زمونږ دریغ ندی بدلشوی اوهمغه څه دی چه بیابیا په بین المللی ټولنو او غونډو کی د رسمی نمایندگانو له خوا څر گند شویدی .

مونږ پدی اصل کلکه اونه بدلیدونکی عقیده لروچه یوازی د سولی په تیوری او دامن او کراری په شرایطو کی هیوادونه کولی شی ملی لوړتیااودخپلو خلکو دهوساینی اوآرامی دوسایلو برابرولو ته ورسیږی .

افغانستان ته داسی څرگنده شویده چه په ننی کړکیچنه نړی‌کی دکړکیچنو اوکشالو د اوارولو اوکمښت اودنړی دهیوادوترمینځ دروابطو اوهمکاری دتقویی اوپراختیا او په نتیجه کی دسولی اوامنیت دساتنی اوټینگښت دپاره ښه لاره په صداقت سره دیوه دغه‌شان خارجی سیاست تعقیبول دی . اودهغه دتطبیق دپاره مونږ دټولو دوستوهیوادو سره دروابطو اوهمکاری دتقویی او پراخوالی او دغه راز ددوستو هیوادو له مشرانو سره په بیلوبیلو سویو دشخصی تماسونوپه بین‌المللی ټولنو کښی دفعالی برخی اخیستواوله بیلو بیلو هیوادو سره دموافقودلاسلیك دلاری هلی ځلی کړیدی .

دلیدنوکتنو اوددوستانه تماسونوپه نتیجه‌کی بریالی شو دعلاقی وړمسألو په‌باب دیوبل په دریځونو وپوهیږو اوپه بیلو بیلو برخوکی دگټورو همکاریو دپراختیا په باب موافقی ته ورسیږو .

هغه موافقی چه ددوستو هیوادوله بیلوبیلو مقاماتو سره په بیلوبیلو اقتصادی، تخنیکی اونوروبرخوکی شوی اوتفصیل یی پخپل وخت خپور شوی، د افغانستان دفعال اوسوله غوښتونکی سیاست یوه بله ښه ښکارنه بلله کیږی .

پدی ځایکی لازمه بولودافغانستان دخلکو په اقتصادی او اجتماعی پرمختیا کی دبرخی اخیستودپاره دټولو دوستو هیوادواوبین‌المللی موسسو دقیمتدارو همکاریو او مرستوله امله چه پدغه لاره‌کی‌یی دجمهوری نظام دهراړخیزو هلوځلو سره مرسته کړی دافغانستان ددولت اوخلکو له خوا دزړه دکومی کورودانی ووایم.

یواځنی هیواد چه له بده مرغه تراوسه پوری دهلوځلوسره نه‌یوبریالی‌شوی‌لکه‌چه‌لازمه ده‌له‌هغه‌سره ددوستی‌اوهمکاری‌روابط ټینګ‌کړو پاکستان دی اوهغه یواځنی ځنډچه پدی لاره کښی پروت دی اودهغه په‌له‌منځه وړلوکښی نه یوبریالی شوی زمونږ دپښتنواو بلوڅـو ورونو دحقه حقوقو دثابتولو په باره کښـی له پاکستان سره زمونږ سیاسی اختلاف دی.

په سوله ایزووسایلو اودخبـرولـه لاری د کړکیچونو په حل باندی دعقیدی له مخـی مو تـل هڅـه کړیده چه دپاکستان سره زمونږ دغه یواځنی سیاسی مشکل دحل داسی لار پیدا کړی چه زمونږ پښتنو اوبلوڅو ورونو اوددوی دملی مشرانو دمنلو اوخوښی وړشی پدی باندی په پوهیدلو سره چه ددی قضیی په باب دافغانستان په دریځ‌کښی دپاکستان له خواهیڅ ډول لمسون ورانکاری او حتـی ګواښ بدلون نشی راوستلی مونږ په پوره ښه نیت سره خپلی دی هلی ځلی ته چـه ددی قضیی په عادلانه او شرافتمندانه حـل مقصد وی دوام ورکړو.

دبشری ټولنو دسیاسی او اجتماعی بدلونونو ډیر ستر علت په اقتصادی مسایلوکی پلټلی شو.

نو ځکه پدی موضوع کی غوراو ډیره کلکه پاملرنه دیوه ملی او انقلابی دولت ډیره مهمه وظیفه بلل کیږی .

دچنګابن ٢٦ نیټه نه یواځی له یوه نظام نه بل نظام ته دسیاسی قدرت انتقال بلل کیدی شی بلکه باید د جمهوری ـاقتصادی‌او اجتماعی نظام دیوه بدلون مبدأ وګڼله شی .

ځکه ددی نیټی نه وروسته دی چه داساسی او بنیادی اصلاحاتو دعملی‌کولو او داقتصادی او اجتماعی ژوند دهر اړخیزی لوړتیا په‌مقصد مناسبه زمینه اوشرایط برابر شوی او یـا د برابر یدو په حال‌کی دی اوس په هیوادکی دجمهوری نظام دټینګیدو دوه کاله کیږی پدی موده کی دولت داساسی او بنیادی اصلاحاتو دعملی کولو او تطبیق په لاره کی دهلوځلو او کوښښ نه ډډه نده کړی . له نیکمرغه دغه ټولی هلی‌ځلی چه شویدی بی ګټی ندی پاتی شوی اود هغو نتیجی په اقتصادی او اجتماعی بیلوبیلو برخو کی بی اغیزی ندی او هیله‌لرم د هغو عملی او ګټوری نتیجی په راتلونکـی وخت کښی ځرګندی شی .

لکه چه زمونږ هیواد وال پوهیږی د١٣٥٢ کال د چنګابن د٢٦ نیټی دقیام په درشل‌کی هیواد له اقتصادی او اجتماعی لحاظه په‌ناوړه حالت او نا مطلوبو شرایطو کی ؤ. دهیواد له طبیعی منابعونه دخلکو داصلاح او دژوند د ښه والی په لاره‌کی زیاته استفاده‌ونه شوه ـ په بل عبارت‌که څه هم په ښکاره د پـلان جوړولوسیستم له دغو منابعو څخه داستفادی دتنظیم په غرض منل شوی وځو په عملی‌ډول دا سیستـم د یـو شمیـر د نفـو ذ دخاوندانو د هیلو او آرزوګـانو تابع شوی او ددغه شمیر ګټه دپـلان سطحه‌کی دهغی‌پرګنی

له کلمی نه پورته وه چه زمونږ دهیواد دخلکو اکثریت یی تشکیلوی . ددغه اصل په اتکاء د عامه ګټو دترسره کیدو په مقصد دکوم مثبت کار هیله نشوه کیدی او پدی لاره کی د ملی ګټو دایډیالوژی په نسبت لږ ګامونه پورته کیدل . ددغوعواملواوداقتصادی اداری سیستم نه دنه پاملرنی له مخی د هیواد داقتصادی حالت ګډوډ شوله دغو حالاتو اوشرایطو سره مبارزه په لاس کی لرلوو سایلو او امکاناتو سره آسان کار نه ؤاو نه دی . سره لدی دولت ورو ورو اوپه کرار کرار په اقتصادی او اجتماعی برخوکی داساسی اوبنیادی اصلاحاتو په لاره کی ګامونه پورته کړی او پورته کوی یی لکه چه دامنیت له ټینګولوو روسته چه د هر نظام حیاتی ضرورت دی د ټولونه مخکی دهغو روابطو د تنظیم په غرض چه دهیواد د اقتصادی او اجتماعی ژوندانه د ودی په برخه کی ګټوری اغیزه لری یو شمیر قوانینو او اساسنامو په جوړولو اوطرح کولولاس پوری کړ . لکه چه له هغو مهمو قوانینو څخه چه د ګمرکاتو ـتجارت ـدولتی تصدیو د خصوصی بانګو اچولو او نورو دتنظیم په برخه کی وضع شول یو هم دبانکو نود قانون تدوین دی چه اصل هدف اومقصدیی دخلکو داکثریت په ګټه دیوه سالم اقتصاد مینځ ته راوړل دی .

ځکه لکه چه ګران هیواد وال پوهیږی د خصوصی بانکو نو دواځینی هدف زیاتره دیو محدود شمیر وګړو لرونکو په ګټه دزیاتی فایدی تر لاسه کول دی او همدغه راز دهغوفعالیت په هغی برخی ولاړدی چه له هغی څخه زیانه شخصی ګټه ددوی دپاره متصوره شی . خو برعکس ملی بانکونه یواځی دمطلقی ګټی دلاس ته راوړلو دپاره فعالیت نه کوی بلکه د هغود پر اختیا لوری دعامه اړتیا ودواقعی تامین دپاره ټولی عامی ساحی دی . ددغه اصل له مخی جمهوری دولت د افغانستان دخلکو داکثریت د هوسایینی ارتیکمرغی دترسرکولو او داجتماعی عدالت دپراختیا دپه نظرکی نیولوسره دبانکونو دتامین په جوړولوکی دهغو دملی کیدوپه مقصد اقدام وکړ . اوټینګه هیله ده چه پخپل دغه اقدام سره وکړی شی دبانکونو دفعالیت ساحه دافغانستان دخلکو په ملاتړ په هغوټولو برخو کی چه هغوته دخلکو اړتیاوی احساس کیږی پراخه کړی .

ددغو اقداماتوسره په یووخت کی دخصوصی بانګی اچولو دپاره ددی وخت برابرشو چه په اقتصادی پراختیاکی زیاته بر خــه واخلی لکه چه په هیوادکی دجمهوری نظام دټینګیدوله پیله ۲۲ خصوصی پروژوته لومړنی منظوری ورکړی شوی چه دغه شمیر تقریبا دهغوټولو پروژو په سلوکی یوویشت کیږی چه په هیواد کی دانفرادی پانګی اچولودوی ددوری دپیل څخه تراوسه عملی شوی دی چه داپخپله په جمهوری دولت باندی دخلکو دباور څرګندوی دی .

دغه راز دهغو تعهد اتوله مخی چه ورکړی شوی دی دنوی نظام دټینګښت له وخت نه تر اوسه څه دپاسه پنځه زره څــلور سوه مستحقوبی ځمکواوکوچیو کورنیو ته په دولتی

پروژو کی څمکه ویشل شویده او دغه کار د
هغه په بنیادی او اساسی بڼه دخلکودریفورم
په قالب کی دوام کوی .

هغه اصلاحات چه د مالیاتو او گمرکی تعرفو
او نورو دراټولولوپه طرزکی راغلی ددی‌سبب
شوی چه ددولت عایدات دداخلی منابعوڅخه
مخ په زیاتیدو شی او ددغه اصل له مخــــی
اټکل کیږی چه په روان کال کی ،دتیر کال
په نسبت له دی لاری نه ددولت په عایداتو
په سلو کی ٤٧ زیاتوالی راشی پداسی‌حال
کی چه دغه رقم په ١٣٥٢ کال‌کی د ١٣٥١
کال په نسبت په سلو کی له اتلسو څخــه
نه زیاتیده .

په روان کال کی په انکشافی ساحه کـــی
ددولت ټوله پانگه اچول دتیر کال په نسبت
په سلو کی یوسلو یوولس زیات دی . چه
دا پخپل‌وار په خوورووستیو کلونو کی‌ساری
نلری، د١٣٥٤ کال اټکل ښیی چــه د عــادی
لگښتونوپه اندازه‌کی هم دتیرکال په‌نسبت په
سلوکی څه دپاسه ٣٨زیاتوالی راغلی او دغه
زیاتوالی ټول دعامه هوساینی او نیکمرغی په
غرض‌دی. څکه لکه‌چه‌پوهیږوپه‌نړی‌کی دصنعتی
پیداواراو استهلاکی موادو دبیولوړیدو زمونږ
په شان دهیوادونو دژوندانه اودودی په‌آهنگ
باندی ناوړه اغیزه‌کړی او کوی یی دخلکو په
ژوند باندی ددغه حالت دناوړه اغیزو دمخنیوی
دپاره جمهوری دولــت په روان کــال کــــی
تصمیم ونیو دعادی لگښتو نو دلیاری دنفتو د
سبسیدی په تمویل او دمامورینو او اجیرانو
اوکارگرانو اونورو دماکولاتو تفاوت ومنی .
دولت په ١٣٥٤ کال کی د١٣٥١ کال په‌نسبت
په سلوکی ٤٦ـاعشاریه پنځه زیاتی پیسی
دسبسیدی دپاره تخصیص ورکړی دی .

همدغه راز دهغو تدبیرونو له‌مخی چه نیول
شوی په دغودووکلونو کـــی دباندنی تجارت
ددوران اندازه پرله پسی مخ په‌زیاتیدووه او
اټکل کیږی چه په‌روان کال کی بیاهم ددغـه
دوران اندازه په سلوکی د ١١ په شاوخـوا
کی زیاته‌شی. په‌عین‌حال‌کی دخارجی اسعارو
دسپمااودتادیاتو دبیلانس دتقویی دپاره په‌دی
وروستیووختونوکی تصمیم ونیول‌شوچه څوقلمه
غیرضروری اولوکس وارداتی مالونه منع کړی
شی .

دتادیاتو دبیلانس دحالت دټینگښت پــــه
برخه کی زمونږ دریځ تر کومه ځایــه چـــه
زمونږ په کورنیو اقتصادی عواملو پوری اړه
پیداکوی دکورنیو صنایعو پیاوړی کــولو د
وارداتو بدلول دصادراتو دلاپراخوامکاناتو پلټل
دغیر ضروری لگښتونو کمول دزراعتی صادراتی
مالونو وده دارزښت لوړول دکورنیوبیوداندازی
ساتل دپولی عرضی او نورو توازن دی چه‌د
هریوی مسالی په باب یی لازم تدبیرونه نیول
شوی اواوس‌اوس دغه هدفونوته درسیدو په
لاره کی زمونږ قدرت او امکانات په کاراچول
کیږی .زه نه غواړم دهغو اجراآتود جزئیاتوپه
شاوخوا کی توضیحات ورکړم چه‌ددغو مسالو
په چوکاټ‌کی شویدی څکه دهغومفصل اجراآت
دپلان دوزیر په واسطه گـرانو هیوادوالو ته
او رول کیږی .څو کوم شی چه دپورتنیو

مسالو په ارتباط په تیرو دوو کلونو کی د افغا نستان داقتصادی او اجتماعی ژواندانه د پراختیاپه لاره‌کی شویدی اویابه په‌راتلونکی وخت‌کی وشی غواړم په ډیر لنډ ډول یی یاد کړم.

دهیواد داقتصادی حالت دښه والی په‌غرض په تیرو دوو کلونو کی په اقتصادی بیلوبیلو برخو کی ګټور اقدامات‌شویدی لکه چه دکرنی او مالداری په برخه‌کی چه لدی لیاری دملی عایداتو زیاته برخه لاس ته راځی په لاند ی ډول دزراعتی تولیداتو په لوړولوکی انکشافی فعالیتونه شویدی :

په ۱۳۵۱ کـــال کـی د غنمو تولید چـه ټول ددوو ملیونو پنځو سوو زرو ټنـو تـه رسیده په ۱۳۵۲ او ۱۳۵۳ کلونو کـی درقم په ترتیـــب دوو ملیونو او اووسو شپیتـو زروټنواودوه ملیونه اته سوه اوه شپیته زرو ټنـــو تـــه ر سیـــد ل اټکـــل کیـــږ ی چه‌دغه اندازه‌په ۱۳۵٤کال کی‌دوو ملیونو نهه سوو زروټنوته ورسیږی .

په ۱۳۵۱ کال کی دوریجو تولید دری‌سوه پنځوس زره ټنه کیده په ۱۳۵۳ کال کی یی اندازه دری سوو شپیتو زرو ټنوته ورسیده په ۱۳۵۱کال‌کی دغوړیو لرونکو نباتاتوتولید څلور دیرش زرو ټنوته ورسیده خوپه ۱۳۵۲ او۱۳۵۳کلونوکی په ترتیب سره دهغو دتولید اندازه اته دیرشو او څلویښت زرو ټنو تـه رسیدلی ده د۱۳۵۱ کل په نسبت دمیوی په تولید کی په ۱۳۵۲ او ۱۳۵۳ کلونو کـی په ترتیب سره په سلو کی پنځه او په سلوکی اته زیاتوالی راغلی دی ـپه ۱۳۵۱ کال کی دپومبی تولید له‌اته پنځوسوزرو ټنونه پـــه ۱۳۵۲ او ۱۳۵۳ کلونو کی په ترتیب سره‌یو سلواته زروټنو اویو سلو پنځه څلـویښت زرو ټنوته رسیدلی دی ، اټکل کیږی چه دغه اندازه په روان کال کی یو سلو شپیته زرو ټنوته ورسیږی .

دصنایعو او کانو په برخه کی :

د برښنا د شبکی پر اختیا او دانتقالـی لینونو د غزولو په برخه‌کی دلازمو تدبیرو نو دنیولو په نتیجه کی په ۱۳۵۳ کال کی دبرښنا دتولید اندازه په ساعت کی‌څلور سوه‌څلوراتیا ملیونو کیلوواټو ته رسیدلی او اټکل کیږی چه په ۱۳۵٤ کال کی دغه اندازه په‌ساعت کی پنځه سوه څلورڅلویښت ملیونوکیلوواټوته ورسیږی چه د ۱۳۵۱ کال په مقایسه په‌سلو کښی ۲۲ زیاتوالی راځی .

په ۱۳۵۳ کال کی دکیمیاوی سری دفابریکی په‌کار لویدلو سره په دغه کال‌کی د یوریـا سری تولیداتلس زره ټنوته‌رسیده هیله‌کیږی چه دغه اندازه په ۱۳۵٤ کال کی دوه شپیته زروټنو ته ورسیږی •

دکرنی دودی او انکشاف سـره جوخت په دی برخه کی دتولیدی عواملو څخه‌دزیاتـــی استفادی له‌امله دنخی‌نساجی دپاره دزیاتی‌ودی زمینه هم برابره شوه لکه چه د نخی‌منسوجاتو تولیدات په ۱۳۵۳ کال کی پنځه څلو یښتو ملیونو مترو ته رسیده په ۱۳۵۲ کال کی‌شپږ شپیته ملیونومتروته رسیدلی دی‌اواټکل‌کیږی

چه په ۱۳۵٤ کال‌کی ۹۱ اعشاریه اوه ملیونو مترو ته ورسیږی .

دنباتی غوړیو تولید چه په ۱۳۵۱ کال کی په نیږامسه څلور زره ټنه و په ۱۳۵۳ کال کی لس زره ټنو ته ورسید. او اټکل کیږی چه دغه اندازه په‌روان کال‌کی ۱۲ زره ټنو ته ورسیږی ۰ددعه نباتو او پلټنو په برخه کی هم په وروستیو کلونو کی انکشافات شوی‌دی لکه‌چه دطبیعی گاز تولید چه‌په ۱۳۵۱ کال‌کی ددوه اعشاریه اته ملیارده مکعب متر ه په اندازه کیدل په ۱۲۵۳ کال کی دوه اعشاریه نهه ملیارد ومکعب مترو ته زیات شوی دی په پورتنیو کلونو کی دوړو دسکرو تولید دنهه اویا زرو ټنونه یوسلو پنځلس زره ټنو ته رسیدلی دی ۰ دیو شمیر نویو کانونو د یوی برخی‌دایستلودپاره فنی‌اواقتصادی‌څیړنی‌لکه دلوگردعینك مس په جدی ډول ترلاس لاندی نیول شویدی ۰

په همدغه ترتیب دهیواد په شمالی او لویدیځو برخو کی دنفتو او گاز دپلټنو ساحه پراخه شوی او په‌روان کال کی دنفتو دمنابعو دپلټنو په غرض دنفتوملی موسسه جوړه‌شوه۰

دمواصلاتو او مخابراتوپه برخه کی په‌تیرو دوو کلونو کی انکشافی فعالیتو نه دیادونی وړپراختیاکړیده۰ دځمکنی اوهوایی‌ترانسپورت او دمخابراتو په برخه‌کی دانکشافی لگښتونو زیاتوالی ددغه حقیقت څرگند وی دی ۰لکه چه‌دی څانگی‌ټوله‌مربوطه‌بودجه چه۱۳۵۱کال کی ټوله څلور سوه‌اودوه پنځوس‌ملیونو افغانیوته رسیده په ۱۳۵۲ کال کي دغه اندازه‌څلورسوه شپږ اویا ملیونو افغانیو ته او په ۱۳۵۳کال کی نهه سوه او پنځه څلویښت ملیو نو افغانیو ته اوپه روان‌کال کی یوزرو څلورسوه اوو پنځوس ملیونو افغانیو ته اټکل شویده۰

داجتماعی خدمتو نوپه برخه کی دهیواد داړتیاوو سره‌سم دجمهوری‌دولت لومړنی‌اقدام دافغانستان دمعارف په حالت‌کښی دیومترقی اواساسی ریفورم منځ ته راوړل دی چه البته پخوا ددغه ریفور م‌په شاو خواکی توضیحات ورکړ شویدی او تکرار ته ضرورت نلری ۰

دهغه ستر هدف دعرفانی کیفیت او کمیت ښه کول ـ دهیواددفعالی بشری قوا تر مینځ دانډول برابرول او په اقتصادی او اجتماعی بیلو بیلوڅانگوکی دهغو ربښتیانی اړتیااودټولو خلکودپاره دلوست لیك دزده کړی دزمینی برابرول دی .

دصحی خدمتونو په برخه کی د حکومت دریغ داؤ اودی چه صحی خدمتونه دی د هغه په اجتماعی ماهیت باندی اتکاء ولری‌چه‌په ټول هیواد کی پراخ شی ۰

پدغه لحاظ په تیرو دوو کلونو کی هڅه وشوه چه وقایوی اومعالجوی طب دپخوانه زیات‌شی۰ ددغه‌اصل‌له مخی په‌نظرکښی دی چه ۱۳۵٤ کال دپلان سره‌سم دری څلویښت اساسی صحی مرکزونه فعال شی‌اودو ه‌شپیته دصحی مرکزونو پروژو دجوړولو کار دوام ومومی ۰

نیرکال دمحیطی حفظ الصحی دپرو گرام لاندی په ۱۲ ولایاتوکی داوبو رسولو دشبکی ۳۲ پروژی جوړی شوی او دهغو له املەدری سوه زره تنو کلیوالو خلکو دښښلو داوبو څخه استفاده کړیده •

دکلیو او دښاری خلکوترمینځ دژوندانه دخلا دکولوپه غرض دکلیو دپراختیاپروگرام بیا راژوندی شواوپه تیر دوو کلونو کی هغه شویده چه دهیواد په بیلوبیلو برخو کی د اقتصادی او اجتماعی عام المنفعه پروژو په جوړولو سره دکلیو دخلکو د ژوندانه دسطحی په لوړلو کی گټور اقدامات وشی. پدغه مقصد په تیرودوو کلونوکی په پورەاندازه بودجوی تخصیص ددی دساحی دانکشافی پرو گرامونو دپرمخ بیولودپاره تخصیص ورکړ شویدی .

په تیرو دوو کلونو کی په پور تنیو برخو کی دانکشافی فعالیتو نوتطبیق او درا تلونکو پروگرامونو لاندی په‌نویو برخوکی دفعالیتونو دلمنی دپراختیا په هیواد کی دداخلی مالی منابعو او دخارجی منابعو د جریان چټکول غواړی •

دولت په تیرو دوو کلونو کی بریالی شو په مالی اوپولی سیستم کی داصلا حاتو په راوستلو سره دهیواد داقتصادی او اجتماعی چارودانکشاف په لارەکی پاخەگامونه واخلی.

ددولت دکړنلاری دمخی د۱۳۵۱ کال په تناسب په ۱۳۵٤ کال‌کی دمستقیمی مالیی په سلوکی یو سلو خلور نوی زیاتوالی ښیی د ۱۳۵۱ په نسبت په ۱۳۵٤ کال کی په ټولو داخلی عایداتو کی دمستقیمو مالیو برخه په سلوکی خوار لس زیاتوالی ښیی .

کورنی خالص عایدات په ۱۳۵۳ کال‌کی په‌سلوکی‌اته شپیته دیوپنځوسم کال په‌نسبت زیات‌دی‌او اټکل کیږی چه دغه اندازه په ۱۳۵٤ کال کی په سلوکی‌اته‌نوی د۱۳۵۱ کال په‌تناسب‌زیاته‌شی‌د پورونوپه‌گډون په۵۳ کال‌کی ددولت‌ټول عواید ۱۲۷٤۲ ملیونه افغانی احتوا کوی چه دغه شمیر د ۱۳۵۱ کال په مقایسه په‌سلوکی ۲۷ زیات دی •

د۱۳۵۱ کال په نسبت په ۱۳۵٤ کال کی ددولت په ټولو عوایدوکی په‌سلوکی دوه‌نوی زیاتوالی اټکل کیږی •

له څوکالو را هیسی دافغانستان با نک څخه پور اخیستل دپر مختیایی لگښت څخه دیوی برخی په تمویل کی یو زیات شمیر احتواکاوه مگر دکورنیو عوایدوزیاتوالی په برخه دمالی سالمو تدبیرونو دنیولو په اثر نه‌یواځی مالی‌کسرله مینځه لاړبلکه په ۱۲۵۳ کال‌کی ددولت بودجی مازاد ښه غوره کړیده چه دغه حالت دهیواد په یوه لس کلن مالی عمر کی ساری نلری •

دغه راز دسپما دتشویق او تضمین په مقصد او دزیرمو د تضمین له امله دبانکونو د ټکټانی نرخ په سلو کی له شپږو څخه په سلو کی اتوته لوړ کړی شویدی •

د جمهوری نظام له ټینگیدو وروسته د اسعاری زیرمو حالت ښه شوی دی چه په نتیجه‌کی دتادیاتو په بیلا نس کی داټکل شوی‌کسر په ځای زیاتوالی راغلی د۱۳۵۱ کال

په‌نسبت په۱۳۵۳کال‌کی دبین‌المللی اسعارو دزیرمی په سلوکی اته څلویښت زیاتی‌شوی دی ۰

داقتصادی حالت دټینګښت اوپه هیواد کی دننه دانفلاسیون داغیزودمخنیوی په مقصد د ۵۲ کال په مقایسه په ۵۳ کال کی دبانـک نوټ په خپرولو کی په سلو کی ۱ر۴۱کموالی راغلی دی هغه کریدتو نه چه دافغا نستـان بانك له لاری ورکړی شوی د۵۲ کال په‌نسبت په۱۳۵۳ کال‌کی په‌سلوکښی ۴۸ زیاتوالـی څرګندوی ۰

هغه ګټه چه دافغانستان بانك د۵۲ کال په نسبت په ۵۳ کال کی کړی په سلو کی۱۱۴ زیاتوالی ښیی ۰

دهمدغه اقداماتو له مخی ده چه ددولت د پانګی اچولو اندازه لکه څنګه چه وویل‌شول په ۱۳۵۴ کال‌کی دمخکینی کال‌دپانګی اچولو په مقایسه په سلو کی ۱۱۱ زیاته ده ۰

په ۵۳ کال کی ددولت پانګه اچول په سلو کی څه‌ناڅه ٦ ملی عایدی او اټکل کیـږی چه په ۵٤ کال کی دغه تناسب په سلو کی دولسوته زیات‌شی. جمهوری دولت له‌کورنیو منابعو څخه دزیاتی استفادی له امله په هیواد کی دزیاتو پورونو اوخارجی مرستو په‌جریان لاس پوری کړ۰ په هغو اقداماتو سره چه په یوه لنډه دوره کی په دغه لاره کی وشول دولت وکولی شول له دوستو هیوادو اوبیـن المللی موسسو څخه دپور_ او وړیا مرستی‌په توګه څه‌دپاسه یوزرو څلور سوه ملیونه‌ډالره پیسی واخلی ۰

هغه مهم ټکی چه‌پدی ځای کی په یادولو آرزی دادی چه دغه پیسی یعنی څه‌دپاسه یو زرو څلور سوه ملیونه ډالر چه افغا نستان ته دپوراوومرستی په‌توګه ورکړی شوی‌هغه ټولی پیسی نه‌دی چه د۷کلن پرمختیا یـی پـلان د پروژو د جوړښت دپاره یی هیله کیږ ی ځکه په سږکال کی یوشمیر ستری اقتصادی پروژی شته چه یواځی د هغو تخنیـــکی او اقتصادی څیړنی ددغو پیسو په چوکاټ کی تمویلیږی نه دهغو جوړښت لکه داورګاډی د پټلی پروژه، دحاجی ګك‌کان ـ دمسودویلی کولو فابریکه ـدفراه رود پروژه ـدخوش‌تیپی پروژه او نوری چه ددغو پروژو د اقتصاد ی توب په تثبیت سره به دوست دو لتونه د جلاجلاموافقو په قید دهغو دجوړښت دلګښت تمویل دافغانستان سره مر سته و کړی‌ـپدی حساب فکر کیږی چه ددغو مـرستو حجـم به له دغوپیسو څخه ډیرزیاته وی چه پاس څرګندی شوی .

جمهوری دولت له کـــورنیو منـا بعـو ئو خارجی منابعو څخه دزیاتی او اغیـــز منـــی استفادی د پاره سمـلا ســی او اقتضا ئـی تصمیمونه له څنګه چه په تیر رژیم‌کی نیول کیدل رد کړی، فیصله یی وکړه چه‌پرمختیایی پروګرام او پروژی دهغو دټولو تخنیکی او اقتصادی اړخونو دمطالعوله بشپړیدووروسته داووه‌کلن پلان په چوکاټ کـی ځـای کـړی شی اودتطبیق ډګرته به وړاندی شی .

دهیواد ۷کلن پلان چه‌په هغه‌کی به‌څه‌دپاسه دوه‌سوه اقتصا دی او اجتما عی پروژی وی‌د هغه‌ستری او مهمی نوی پروژی دا قتصادی‌او

اجتماعی ساحو په‌بیلو الی سره پدی تو گه یادول کیږی.

## دکرنی اومالداری په‌ساحه کی:

۱- دخو ش تیپی داوبو لگو لو د پروژی دجوړولو خیړنه .

۲- دکیلگی داوبو لگو لو د پرو ژی‌ودانول

۳- دشفا دچینی داوبو لگو لو د پروژی جوړول.

٤- دهریرود دپرو ژی ابادو ل.

٥- دکوکچی داوبو لگو لو د پر و ژ ی جوړول.

٦- دکجکی دپر چاوی د دروازو جوړول.

۷- دکندز ـ خان آباد داوبو لگولودپروژی ودانی .

۸- دفراه رود دناو ی داوبو او کرنی‌لـه منابعو څخه په استفاده کو لوسره دد غــــی ناوی هراړخیزه پرمختیا .

۹-دکوز هیلمند هر اړخیزه پر مختیا ددغی سیمی داوبواوکرنی له‌منابعوڅخه په استفاده کولوسره .

۱۰- دکونړ دسیند اقتصـادی او تخنیکی مطالعه ، ددغی ناوی داوبو او برښناله منابعو څخه داستفادی دپاره .

۱۱- دجنوب لویدیځ دشاړو ځمکو تــر ځمکی لاندی اوبو له منا بعو څخـه استفاده

۱۲- دهرات دمالداری په پروژه کــی د مسلخ جوړول .

۱۳- دبادغیس- فاریا ب -جوزجان اوغور په ولایاتو کښی دمالـــداری د خـدمتونـو پراختیا.

۱٤- په‌کابل‌کی دچرگانو دروزنی اودهغو دخوړو او اوبو دپروژی جوړول .

۱۵- دقیصار دسیند له اوبو څخه‌داستفادی څیړنه .

۱٦- دپاسنی‌هیلمندداوبواوخاوری له‌منابعو څخه داستفادی مطالعه .

۱۷- دزراعتی کو پرا تیفونو دنا قلینود میشته کولو اونورو فعالیتو نو په برخه کی‌له جهانی بانك څخه دپور په اخیستلو سـره د کرنی دبانك دفعالیت پراختیا .

## دصنایعو کانو اوبریښنا په‌ساحه‌کی:

۱- دســری دنوی فابریکـی جـــوړول یـا دسری داوسنی فابریکی پراخوا لی .

۲-دحاجی گك له کان څخه په استفاده‌کولو سره داوسپنی دویلی‌کولو د فابریکی مطالعه اوجوړول.

۳- دلوگر دمسو له کان څخه په استفاده کولو سره دمسو دویلی کو لو د فا بر یکی مطالعه اوودانو ل.

٤- په هرات کــی د نساجـی فـابریکـی جوړول.

٥-په کندهار کی دنسا جی فا بر یکــی ودانول .

٦-په کندهار کی دوړیو اوبد لو دفابریکی ابادول.

۷-په‌هرات کی د بوری د فا بر یکـــی جوړښت .

۸- دبغلان دبوری د فابریکی د ظر فیت

پراخوالی.

۹- په جلال آبادکی دبوری اوکاغذ دفابریکی جوړول .

۱۰- په هرات کی د سمنټو فابریکی جوړول.

۱۱- په کندهار کی دسمنټو د فابریکی ابادول.

۱۲- دشمالی سیمو دبرښنا رسولو د سیستم بشپړول.

۱۳- په هرات کی دډیزلی او حرارتی برښنا دستګاه جوړول .

۱٤- په سروبی کی دحرارتی برښنا ددستګاه ودانول.

۱۵- دنغلو - جلال آباد تر مینځ دبرښنا دلیږدولو لین .

۱٦- دکجکی دبرښنا دلیږدولو لین .

۱۷- دهیواد په جنوبی برخه کی دنفت اوګاز پلټنی .

## دمواصلاتو اومخابراتو په‌ساحه کی:

۱-دآمو دسیند دپاسه دحیرتان پله جوړول.

۲- دایران ترسرحده پوری دلویدیځ لین دسرك دلو مړی او دو همی برخی بشپړول.

۳- دکابل کند هار -هرات اسلام کلاتر مینځ داورګاوی دپټلی دپروژی او د هغی د فرعی کرښو مطالعه او ودانول .

٤- دکابل دهوایی ډګر ترمیم .

۵- دشبر و محلی هوایی ډګرونو جوړول.

٦- دلوګر دهوایی ډګردالوتنی داطلاعاتو دمرکز اودپروژی جوړولو ودانی .

۷- دکابل کند هار تر مینځ د ۳۰۰ کانالیزو مکروویف او دکندهار - هرات تر مینځ د ۱۲۰ کانا لیز و او دهرا ت- اسلام کلاتر مینځ د۶۰ کانالیزومکرو ویف سیستم جو ړو ل.

-۸- دکابل تور خم تر مینځ د ۱۲۰کانالیزه مکروویف سیستم او دجلال آباد هندوستان ترمینځ دتروپوسکیتر جوړول .

۹- دکابل کند هار -هرا ت اومزارشریف دتیلفون ددستګا ؤ پر اختیا او په ځینوولایاتو کی دیوشمیر نویو دستګاو جوړول .

## داجتماعی او کلتوری خدمتو نوپه ساحه کی :

۱-دهرا ت د ۲۰۰ بستره ایز رو غتون جوړول.

۲- دکند هار د ۲۵۰ بستره ایزه روغتون ودانول.

۳- دهیواد په بیلوبیلو سیمو کښی د روغتیا داساسی او فر عی مر کز و نو جوړول.

٤- دفلم اخیستلو دستدیو جوړول .

۵- دغږدضبطولو دستدیو جوړول .

٦- دافشار داوبو رسو لو د پر و ژ ی جوړول.

۷ـ دتلویزیون ستیشنو نو مینځ ته راوړل.

۸ـ درادیو افغانستان د ظرفیت پراخوالی.

۹ـ دترو لی بس دپرو ژی په جوړولو سره دښاری ترانسپورتی خدمتونو پراختیا .

۱۰ـ دهو ټلونو دودانو لو او دضرورت وړ نورو وسایلو دبرابرولو په وسیله د توریستی خدمتونو لاپرمختیا .

۱۱ـ دسیلوګانو اوژرندو اودډوډی پخولو دفابریکو جوړول .

ددغو مهمو پروژو او نورو لس ها وو پروژو په تطبیق سره چه دهغو نومونه مو ذکر کړل امیده ده چه دهیواد اقتصاد کی ستر بدلون راشی او دهیواد په ټولو طبیعی منابع فعاله کیږی د ملی تولیداتو سطحه لوړیږی داستخدام ساحه پراخوالی مومی او په هیواد کی دنوی او عصری صنایعو بنیاد ایښودل کیږی . د اجتماعی ژوند اوهوسایښی لاره چمتو کیږی او په نتیجه کی زمونږ اصلی هدف ته به درسیدو لاره چه زمونږ دخلکو دژوندانه ښه والی دی اواره کړی.

لکه څنګه چه پوهیږی اقتصادی او اجتماعی چټکه پرمختیا او ترقی ګټور پلان غواړی په همدی اصل بنا ددی دا تکال له مخی ؤ چه تصمیم ونیول شو چه دپنځه کلن پلان په ځای اوه کلن پلان ترتیب شی . دپلان دمودی له دغه اوږدوالی څخه مقصد دادی چه نوی پرو ژی له تخنیکی اواقتصادی نظره دا نتقا لی پروژو د جوړولو د مودی دچټکتیا سره یو ځای له هره پلوه مطالعه شی او په اسانی سره په پلان کی شاملی شی. طبیعی ده چه په دغه اوه کلنه موده کی ممکن په ځینو اټکلونو کی بدلو ن راشی خو ددغه کار دمخنیوی دپاره به دکالنیو پلانونو دترتیب دکاردوام چه دجمهوری نظام دجوړیدو څخه طرحه او تدوین شوی دی داوه کلن پلان داقتصادی او اجتماعی تحو لاتو څخه پیداشوی بدلونونه دکالنیو پلانونو په چوکاټ کی عیار شی.

لکه څنګه چه زمونږ وطنوال پوهیږی وروسته پاتی کید ل داسی پدیده نده چه په یوه ورځ او یو کال او یا څو کلونو کی پیدا شوی وی. وروسته پاتی کید ل یوه تاریخی پدیده ده چه دزمان له حیثه زیاته موده نیسی او دهغی عوامل هم ډول ډول دی . ددغو وروسته پاتی کیدونکی کول هم دو خت ایجا ب کوی او پوره تدارک غواړی او وسایل په کار لری او باید ټاکلی اوروښانه هدفونه ولری .

جمهوری دولت په لنډه موده کی تر ټولو دمخه په دغه بر خه کی دیوه بشپړ هد ف په ټاکلو لاس پوری کړیدی دغه هدف دیوه ملی مستقل اقتصاد پیدا کو ل دی په دی ترتیب دهیواد درا تلونکی اقتصاد ی او اجتماعی پرمختیا دریځ ددغو کلی کرښو په بنیاد ولاړ دی.

په ټولو اقتصادی او اجتماعی ساحو کی د بنیادی او اصلی اصلاحاتو اجرا کول .

په دولتی اوخصوصی سکتورکښی د ملی صنایعو مینځ ته راتلل اودهغو ملاتړ •

– په هیوادکی دانرژی او برښنا تعمیم .

–داوبو لګو لو دنو ی اوعصری شبکی‌ایجاد اوپراختیا•

–او دملی ګټو په اساس دخار جی تجارت لاربنودنه .

پدی حالت کی چه دخلکو دژوندانه د سطحی‌داوړولو او داجتماعی بی عدا لتیوپـــه لاره‌کی د خنډونو له مینځه وړلو دپار ه – اقتصادی او اجتماعی حر کتو نه پیل شوی جمهوری دولت دټګ لاری په اساس دځمکو داصلاح دقانون دتدوین دو ضع کولو اقدام وکړ•دغه قانون دو لت تصویب کړ او پــه رسمی جریده کی دهغه دخپر یدوله‌نیتی‌څخه یوکال وروسته دتطبیق ډګر ته را و یستــل کیږی•

مهم هد فونه پدی ډول دی •

## دملکیت دحدودو ټا کل :

–دمالك اوبزګر او کرنی دکاریګرتر مینځ دغیرعادلانه مناسبا تو له مینځه‌وړل•

–دکوچنیو اوبیو زلو بزر ګرو دحا لـــت اصلاح اوښه والی .

– دبزګر دعوایدو زیاتوالی اوپه بی‌ځمکی مستحقو خلکو باند ی دځمکی ویش •

– دکرنی په‌سکتورکښی دزیات فعال نفوس جذبول په هغه اندازه چه ددغه سکتورظرفیت یی‌ایجاب کړی•

–دکرنی دسکتور دګټور تیا دلوړلو دپاره‌د کرنی دتحقیق اوترویج دپراخوپروګرامو نو پراخوالی•

– دهغو کسانو دپاره دځمکی د مالکیت د حقوق تأمین چه په رښتیا په ځمکـه کـــی کارکوی•

– په‌کوپراتیفی‌سیستم باندی‌زیات ټینګار اوپه‌نتیجه کی دهیواد دټولو تو لیداتود سطحی لوړول•

امیدلرم دافغانستان دولس دټولو پرګنـو له خوا ددغه عادلانه اوانسانی ښه‌اقدام دتطبیق هر کلی‌اوملاتړوشی• په‌پای‌کښی‌بایدووایم‌چه‌د افغانستان دنوی اساسی قانو ن په مسوده باندی دخیړنی په مقصد به یوستر کمیسیون چه دیولس میاشتو راهیسی دیوه مختصــر کمیسیون له خواله غور اوخیـړنـو وروستـه ترتیب شوی په روان کال کی وټاکل شـــی اوپه‌کار به پیل وکړی .

ګرانو وطنوالو !

د یو کلـــن لنډو ګزارشاتو په ختمولو سره غواړم یوځل بیا ستاسی یا مدیته‌راواړوم چه‌دیوه ولس دکار اوزیار له ځانه تیریدواو ایثار څخه پرته هیڅ پر مختګ نشی کیدی• داهغه لاره ده چه دافغانستان و لس‌کولی‌شی په‌پوره یووالی دلوی خدا ی په مهربانی‌اوپه خپل اوړهمت سره خپلی زړی پسمانی تلافی اودیوی امید ښوونکی اوروښانه ایندی په‌لور په‌مخ‌ولاړ شی•

مونږ دخپل وطن په‌لوړتیا اوسر لوړی‌باور لرواوتروروستی‌سلګی پوری به دنوی آزاد اوآباد افغانستان دنیکمرغی په خاطرهلی‌ځلی وکړه • ومن الله توفیق •

تل دی وی افغانستان

تل دی وی جمهوریت

# بمناسبت اولین سالگرد انقلاب جمهوری

**هموطنان عزیز !**

درست یکسال ازپیروزی انقلاب ورستاخیز ملی ماميگذرد .

تجلیل این روز باشکوه رابه شمااىرفيقان بايمان، فداكار ووطن پرست انقلاب، بشما اردوی غيور وفداكار افغانستان وبشماخواهران وبرادران عزيز درهركجايي هستيد ازته د ل وازصميم قلب تبريك ميگويم .

وطن وجامعهٔ ماازديرزمان آبستن يك زندگی نوين بود بسی نارسايی هامدت هامانع تحرك وتكامل ماميشد . ولی فساد جامعه ماوخطرات ناشی ازآن سخن رابجايی‌کشانیدكه نيرو های وطن پرست ديگرتامل راجايزنديده زنجيرهای فرتوت وانقيادرابهمت‌مردانه‌و‌پشتيبانی‌كامل‌مردم وطن دوست افغانستان درهم شكسته ودرهمين شب بلطف خدابه پيروزی رسانيدند .

بلی! شب ۲٦ سرطان شبی بود كه‌سحرتاريك وخونين وياشفق‌روشن ودرخشانی دربرداشت. پرازاميد وپرازخطر، اكثر همشهريان درآنشب كه نصفی ازآن گذشته بود درخواب عميق وعده بسيار قليل ونابكار ديگركه زندگی در شب نو، برايشان شروع ميشدسرگرم عيش ونوش خود بودند . مردمان ديگری هم در همين شب وبهمين شهر وجود داشتند كه ساليان درازی رابامید سعادت مردم وكشور شان سپری نمودند هرچه ازفكر وعملشان بمقصد نيل باين مامول مقدس ممكن بود، دريغ و كوتاهی نكردندو به غرض اصلاح آنهمه نابسامانی ها وفساد يكه سرتاسر مملكت و دستگاه دولت راكه مخصوصا در چند سال اخير فراگرفته بود مستقيم وغير مستقيم كوشيدند اما افسوس كه اين همه تلاشها نه تنها سودی نبخشيد بلكه بصورت واضح احساس كردندكه كشتی شكسته وفرسودهٔ كشور بسرعت هرچه تمام تربه طرف پرتگاه عظيمی نزديك ترميشود وروزی خواهد رسيد كه چاره نجات‌آن برای همه‌مشكل، بلكه ناممكن خواهد گشت اين اشخاص درروشنی آن‌حقايق تلخ‌ودرديكه برای‌اعتلای‌كشورخوددرقلب داشتند باهمه مشكلات وموانعيكه موجود بود بايدچاره رابرای سلامت واصلاح وطن خود جستجو می نمودند اما چطور وچه راه ؟

بلی ! راهيكه هدف وغايه آن جز سلامت وسعادت وطن وخدمت به قاطبه ملت‌افغانستان چيز ديگری‌نباشد وحتی المقدور از هر گونه عقده های شخصی وضعف های انسانی، حس انتقام جويی، خودخواهی وغيره بری باشدواين خودبرمشكلات آنان می افزود دقت، سنجش وحوصلهٔ بيشتررااايجاب ميكرد .

بهر صورت بیش از یکسال دراطراف این موضوع مذاکرات ومباحثاتی بین بعضـی رفقا صورت گرفت، پلانهای مختلف طرح گـردید وهرگونه امکانات سنجیده شد . درطول ایـن مدت هنوزهم بامید اینکه بالاخره خطراتیکـه ازهرنگاه وطن رااحاطه وتمام زنگهای خطــررا بصدادرآورده است ، ممکن دستگاه فرسـوده ومغرور رااز آن خواب غفلت بیدار وملتفـــت سازد، اماتدریجااین امیدضعیف هم ضعیف تر میشدتااینکه درماه‌های اخیر به‌یأس‌کامل مبدل گردید . فساد وروش ضدملی رژیم بحد اعلی خودرسید ودیگر هیچ فرد وطن پر ســـت نمیتوانست این‌همه‌فجایع راتماشاکنندوخاموش بنشیند . قراربراین شدکه جزحرکت انقـلابی راه دیگری باقی نیست وباید حرکت کردواین قرار آخرین مابود .

درهمین شب آن فرزندان فداکار وطن بدون آنکه تاحتی فامیل وزن وفرزند شان احساس کرده بتوانند درقلب ازفامیل وهر چیزعزیزیکه درحیات داشتند درراه خدمت واعتلای کشورو مردم خودخموشانه وداع کرده بودند زیرافردی دربین مانمیتوانست ضمانت کند وبداند کـه فرداسرنوشت خودشان، فامیل شان ووطـــن شان چه خواهد بود .

دوستان عزیز ! فعلا درنیمهٔ شب قرار داریم اجازه دهید تاقسمتی ازبیانیه ۲۶ سرطان سال گذشته خودرا یکباردیگر تکرار کنم .

(این آرزوی مقدس بود که مراوادار ساخت ده سال قبل من ورفقایم پیشنهاد آخرین خود رابه حضور شاه پیش وتطبق آنـرا بـــرای خیروسعادت ملت تمنا کنیم .

آن آرزوی مقدس چرااین بی سروسامانی مملکت منجر گردید وچراآن رفقا ازاصل هدف منصرف‌وراه خطایی راتعقیب‌کردند، داستانیست بس طولانی که تفصیل آن دربن فرصت‌کوتاه گنجایش ندارد ودر فرصت مساعد البته بـه اطلاع هموطنان عزیز رسانیده خواهد شد .)

فعلادرنیمهٔ شب قرار داریم، برای امرحرکت هنوزیکساعت باقی است ولواین یکساعـــت پرهیجان به هیچصو رت برای آن داستـــان طولانی چندین ساله کفایت نمیکند بازهم بد نیست چندسالی به عقب رویم وازبین مکاتیب متعدد که ازسالیان دراز وقتافوقتا بحضورشاه تقدیم داشته‌ام، چندمکتوب اخیرراکه نزداکثر مردم ماممکن تاهنوز پوشیده باشد به اطلاع هموطنان عزیز برسانم :

مکتوب مورخه ۹ سرطان ۱۳۴۱ پس‌ازالقاب !

آنچه راامروز بحضور شما بعرض میرسانم تصورمیکنم 'درسرنوشت‌آیندهٔ ملت افغان آنقدر مهم وحیاتی وبدورهٔ سلطنت شماآنقدر اقدام بزرگ وتاریخی میباشدکه میتوان در اطراف آن کتابی نوشت ویك عالم دلایل وتوضیحاتی بعرض رسانید،اما میدانم عرایض‌طولانی برای خواننده‌وهم کسیکه می‌نویسد بعضاخسته‌کننده میباشد ، لذا نمیخواهم عریضهٔ من طـولانـی باشد کوشش میکنم بصورت بسیار مختصـر چیزی راکه به عقیدهٔ خود (که این همیشـــه عقیدهٔ من بوده وخواهد بود.) خیر وسعـادت ملت افغانستان واقدام بزرگ وتاریخی دورهٔ سلطنت شمامیدانم بحضور شما بعرض‌رسانم.

موجبات ودلایل اینکه چراتحول اجتماعـــی

بایددرین مملکت بعمل‌آید، ضرورنیست درین جاتوضیح کنم زیرادراطراف آن همیشه صحبت نموده ایم وافکار ونظریات بنده درین‌خصوص گمان میکنم کافی، واضح وروشن بحضور شما معلوم است .

تصور میکردم که بهترین موقع اظهار همچو یك مفکوره ازطرف حکومت وقتی بود کـــه پلان دوم اقتصادی بشورای ملی تقدیم میشد ودرضمن آن ازخطوط اساسی تحول اجتماعیکه باساس یك پلان درنظر دولت است بسمـــع وکلای شورارسانیده میشد، چون از یکطر ف ازطرز تفکر بعضی ازرفقای کـابینه اطـــلاع نداشتم وازطرف دیگر حضو ر شما بکابـــل تشریف نداشتید . بنابرآن، آن‌موقع گذشت اما هرقدمیکه برای خیروسعادت ملی برداشته میشود، بهروقت وزمانیکه باشد یقینا مفـید وموثر است . مشروط براینکه بسیار نا وقت نشده باشد به عقیدهٔ من وضعیت مملکت و جریانات عصر وزمان چنین تحول را ایجـاب میکند واگر حضور شما چنین یك تحولی را بحال مملکت موزون ومفید میشمارید (کــه بنده ازهرنقطه نظرآن رالازم میدانــــم ) پس تصورمیکنم عملی ساختن همچویك مفکوره اگر به‌وقت‌ودریك فضای‌نسبتامساعدترصورت بگیرد تاثیرآن عمیق تروانعکاسات آن خوبترخواهدبود. ازاین لحاظ بازهم بنده همین موقع را بـرای شروع این‌کار بوقت وبجا میدانم .

شك نیست که تطبیق پلان پنجسالهٔ اول ازهرحیث نزداکثرطبقات بی تاثیر نبود ونهضت نسوان که یك قدم مهم اجتماعی بود مخصوصا نزدطبقات منوروجوان طرف تقدیر واقع شد و رویهمرفته تااندازه یك فضای امید وخوشبینی تولید نمود .

اما باید دانست که انکشاف اقتصادی،افکار وذهنیت های جدیداجتماعی راحتما باخودآوردنی است واگر درین قسمت معنوی حیات که بـه عقیدهٔ من فوق العاده مهم، ضروری وخالی از مشکلات نیست توجه وسنجش عمیق بعمـل نمی آید وبغرض رهنمایی یك ملت بمقصـــد رسیدن به‌هدف مطلوب ملی موازی باپـــلان اقتصادی، پلان تحول اجتماعی، طرح وعملـی نمیگردد روزی خواهد رسید که موازنه بکلی برهم خورده ودفعتا این مملکت به مشکـلاتی دچار گرددکه ممکن درآنوقت حل آنقدر سهل وساده نبوده وبه منفعت ملی افغانستان تمام نشود .

مردم، مخصوصا طبقهٔ منور ازنقطهٔ نظـــر اجتماعی آرزومند تحول وبه آن انتظا ر دارند درخفاء اقسام افکار وعقاید وذهنیت هاموجود است، دست اجانب برای مقاصد سیاسی خود مشغول فعالیت اند این طرز حکومت بـــرای مردم مخصوصا طبقات منور چندان خوش آیند نیست وخسته شده‌اند. برای حضوراعلیحضرت وبعضی دیگران اگر هنوز این طرزقابل تحمل است برای بنده که منسوب بخاندان هم‌هستم وچون عاقبت آنرابه ضرر مملکت وناکـــامی سلطنت میبینیم‌راستی عرض میکنم‌که بعدازین قابل دوام نیست بصورت مستقیم وغیرمستقیم افراد منسوب بخاندان (زیرا حدود خـــاندان ومربوطین آ نامروز به پیمانهٔ رسیده‌که‌مشکل

است حدود برای آن قایل شد ) کار دار یا بیکار، خورد وکلان امتیازاتی بخود ها قایل هستند واین چیزرایك حق مثبته وطبیعی خود میدانند، قوانین مملکت هرچه باشد در نظرآنها بیش ازچندکلمه بی معنی دیگر ارزش ندارد غیره وغیره ...

پس یاباهمه باید مطابق قانون و مقررات رفتارکردکه حتماعکس العمل هایی رابارآوردنی است ویااینکه تحمل کرد وچشم پوشید که خودسبب بی عدالتی وبی انضباطی گردیده و گردیدنیست، پرسش وبازخواست وقتی ممکن وموثرشده میتواندکه‌درآن امتیازی موجودنباشد واگرامتیاز موجود شد مفهوم حقیقی قانون و عدالت ازبین رفته واگراین باز خواست یکطرفه اجرامیشود نتیجه جز ازتولید عکس العمل وبدبینی مدهشتری بمقابل حکومت و سلطنت چیزدیگری نخواهد بود .

اعلیحضرتا! صفحات تاریخ‌گذشتهٔ افغانستان بهترین درس است که میتوان ازآن عبرت گرفت . تاریخ‌گذشته وآنچه راکه خود درحیات دیدیم وتجربه کردیم بماواضح ساخت که جاه طلبی ها ورقابت ها، شخصیات وخودسری های افراد چه درخاندان های سلطنتی و یا دستگاه حکومت وچه دربین طبقات با نفوذ مملکت‌جزناکامی وبربادی خود آنها و خسارهٔ مادی ومعنوی مملکت نتیجهٔ نداشت و ندارد خدا نکندکه آن وقایع تلخ درین عصرو دورهٔ سلطنت اعلیحضرت شما دوباره تکرار شود .

مثلیکه بارها بحضور شما عرض نموده ام ازصمیم قلب یکباردیگر عرض میکنم که این طرز اداری مملکت‌واین فضای خاندانی با ذهنیتیکه آنها تربیه شده اند بعداز این باهر تعبیریکه به آن کرده شود چه‌ازنگاه مسئولیت وظیفه وچه ازنقطهٔ نظرعقیده شخصی ، برای من قابل تحمل نیست .

لذا نظروپیشنهاد من بحضور اعلیحضرت شماازین قرار است :

۱ـ الترناتیف اول :

اینکه ملت افغانستان چه شکل‌وطرز ادارهٔ رابرای آیندهٔ مملکت مفید ومناسب میداند، توسط یك رفرندم عمومی رای آزادانهٔ ملت افغانستان خواسته شود. درجه فهم ودرجهٔ تطبیق وعملی ساختن همچویك رأی گیری نظر به سویهٔ فعلی مردم ماچه خواهد بود، خیلی مجهول ودر ظاهر غیرعملی به نظر میرسد . ازطرف دیگر چون درهمچو رفرندم طبعاً حرف ازسیستم های مختلف بمیان خواهد آمد لذا فیصله وقرار آخرین آن تنها وتنها بشخص اعلیحضرت شما بحیث پاد شاه افغانستان مربوط است وبس .

۲ـ الترناتیف دوم :

۱ـ کمیسیونی مرکب از متخصصین حقوق واشخاص باصلاحیت وباتجربه تعیین گردد تادرقانون اساسی تجدید نظر نموده پروژهٔ قانون اساسی‌جدیدرا(باساس‌سلطنت‌مشروطه) ترتیب وبحکومت تقدیم دارند .

۲ـ همچنان عین کمیسیون و یاکمیسیون دیگری قانون انتخابات ودیگر قوانین مهمیکه به‌قانون اساسی رابطه نزدیکی دارد تدوین وبغرض غور ومطالعه بحکومت تقدیم دارند.

۳ـ پس ازغور وتصویب دولت لوی جرگه

انعقاد گردیده وقوانین مذکور بغرض غـور، تدقیق وتصویب به‌لوی جرگه تقدیم گردد .

٤ـ پس از تصویب قانون اساسی از طرف لوی جرگه آمادگی‌برای انتخابات گرفته شـده وباساس قانون جدید انتخابات عملی گردد .

٥ـ باختم انتخابات وافتتاح شورای جـدید (باساس یك حزبه ویادوحزبه) حکومت فعلی مستعفی وحکومت جدیدتشکیل زمام امورمملکت رابدست خواهدگرفت . این اجراآت بایـــد باساس یك پروگرام بوقت معین عملی گردد. (گراف ضمیمه) درین‌موضوعات بابعضی اعضای کابینه که بصورت انفرادی ومجموعی مذاکره وتبادل افکار نموده ام اینها هستند :

١ـ علی محمدخان معاون صدارت
٢ـ وزیر خارجه، معاون صدارت
٣ـ وزیر داخله
٤ـ وزیر مالیه
٥ـ وزیر معادن وصنایع
٦ـ وزیر معارف
٧ـ رئیس مستقل قبایل

الترناتیف‌اول ازطرف همه بصورت مجموعی غیرقابل تطبیق ومفید خوانده نشد بنابران از مباحثات دراطراف آن فعلا صرف نظرگردید .

راجع به الترناتیف دوم اینکه در مسایـل اجتماعی تحولی بوجود آیدهمه ضرورت آنـرا حس نموده وبه آن‌گمان میکنم اتفاق داریـم ، امادرطرز عملی ساختن آن ممکن در نظـریات وافکار تفاوت های موجود باشدکه طبعا موقع مذاکرات ومباحثات امیدواریم بالاخره به نتیجهٔ برسیم .

کابل ٢٤ جدی ١٣٤١ :

بعدازالقاب !

بجواب مکتوب تاریخی ١٢ سنبلـهٔ ١٣٤١ اعلیحضرت احتراما بعرض میرسانم . بـرای من ورفقای من جای بس مسرت است کـه اعلیحضرت همایونی خوشبختانه در اصـل پرنسیپ که میفرمایند یکی از آرزوهای‌دیرین شان است، الله الحمد توافق نظر موجوداست همچنان اعلیحضرت به نکتهٔ مهم دیگری تماس فرموده ومی نویسند: (بلکه یك هدف مقدس ومشخص است‌که ازافکارو آرزو های عالـی موسس این دوره یعنی اعلیحضرت محمدنادر شاه شهید سرچشمه میگیرد وامانتی است که بردوش ماگذاشته شده ...) بلی این یـك حقیقت مسلم است وبه‌پیروی ازافکار وآرزو های عالی آن شخصیت بزرگ است که‌میخواهم به آن هدف مقدس ومشخصی‌که خیرو بهبـود ملت‌افغان درآن متصور است نایل شویـم . این فرمایش اعلیحضرت همایونی را کامـلا تائید وتصدیق میکنم‌که اگر این مفهوم عالی، انجام طبیعی وهدف نهایی این دوره نبا شد گویاهمه مبارزات وقربانی های پدران ومساعی امروزی مامعنی حقیقی خودرا ازدست خواهـد داد .

اینکه حضوراعلیحضرت در پراگراف اخیـر مکتوب خویش به‌وقت وزمان‌واشخاص ورجالیکه فردا مسئولیت عملی‌ساختن این آرزو هارابدون تردد بدوش گیرد اشاره فرموده وآنرادو عامل مهم بلکه شرط اساسی تطبیق نمودن ایـــن آرزو هاشناخته اند ، فرمایش اعلیحضـــرت بجاست. اینك درطی این پیشنهاد به عرض

میرسدکه مابه این عقیده رسیده ایم که‌وقت آن رسیده است‌که چنین نهضتی آغاز گـــردد وهم به‌وجود آمدن اشخاص ورجالیکـــه ادارهٔ مملکت رادر آینده به آنهاتفویض‌نمود ، مربوط به اینست که چنین نهضتی موجود باشد و چنین محیطی ایجاد گردد تا استعداد مـــردم موقع بروز وانکشاف رابیابد من معتقدم کـه اگرچنین حرکتی نباشد رجالی که مسئـــولیت ادارهٔ آینده رابه عهده بگیرند اصلا بوجـــود نخواهدآمد. پس ازتذکر فوق اینك به اصل موضوع می پردازم: آرزوی یك تحول‌اجتماعی ازدیرزمان به اینطرف نزدهمهٔ ماموجود است به‌سایقه این آرزو، درین چند سال اخیر در ترقی وتعمیم معارف، انکشاف اقتصاد عمومی وآماده ساختن محیط برای اصلاحات اجتما عی ونشوونمای افکار ترقی خواهی حتی الامکـان سعی ومجاهدت به عمل آمده است‌که درنتیجه این مجاهدت وانکشافات مذکور، طبقهٔ معتنبهی جوانان ومنورین دروطن‌بوجودآمده‌که حالاآرزوی این تحول بیك عقیده قابل تطبیق منجر گشته است . بنابرآن وقت آن رسیده است کـــه برآن غوربیشتری بعمل آید وسعی جمیل به‌کار رودتابرای مردم افغانستان یك محیط اجتماعی وسیاسی مناسبتر ومترقی تر ایجاد شود که درآن سیر تکامل جامعه وافراد این وطن در شرایط موافق باعصروزمان ومطابق با تمنیات مردم امکان پذیر باشد .

خوشبختانه ازیکسو این هدف مارا اساسات دین مقدس اسلام تائیدمیکند وازسوی دیگـر سنـن و روایـات باستانـــی ملـی ماهـــم موید آن است . برای تثبیت هدفهای مهـــم ونقاط برجستهٔ چنین یك تحول باهمکاران خود تبادل افکارنمودیم وپس از مباحثات زیاد و طولانی ومجالس متعددبه این نظر رسیدیم که بایست باتوکل بخدای بزرگ بانیت نیـــك وباحوصلهٔ فراخ این‌نهضت طوری براه‌انداخته شودکه بالتدریج به صورت ارتقایی به مدارج عالیتر منجر ومنتهی گردد. نتایج مفید ومثبت آن بدست آید .

اجرای این مرام وپیشبرد این نهضت طوری پیش‌بینی شده است که درذیل به عـــرض میرسد :

الف :ـ قانون اساسی افغانستان که‌دروقت وزمان دیگر وشرایط ایجابات جداگانه تدوین وترتیب شده است باید تجدید گردد. قانون جدیدیکه باپیشرفت محیط سازگارباشد تدوین گردد. نقاط اهم وهدفهای برجستهٔ این قانون که پیش بینی میشود چنین است :

۱ـ رژیم شاهی مشروطه و طرز حکومـــت سیستم پارلمانی ودیموکراسی خواهد بـود . حقوق جلیلهٔ پادشاهی درآن تثبیت خواهد شد. پادشاه نشانهٔ وحدت وسلطه ملی وشیـرازهٔ تمامیت مملکت است . پادشاه بالاتراز قوای سه‌گانه قرار دارد . پادشاه بحیث فـــرد اول مملکت غیر مسئول شناخته میشود . لازمـهٔ عدم مسئولیت بی طرفی مقام پادشاهی دربرابر احزاب سیاسی وعدم مداخله در امو ر اداری است . یعنی‌حکومت انتخابی باداشتن مرام و هدف معین سیاست خارجی وداخلی و روش اقتصادی واجتماعی خود درتطبیق واجرای ان مسئول تمام امور جـزیـی وکـلی شنا ختـه خواهد شد.

غایه ونتیجهٔ مفید این ترتیب اینست که پادشاه بحیث رئیس مملکت درحالیکه نقطهٔ اتصال قوای سه گانه میباشد مرجع آمال‌همگان شناخته میشود . ازانتقاد واغراض محفو ظ ومصئون می ماند واین مصئونیت از اغـراض به محبوبیت اومی افزاید .

۲ـ قانون اساسی تصریح خواهد کـرد اعضای خانوادهٔ سلطنتی کدام اند وچه حقوق دارند.

۳ـ آزادی های فردی وحقوق شخص درین قانون اساسی تثبیت خواهد شد .

٤ـ درقانون اساسی جدید بوجود آمدن دو حزب پیش بینی خواهد شدکـــه در سیستم پارلمانی دوحزبه فعالیت خواهند کرد و برای اشغال‌کرسی های شورا، جد وجهد خواهنـد نمود .

حزب اکثریت راپادشاه به تشکیل حکومت ماءمور خواهد ساخت .

توضیح : چون فعالیت های حزبی ومجادلات سیاسی درمملکت مابی سابقه است ، بـرای اینکه این فعالیت هاموجب شقاق ونفاق نشود وهرج ومرج فکری وسیاسی نامطلوب بوجود نیاید برای مدت چهار سال که اغلبا مساوی بایك دورهٔشورا است تنها یك حزب اجـازه خواهد داشت فعالیت کند. کسانیکه مرام و اساس حزب مذکورومطابق آمال خودمی یابند درآن داخل وشامل میشوند ودر ادارهٔ مملکت طبق مرام حزب ، سهم میگیرند وکسانیکه به اساسات مذکور اتفاق نداشته باشند مـوقـع کافی برای غور وتفکر خواهند داشت‌که برای خودمرام واساسات دیگری‌را (که بخیروسعادت مملکت باشد) برگزینند. در صورتیکه چنیـن یك آرزوی‌دیگری درمحیط نشو ونمای کـافی کرده باشد بعداز انقضای مدت پیش بینی شده حزب‌دوم تاسیس شده خواهد توانست .

٥ـ قانون جدیدتثبیت خواهد کردکه دولت عبارت ازقوای‌سه‌گانه تقنینیه، قضائیه واجرائیه میباشد .

قوهٔ تقنین عبارت ازمجلس شوراست کـــه نمایندگان ازاعضای احزاب تثبیت شده ازحوزه های معینهٔ انتخابی خواهند آمد .

قوهٔ قضا متشکل از محاکم سه‌گانه ابتدائیه مرافعه وتمیزاست وبکلی ازتاثیرواعمال نفوذ قوهٔ اجرائیه محفوظ ومصئون خواهد بود . قوهٔ اجرائیه عبارت ازحکومت است‌که از حـــز ب اکثریت‌تشکیل شده‌است‌وبوسیلهٔ ارگان های معین اداری وامنی و دفاعی مملکـــت را اداره مینماید .

٦ـ قانون انتخابات طبق شرایط یك نظام پارلمانی دیموکراسی ترتیب خواهد شد .

ب:ـ درصورتیکه اساس تجدید قانون‌اساسی منظور شود وتصمیم برای تدوین نمودن آن گرفته شود اقدامات ذیل باید بعمل آید :

۱ـ نشریك ابلاغیه ازطرف دولت که آغـاز این تحول راباپروگرام آن به اطلاع عامـــه برساند.

۲ـ یکعده علماء ومتخصصین برای تثبیت وتدوین مسودهٔ قانون اساسی موظف خواهند شدکه مسودهٔ متذکره راحداکثر درمدت ۱۲ماه ترتیب نمایند .

نوت: دراعلامیه این مدت به اطلاع عامـــه رسانیده خواهد شد .

۳ـ بعداز تهیهٔ مسودهٔ، لویه جرگه دعـوت شودکه به حیث مجلس مبعوثان قانون مذکور راتدقیق وتصویب نمایند .

٤ـ بعداز تصویب قانون‌که ازطرف لویـــه جرگه بعمل آید، حکومت اجازه خواهـــد داد حزب اول بفعالیت درمحیط آغاز نمایدونمایندگان خودراازراه مرام حزبی بشورای ملی بفرستد ، برای اینکه این فعالیت صورت بگیرد حداکثر شش‌ماه فرصت داده خواهد شد. پس ازشش ماه شورای جدید افتتاح خواهد شد وحکومت جدیدازراه انتخاب، طبق قانون‌اساسی جدید تشکیل خواهد شد . درخلال مد تیکـــه قانون اساسی جدید ترتیب وتدوین میشود حکومت اجازه خواهد داد مطالعاتی درباره حـزب اول صورت بگیرد ومقدمات آن چیده شود .

ج:ـ درچنین سیستمی که آزادی عقیده و بیان ، آزادی اجتماع و فعالیت سیـاســـی بیشتر میشود وهنگامهٔ زندگی اجتماعی گرمتر میگرددحکومت سر پرست‌وحکومت‌های‌ما بعددیگر برای حفظ امنیت وحفظ مصالـح ملی به توجه ومراقبت جدی ترومسئولیت بیشتری مواجـــه خواهد شد .

برای اینکه بنام حفظ مصالح ملی وامنیت عامه حکومت متوسل به اقدامات اقتضـائی ز نظریات عندی نشود ودرین آزادی مدا خلـــۀ بیجانتماید وبرای اینکه حکومت مسئولیت خود راقانونی وبه‌حسن صورت انجام داده باشـــد بوجود آمدن یك قانون حفـــظ امنیت ضروری دیده میشود وهم تاسیس مراجع ومحاکم‌لازم است‌که به چنین قضایا رسیدگی کنند وبـه سرعت ممکنه به‌محاکمه وتعیین مسئولیت چنین متهمین بپردازند . لهذادرخلال مدتیکه قانون اساسی تدوین میشود مسودهٔ این قانون نیز تهیه گردد .

این است مفکوره وپیشنهاد ما (یعنی رفقای من ومن) که فوقا بحضورشما بعرض رسانیده شد .

اعلیحضرتا ! در اخیر میخوا هم عقیـــده شخص خودرا بعرض حضور شما برسانم،باید بدانیم‌که این اقدام وتحول بزرگی است وهر اقدام بزرگ مخصوصا درمملکت ماشك نیست که مشکلات بزرگی هم دربر دارد اما گذشتن ازمشکلات ورسیدن به منزل مقصود درصورتی ممکن است‌که انسانها اولابه آن مفکوره عقیدهٔ کامل داشته، مشکلات وخطرات آنرابه تمـــام معنی قبول کرده باشند وپس ازآن در تطبیق وعملی ساختن آن باعزم راسخ، خود گذری، صمیمیت وحسن نیت کامل به توکل خـدای بزرگ بکوشند وبیاری خدای متعـال پیشـ بروند .

درخاتمه صحت، موفقیت وسعادت داریـــن اعلیحضرت شماراازدرگاه خالق بی نیاز خـو تمنا دارم .

باحترامات فایقه

کابل ۱۱ حوت ۱۳٤۱ :

بعداز القاب !

نه سال قبل بماه میزان بودکه اعلیحضرت شمااعتماد فرموده وظیفهٔ صدارت عظمی رابه این جانب تفویض نمودید، درهمان وقت اگر بیاد حضور شما باشد عرض‌کردم که ممکـن اعظمی الی سه سال بتوانم این وظیفهٔ سنگین راایفا نمایم .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دکب په ۲۵دکندهار په ښارکی دمبارکی خرقی زیارت وکړاودحضرت سرورکاینات‌روح ته یی درود واستاوه .

دغه رازددولت ښاغلی رئیس او صدراعظم داحمدشاه باباومیرویس نیکه مقبروته‌لاړل او دهیواددتاریخ ددغو نومیالو او قهرمانو مړونو روح ته‌یی دعا وکړه .

دمالیی وزیر ښاغلی سیدعبدالاله، دتجارت وزیرښاغلی محمد خان جلالر، دپلان وزیر ښاغلی علی احمدخرم، دباندنیو چارو دوزارت سیاسی معین ښاغلی وحیدعبدالله ، دملکی هوایی اوتوریزم عمومی رئیس ښاغلی سلطان محمود غازی ، دکندهار والی ښاغلی محمدایوب عزیز، دقول اردوقوماندان اوددغه ولایت دلوړی رتبی پوشمیر مامورین‌ددولت له ښاغلی رئیس اوصدراعظم سره ملګری وو .

ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤد دکب په۲٦دکندهاردعسکری قواوپه قوماندانی کی دجمهوری اردوله سترو منصبدارانو سره دخبروپه وخت کی وویل :

داچه داردو وظیفه دخاوری اووطن ساتنه ده نوستاسو کاردی ، چه دملی نوامیسو دساتنی اودهیواد دنوی ترقی غوښتونکی نظام دهدفونو په لاره‌کښی دهرډول سرښیندنی او د ځان ځخه تیریدو دپاره چمتووأوسئ .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دسهارپه نهوبجوپه‌داسی حال‌کی چه دکندهار دقول اردو قوماندان ډګرجنرال محمدنعیم، دجمهوری اردو دګارد قوماندان جګړن محمد ضیاء او امنیه عمومی قوماندان ښاغلی عبدالقدیر له‌دوی سره ملګری وو دکندهار دقول اردو قطعات وکتل .

---

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم ، په مبارکه خرقه‌کښی دافغانستان دسعادت له‌پاره دعاکوی.



ددولت بناغلی رئیس اوصدراعظم دقول اردو دقوماندانی په دروازه کی وروسته له هغه چه موزیك ملی سرود غږاوه د تشریفاتی گارد احترام ومانه اوهغه یی معاینه کړ .

وروسته بیایی بیل بیل عسکری قطعات چه په خاص دسپلین سره دتعلیم په میدان کی راتول شوی وومعاینه کړل .

وروسته بیاددولت بناغلی رئیس اوصدراعظم دقول اردو دقوماندانی دجمهوریت په تالارکی داردوله سترو منصبدارانو سره یی دخبرواترو په ترڅ کی وویل :

خوشاله یم لهدی امله چه وخت می پیداکړ له تاسی سره دنژدی وغږیږم هیله لرم دافغانستان اردو دهیواد دسترو بنیگڼو دتامین په لاره کی سرلوړی اوله پخوانه زیات بریالی اوکامیاب اوسی .

دانقلاب مشر دنوی نظام په تینگولو کی داردوفعالانه برخی اخیستل یادکړل اوویی ویل: ستاسی وظیفه ستاسی دخاوری اووطن ساتنهده اودغهکار ددی غوښتنه کوی چه د وطن ته دخدمت پهلاره کی هرڅول تیاری ولرئ .

ددولت بناغلی رئیس او صدراعظم وویل : زمونږ دښمنان هلی ځلیکوی چهپه بیلو بیلو اشکالو دخلکو په مینځ کی تفرقه اوکینه پیدا کړی اوله هغوځخه دځان په نفع گټه واخلی خودتاریخ په شهادت تاسی ته وایم چه تول هغه وروسته پاتی کیدل چه خلکوته متوجهدی له همدغو عواملو ځخه پیدا شویدی .

هغه شواهد اوسندونه چهله همدغو تفرقه اچوونکو ولوځخه لیدل شویدیاوهم اوس اوس پدغه بارهکی په لاسکی شواهد اوسندونه شته، چه زمونږ دښمنانو دهیڅ ډول دسیسی تفرقی اوتوطئی دپیداکولو ځخه ډډه نده کړی اوتردی چهپه دغه لارهکی یی ، دخپلو ناوړو عملونو دپرمخ بیولو دپاره زښت ډیر لگښتونه هم منلیدی. نوددداسی دسیسودعواقبودمخنیوی دپاره وظیفتا حاضراوچمتواوسئ ځکه ستاسی وظیفی ډیری درندی دی .

زمونږ خپل دښمنان ښه پیژنو، نن دیوه تن اویاڅوتنوبرخه دملی ارمانونو دپورهکولودپاره بس نهده بلکه دااجتماعی تحول اوبدلون پهکار کیدټول ملت برخهاخیستل لازمیاوضروریدی .

دکندهار دقول اردو قوماندان دگرجنرال محمد نعیم ددولت بناغلی رئیساوصدراعظم ته داډورکړچه دخپل سترمشر دمعقولو وینااو نصیحتونو په اساس دکندهار دقول اردو منصبداران اوافراد دژوند تر وروستی سلگی پوری سربښندنی اوفداکاری ته چمتودی .

# عراق ته د دولت د بناغلي رئيس او صدراعظم سفر

ددولت رئیس او صدراعظم بناغلی محمدداؤد اودهغوي ملگری عراق ته‌دیوه رسمي‌اودوستانه سفر دپار د۱۳۵۳ کال دکب په ۲٦ نیټه په مخصوصه الوتکه‌کی له‌کندهار څخه هغه هیواد ته روان شول .

ددولت بناغلی رئیس اوصدراعظم په‌یوولسو بجواوپنځه څلویښتو دقیقو له ځپل استوګنځی څخه دکندهار بین المللی هوایی ډګرته‌ورسیدل.

دکندهار دښاراو دبین المللی هوایی ډګر ترمینځ لاره‌کی دکندهار په زرگونو ښاریانو داحساساتو په څرگندولو او (سفرپه خیر) د شعارونوسره ددولت دښاغلی رئیس‌اوصدراعظم دسپرلی موټربدرگه کاوه .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم په‌هوایی ډگرکی دتجارت له وزیر ښاغلی محمـد خـان جلالر، امنیه عمومی قوماندان ښاغلی عبدالقدیر دملکی هوایی اوتوریزم له لوی رئیس ښاغلی سلطان محمود غازی، دکندهار له والی، دقول اردوله قوماندان اودمرکزی دایرو له رئیسانو سره خدای پامانی وکړه .

وروسته بیا ښاغلی محمدداؤد پداسی حال کی چه دکندهار دقول اردوقوماندان، ورسره و دتشریفاتی گارد دسلام اواحترام مراتب ومنل اوهغه یی معاینه کړ .

پدغه وخت کی موزیك ملی سرود وغږاوه .

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم اودهغوی دملگرو دسپرلی الوتکه په دوولسوبجودکندهار له هوایی ډگرڅخه دبغداد لورته والوتله .

عراق ته په سفرکی دمالی وزیر ښاغلـــی سیدعبدالاله، دپلان وزیرښاغلی علی‌احمدخرم، اودباندنیو چارو دوزارت سیاسی معین ښاغلی وحید عبدالله ، ددولت لـه ښاغلـی رئیس او صدراعظم سره ملگری وو .

ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤد له خپلو ملگرو سره دیوه رسمی اودوستانه سفردپاره دافغانستان په‌وخت‌دکب‌په۲٦نیټه تر غرمی‌وروسته په‌دریو بجوبغدادته ورسیدل .

دعراق جمهور رئیس ښاغلی احمدحسن‌البکر دکابینی غړو، دبغداد والی اوبغداد ښاروال، دلویی رتبی دولتی مامورینو، په بغداد کـــی دافغانستان دجمهوری دولت لو ی سفیراستاد خلیل الله خلیلی، دافغانی لوی سفارت غړیو، په‌کابل کی دعراق لوی سفیر ښاغلی ناصـــر عبدالقادر الحدیثی، په‌بغداد کی اوسیدونکـــو کوردیپلوماتیکو د بغداد په هوایی ډگر کـــی ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم اود هغوی دملگروهرکلی وکړ .



ددولت بناغلي رئيس اوصدراعظم كله چه دبناغلي احمدحسن‌البکرپه ملگرتیادگارد، احترام معاینه کوی .

ددولت بناغلي رئيس اوصدراعظم ته كله چه له الوتكي څخه راکوز شو دعراق جمهوررئيس احمد حسن البکر ښه راغلی ووایه اووروسته له‌هغه ددواړوهیوادو مشرانو پداسی حال‌کښی چه موزيك دافغانستان اوعراق دجمهوريتونو ملي سرود وغږاوه دتشریفاتی گارد ، داحترام مراتب ومثل اوهغه یی معاینه کړ .

پدغه وخت‌کی یوی ډلی ماشومانو دگلانو گیډی ددولت بناغلي رئيس او صدراعظم ته وړاندی کړی اوبیا داحترام په رسم د توپ یوویشت ډزی وشوی .

پس له‌هغه ددولت بناغلي رئيس اوصدراعظم دعراق دجمهور رئيس په ملگرتیادهر کلی کوونکولیکوته لاړدکابینی له‌غړیو، دلویی رتبي له عسکری اوملکی مامورینو، دافغاني لوی سفارت له غړیو، په بغدادکی له اوسیدونکو افغانانواومحصلینو اوپدغه ښارکی له‌اوسیدونکو کوردیپلوماتیکو سره یی روغبړ وکړ .

دبغداد هوایی ډگرددواړو هیوادو په ملي بیرغونو ښکلی کړای شوی اودمیدان په‌وداني باندی دښه راغلی شعارونه لیدل کیدل .

دهوایی ډگرله مر اسمو وروسته ښاغلی محمدداؤد او ښاغلی احمد حسن البکر ، په مخصوص موټرکی پداسی حال کی چه دیوی ډلی موټرسایکل سپرولخوا بدرګه کیدل ددوی مخصوص استوګنځی ته روان شول .

ددواړوهیواد، دمشرانودسپرلی‌دموټرلاره‌له‌هوایی ډگرڅخه ترښارپوری دافغانستان اوعراق په‌ملي

بینوونو بیکلی کیږي. شوی اوډخته سیردواتوتو په هره برخه کی دبغداد ګڼ شمیر ښاریانوپه چکچکواو احساساتو په خرګندولو سره ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم هرکلی وکړ .

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم دسپرلی الوتکه دعراق خاوری ته درسیدو په وخت کی دعراق دهوایی قواوو دیوسیل جت الوتکـو لدمځواودبغداد ترهوایی میدان پوری بدرګه شوه اوکله چی دښاغلی محمدداود اودهغوی دملګرو دسپرلی دالوتکی دراکوزیدو اوداحترام دګـارد دمنلو په وخت کی هم جت الوتکـی داحترام په رسم والوتلی .

دمحلی وخت په دووبجواودیرشو دقیقو د بغداد دښار دسروزرو کلی دبغداد دښاروال ښاغلی ابراهیم محمد اسماعیل له خوا پداسی حال کی چه ښاغلی احمدحسن البکرهم حاضرؤ ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد ته ددواړوهیوادترمینځ ددوستی دنښی ښبانی په توګه وسپارل شوه .

ددولت ښاغلی رئیس او صدراعظم دبغـداد دښاردکلی دتسلیمیدوپه وخت کی دغه کـار ددواړو هیوادوترمینځ ددوستی علامی په توګه په تشکر سره مقابله کړه .

په دغه وخت کی ددولت دښاغلی رئیس او صدراعظم په ملګروسر بیره دعراق عدلیه‌وزیر اودجمهوری دفتر رئیس اوددواړو هیواد ولوی سفیران هم حاضر وو.

دمحلی وخت په پنځوبجو ښاغلی محمدداود دورک نومی عسکرځلی ته لاړاوډګلوګیډی یی وربانـدی کیښوده .

دګل اینیوودوپه وخت‌کی دعراق عدلیه وزیر دبغداد والی، ددغه هیواد دتشریفاتولوی مدیر اودافغانستان اوعراق لوی سفیران حاضر وو.

دمحلی وخت په اوه بجواودیرشو د قیقـو ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داود دعراق له جمهور رئیس ښاغلی احمدحسن‌البکر سره دجمهوری ریاست په مانی‌کی وکتل .

پدغه وخت کی دعراق یوشمیر وزیران اود افغانی هیات ځینی غړی هم حاضروو .

دمحلی وخت دکب په ٢٦ شپه په اتوبجـو اودیرشو دقیقو ددولت رئیس اوصدراعظـم ښاغلی محمدداود په‌هغی میلمستیا کی برخـه واخستله چه‌ددوی په ویاړدعراق دجمهوررئیس ښاغلی حسن البکر له خواشوی وه .

پدغی میلمستیاکی ددولت‌دښاغلی رئیس او صدراعظم په ملګرو سربیره دعراق دکابینـی وزیرانو په بغدادکی اوسیدونکوکوردیپلوماتیکو په بغداد کی دافغانستان دجمهوری دولت‌لوی سفیر اوپه کابل کی دعراق لوی سفیر برخه اخیستی وه .



ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤدپه بغدادکښی دعراق له جمهود رئیس ښاغلی احمد حسن البکر سره دکتلو اوخبرو اترو په حال کښی .

---

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دکب په ۲۷ نیټه دعراق له جمهور رئیس ښاغلی احمدحسن البکر سره ددغه هیواد دجمهوری ریاست په ماڼی کی کتنه او خبری وکړی .

پدغو خبروکی چه یوساعت روانی وی ددواړو هیوادو مشرانو دعلاقی وړمسئلو په باب خبری وکړی .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد اودهغه ملگرو پداسی حال کی چه دعراق عدلیه وزیر له دوی سره ملگری و دمحلی وخت دکب په ۲۷ دسهار په نهوبجو د حضرت غوث الاعظم دستگیر شیخ عبدالقادر جیلانی مقبری ته لاړل اوددغه حضرت روح ته یی دعا وکړه. ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دحضرت غوث الاعظم دستگیر دمزار دزیارت نه وروسته ددغه حضرت دمزار دپاره یوپوښ ور وبانبه دحضرت شیخ عبدالقادر جیلانی دمزار په دروازه کی دعراق داوقافو رئیس اودزیارت متولی ددولت دښاغلی رئیس هرکلی وکړ .

شیخ عبدالقادر جیلانی بن موسی، بن عبدالله بن یحیی چه دنسب سلسله یی حضرت علی کرم الله وجهه تهرسیږی په ۴۷۰ هجری کال کی دجیل په کلی کی زیږیدلی اوپه ۵۶۱ کال کی مړشوی دی .

حضرت شیخ جیلانی دقادریه طریقی موسس اومشر اومرشد دی .

وروسته له هغه ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤددامام اعظم (رح) زیارت ته لاړ اوددغه حضرت روح ته یی درود واستاوه .

پدغه وخت‌کی دحضرت امام دمزار متولـــی یوټوك قرآن عظیم الشان ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم ته ورووبانـه .

ښاغلی محمدداود قرآن عظیم الشان ښکل‌کړ اوهغه یی دیوه مقدس اومبارك سوغات په‌توګه ومانه .

نعمان بن صادق، بن زوتی مشهوربه‌امام‌اعظم اصلاًدکابل اوسیدونکی دی اودهغه پلارپه کوفه کی میشته شویدی .

امام اعظم (رح) دقرآنکریم حافظ او داسلامی فقه عالم اوداجتهاد خاوند اومذهبی امام د ی. چه په زیاترو اسلامی هیوادوکی زیات پیروان لری .

دغه‌راز ددولت ښاغلی رئیس او صدراعظم اودهغه ملګری په‌کاظمین شریفین کی دامام موسسی‌کاظم اوامام ابویوسف مقبروته لاړل او ددغو امامانو روح ته یی دعاوکړه . دغه راز ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دکب په ۲۷ دبغداد په ښارکی دعراق مرکزی موزیم وکوت.

ښاغلی محمدداود اودهغوی ملګری پداسی حال‌کی چه دعراق عدلیه وزیر اودتشریفاتـــو رئیس اودافغانستان اوعراق لوی سفیران له‌دوی سره ملګری وو ترغرمی وروسته په مخصوصه بیړی‌کی ددجلي په سیندکی وګـرځیدل اود شاوخوا منظری یی ولیدلی .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم په کربلا کی دامام حسین (رض) اودغه راز دحضـرت عباس (رض) مرقد ته‌لاړل او دعالم اســلام ددغودووسترشخصیتونوروح ته یی دعاوکړه .

کله چه ددولت ښاغلی رئیس مبارکومزارونوته تشریف یووړ دعراق عدلیه وزیر هم له دوی سره و.

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دحضرت‌عباس په مرقد کښی



دمالیي وزیر ښاغلي سید عبدالاله او دپلان وزیر ښاغلي علي احمدخرم دکب په ۲۷مازیگر دعراق دمالیي اوپلان له وزیرانو سره خبري وکړي .

پدغو خبروکي چه څه ناخه دوه ساعته رواني وي دافغانستان اوعراق ترمنځ داقتصادي او تخنیکي همکاري دمسئلو په باب بحث وشو .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلي محمدداود دکب په ۲۷ ترغرمي وروسته په دریوبجو په بغدادکي دحضرت سلمان فارس په زیـــارت مشرف شول اودغه راز ددولت ښاغلي رئیس اوصدراعظم دکسري ماڼۍ ولیدله .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلي محمدداؤد دکب په ۲۷ مازدیگرپه پنځوبجوپه مخصوصه بیړۍکي ددجلي سیند ولید . پدغه کتنه‌کـــي ساحل ته نژدي جوماتو نه او وداني یي هـم ولیدلي .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلي محمدداؤد اوورسره هیات دکب په۲۸نیټه ترغرمي وروسته په نجف اشرفکي دحضرت علي کرم اللهوجهه مزارته لاړل اوددغه حضرت روح ته‌یي دعاوکړه.

په دغه وختکي دمزار متولي یوتـــوك قرآن عظیم الشأن اویوه جوړه عبا ، ددولت ښاغلي رئیس اوصدراعظم ته اهداء کړل .

ددولت ښاغلي رئیس‌اوصدراعظم دکب په۲۸ نیټه دبابل تاریخي ښاروکوت . دبابل ښارچه زمونږملي مشر هغه وکوت یو تاریخي ښاردي چه دهغه قیمتداره آثار تراوسه پوري‌کتوونکي حیرانوي .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلي محمدداؤد دکب په ۲۸ شپه په اووبجو دعراق دجمهـــور رئیس مرستیال ښاغلي صدام حسین دبغـــداد په ښارکي پخپل استوگنځي کي ومانه اولـــه هغه سره یي دوستانه خبري‌وکړي په‌دغوخبرو کي دخپل مینځي مسئلو اودسیمي دموضـــوع دمنځني ختیځ مسئلي اودنړۍ مسئلو په باب بحث وشو .

پدغو خبروکي دباندنیوچارو دوزارت سیاسي معین ښاغلي وحیدعبدالله او په بغداد کښي دافغانستان دجمهوري دولت لوی سفیر استاد خلیل‌الله خلیلي له افغاني لوري څخه اودعراق دباندنیو چارو وزیر سعدالعمادي اوعدلیه وزیر ډاکتر ساوي اوپه کابل کي دعراق لوی سفیر ښاغلي ناصر عبدالقادر الحدیثي دعراق له‌لوري برخه اخیستي وه .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلي محمدداؤد دکب په ۲۸ دماښام په اتوبجواوديرشو دقیقو ددارالسلام په ماڼۍکـــي دعراق جمهور رئیس ښاغلي احمدحسن البکر ته میلمستیا کړي وه .

پدي میلمستیاکي چه ترلسو بجو پوري‌دوام وکړله دوی سره په ملگري هیات ســـر بیره دبعث دگوندمشر توب یوشمیر غړیو ، دعراق دکابیني هیات، کوردیپلوماتیکو، په کابل کي دعراق لوی سفیر ښاغلي ناصر الحدیثي اوپه بغدادکي دافغانستان دجمهوري دولت لـو ی سفیر استاد خلیل الله خلیلي برخه اخیستي وه .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلي محمدداؤد له ملگري هیات سره په عراقکي ددري ورځني رسمي سفرله پای ته رسیدووروسته دکب په ۲۹ سهارله بغدادڅخه دهیواد لورته را روان شول .

ددولت دښاغلي رئيس اوصدراعظم دسپرلي موټر پداسي حال‌کي چه دعراق جمهور رئيس ښاغلي احمد حسن البکرهم له دوی سره و ترغرمی دمخه په نهوبجو اوپنـــځه خلويښتو دقيقو ددولت دښاغلي رئيس له استوګنځـــي څخه دبغداد هوايي ډګرته ورسيد.

ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم پداســي حال‌کي چه جمهور رئيس ښاغلي احمدحسن‌البکر ورسره ملګري ودمخه ښي کونکو ليکوته لاړ اودعراق دکابيني دبعث دګوند دمشـر تـوب له يوشمير غړيو ، په بغدادکي اوسيدونکـو کورديپلوماتيکو، دلويي رتبي ملکي اوعسکري يوشمير مامورينو، دعراق د تشريفاتو درئيس ددواړو هيوادوله لويو سفيرانو اوپه بغدادکي داوسيدونکو افغانانوسره خداي پاماني وکړه.

وروسته له هغه دافغانستان دجمهوريت او دعراق دجمهوريت ملي سرود وغږول شو او ددولـت ښاغلي رئيس او صدراعظم د عـراق دښاغلي جمهور رئيس په ملګرتيا داحــترام دګارډدسلام ومانه اوهغه يي معاينه کړ .

پدغه وخت‌کي داحترام په رسم د توپ ۲۱ ډزي وشوي .

ددولت ښاغلي رئيس‌اوصدراعظم‌سره‌دالوتکي ترزينې پوري، ښاغلي حسن البکر ملګری و . پدغه وخت‌کي دباندنيو چارو وزير ښاغلـي سعدون حمادي اوددواړو هيوادو لوی سفيران هم حاضرو .

ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم دعراق نه جمهور رئيس سره دخداي پاماني په وخت‌کي دهغه تاوده اودزړه له‌کومي هرکلي له امله چه دوی اوورسره هيات ته دعراق دحـکـومت او خلکوله خواوړل شوی، خوښي څرګنده کړه .

دعراق جمهور رئيس ښاغلي حسن البکــر په مقابل کي له‌دی امله چه ددولت ښاغلـــي رئيس اوصدراعظم ددوی هيوادته سفر وکـــړ اووخت پيداشو چه يودبل سره دنژدی څخه روږدی شي‌اوخبري‌اتری‌وکړی خوښي اوقدرداني څرګنده‌کړه اوددولت ښاغلي‌رئيس‌اودافغانستان حکومت اوخلکوته يي خپلي ښي هيلي څرګندي کړی . ددولت دښاغلي رئيس اوصدراعظـم او ورسره هيات دسپرلي الوتکه د کب په ۲۹ ترغرمی دمخه په‌لسو بجواو لسو دقيقو دبغداد له هوايي ډګرڅخه راوالوتله .

ددولت دښاغلي رئيس اوصدراعظم دمسافرت دعکسونوالبم دعراق دجمهور رئيس ښا غلـــي حسن البکر له خوادهوايي ډګرپه سالون کي دوی ته ورکړ شو .

ددولت دښاغلي رئيس اودهغه سره ملگری هيات دسپرلي الوتکه د۱۳۵۳ کال دکب په۲۹ ترغرمی وروسته په دوو بجواوپنځه څلويښتو دقيقو دکابل په بين‌المللی هوايي ډگر کښی رابښکته شوه .

ددولت ښاغلی رئيس اوصدراعظم په داسی حال‌کی چه موزيك جمهوری ملی سرود وغږاوه دتشريفاتو دگار دسلام اواحترام مراتب ومنل اوپه داسی حال‌کی چه لوی درستيزله دوی سره وه داحترام گاردیی معاينه کړ .

ددولت ښاغلی رئيس اوصدراعظم، لەښاغلی محمدنعيم، دصدارت له مرستيال ډاکتر محمد حسن شرق، دمرکزی کميتی له غړيو، دکابينی له غړيو، دجمهوری گاردوله جنرالانو او خواتو منصبدارانو، دلويی رتبی له مامورينو په کابل کی له اوسيدونکو پشتونستانيانو او ددوستو هيوادوله سفيرانو سره روغبړ وکړ .

ددولت ښاغلی رئيس اوصدراعظم ته، دعـراق‌له دوستانه سفرنه، دبيرته راتلوپه وخت‌کښی دکابل په بين المللی هوايي ډگرکښی دښاغلی‌محمدنعيم له خواهرکلی وويل شو .



# دافغانستان او عراق گډه اعلامیه

دعراق دجمهور رئیس ښاغلي احمدحسن‌البکر په بلنه دافغانستان د جمهوري دولت رئیس ښاغلي محمدداود د ۱۳۵۳ کال دکب له شپږ ویشتمې نیټې څخه تر۲۹ نیټې پورې عــراق ته رسمي سفر وکړ .

ددې ترمینځ ددواړو دوستوهیوادو دښو مناسباتو په سیمه اودنیاکي دپرمختیاو په‌باب پراخې خبرې وشوې .

دافغانستان ددولت رئیس ښاغلي محمدداود دانقلابي عالي شورا درئیس نایب ښاغلي صدام حسین په استوګنځي کې ومانه .

دافغانستان اوعراق درسمي مامورینو ترمینځ دهغوصمیمي روابطو دخبروپه چوکاټ کې چه ددوې دهیوادو ترمینځ په ټولو برخوکې شته خبرې وشوې .

درانده میلمانه او هغه هیات چه‌له‌دوې سره ملګری و، په عراق‌کې دترقي اوبریالیتوبونونه ځینومظاهروسره چه دبعث دعربي سوسیالیستي ګوند په مشرۍ دانقلاب له خوا شوي دي‌آشنا شول. دوی ددغوبریالیتوبونو اوکامیابو له امله دخپلې قدرداني اوتقدیر مراتب څرګند کړل .

دافغانستان ددولت ښاغلي رئیس او هغوی سره ملګری هیأت په بغداد اوکربلاکي مقدس اماکن هم ولیدل .

دعراق رسمي مامورینو او خلکو ددوی تود اودوروړګلوی هرکلي وکړ .

دهغودوستانه مناسباتو سره سم چه له‌نیکه مرغه دافغانستان دجمهوریت اوعراق تر مینځ شته، دصمیمیت اوتفاهم‌په‌فضاکي خبرې‌پداسې توګه وشوې چه په ټولوبرخو کې په مثبته توګه ددغو مناسباتو دپرمختیا سبب شي .

دواړو خواو په خپله سیمه‌کي دحالاتو اوله هغوڅخه دپیداشویو خطرونو په باب چه سوله اوامنیت تهدیدوي غوروکړ .

دواړو خواو پدغه بر خه کــې خپله عقیده څرګنده کړه چه دغه بحراني حالات داستعمار دطرحواودسیسو محصول دي اوپه سیمه کـې امنیت‌اوسوله‌یې په‌خطرکی‌اچولي اودهغی‌دخلکو داجتماعي پرمختیا اوپرمختګ خنډ ګیږي .

دواړو خواو په روغه جوړه‌کي دګډژوند لـه اصولو ددولتونو ترمینځ دقوې له استعمال څخه دډډې کولو دبرابر حاکمیت اودنورو دولتونوپه کورنیو چاروکي دلاس نه وهلو اودروغي جوړې په وسایلو سره دبین المللي مسئلو دحل او

ددولتونو ترمينځ حقوقو اودملګروملتو دمنشور له اصولوسره سم اساساتو په اتکاء پهمتقابله احترام باندې خپل باور تائيد کړ .

دواړو خواو په عربي سيمه کې دبحرانې حالت په باب خبرې وکړې دوى دعربو خلکو په خلاف صهيونستي تيرى وغانده اود خپل دغه اعتقاد ټينګاريې وکړ چه پدغه سيمه کې دعادلانه حل لاره دعربي نيول شويو سيمو د پوره خوشي کيدو اودفلسطين دخلکو دحقوقو داعاده کيدو تروخته پورې په خپله پلارني خاوره، يعنې فلسطين‌کې ترلاسه کيدى نشي .

دواړو خواو دنه انسلاك دسياست په نسبت چه بين المللي ټولني ته يې ارزښت منـــد خدمتونه کړي دي، خپل ملاتړ يوځل بياتائيد کړ .

دوى دنه انسلاك دنهضت ديووالي اوتسانـد دساتني داهميت سره موافقه وکړه اوتصميم‌يي ونيوچه دناپييلوهيوادو دجرګي دپوره کاميابي دتامين پهلاره‌کې چه په ۱۹۷٦ کال کې پـه کولمبوکې جوړيږي همکاري‌وکړي. دافغانستان ددولت ښاغلي رئيس اودعراق ښاغلي جمهور رئيس پهاقتصادي ساحوکې، په هغوانکشافاتو غوروکړ چه په مستقيم ډول يې په پرمختيا يې هيوادو اغيزه کړي .

دوى دپرمختللو هيوادو څخه وغوښتل چــه دپرمختيايي هيوادو نو سره خپل اقتصـــادي روابط دبرابرى اوعدالت پربنسټ ټينګ‌کړي .

دوى پدې باره‌کې خپله عقيده څرګنده کــړه چه پرمختيايي هيوادونه دي دبشپړ اوګړندي پرمختګ دترسره کيدواوپه ځان دويسا پـه اساس اقتصادي اوتخنيکي همکاري په خپـل مينځ کې تقويه کړي .

دوى هغه ګواښ غندلي چه دځينو هيوادو دطبيعي منابعو دنيولو په باره‌کې شوى دي او څرګنده يې‌کړه چه دغه‌کار بين المللي سوله اوامنيت تهديد کړي اودملګروملتو د منشور داصولو نه تيرى بلل کيږي .

دبين المللي اقتصادي بحران دحالت په‌باره کې دواړو خواو موافقه وکړه چه دودې په‌حال کې هيوادونه اوپه تيره بياهغه چه اومه مواد لري ددغه بحراني حالت په پيداکولو کې هيڅ ډول مسئوليت نلري. بلکه داوسني پولي‌تورم اوداقتصادي ګډوډي مشکلات دځينو پرمختلليو هيوادونو داقتصادي سيا ستونو څخه پيـــدا شويدي .

دواړو خواو داستعمار ، دنوي استعـمار ، دپرديودتسلط اودنژادي توپيرد سياست پــه ضد دآسيا ، افريقااو لاتيني امريکا دخلکو دمبارزو سره خپل ملاتړ څرګند کړ .

دوى پهافريقاکې دپرتګال‌دپخواني استعماري

تسلط دمينځه تللو اودانګولا دخپلواکۍ بنسـه هرکلی وکړی .

دوی دجنوبی افریقا دنژاد پالنی سیاستونه چه دبشریت وجدان ته سپکاوی دی محکـوم کړل .

دوی دجنوبی افریقا له خوادنامبیبیا غیـــر قانونی اودملګروملتو دفیصلو په خلاف نیول په‌کلکه محکوم کړل .

دواړوخواوپدغی خبری عقیده څرګنده‌کړه چه دسیمی دهیوادونو ترمینځ داختلافونو دحل ډیره ښه وسیله خبری اودعدالت داصولوسره سم تفاهم دی .

دواړوخواو دهند په اقیانوس کی دورځ په ورځ زیاتیدونکی‌نظامی فعالیت په باب اندیښنه څرګنده کړه .

ددواړو خواونظریه دآسیادهیوادونو دسولی اوامنیت دټینګښت په غرض دنظامی اډواولانجو دنه‌لرونکی اودسولی دیوی سیمی په توګـــه دهنددااقیانوس داعلام په باب یوشان وه .

دواړو خواو دعراق اوایران دګاونډ یوهیواد ترمینځ داختلافونو دحل په باره‌کی دالجزایر په موافقو باندی خوښی وکړه اودهغو ملاتـړ یی وکړ .

ددولت دوو رئیسانو د افغــانستان او عراق ترمینځ دوه اړخیزعلایق اوهغه موافقی چه ترننه پوری ددواړو هیوادو ترمینځ په اقتصــادی ، تجارتی، کلتوری اوتخنیکی برخوکی لاس لیك شویدی مطالعه کړی .

دوی ددواړوهیوادونوترمینځددوو، ورونوملتونو دهیلوسره سم دهمکاری دساحو دزیاتی‌پراختیا اوانکشاف دپاره خپل تیاری څرګند کړ .

دافغانستان دجمهوری دولت رئیس ښاغلی محمدداود دعراق جمهور رئیس ښاغلی احمـد حسن‌البکر اودعراق دجمهوریت دانقلابی عالی شورامرستیال ښاغلی صدام حسین ته بلنــه ورکړه چه افغانستان ته‌راشی . دابلنه دهغوی له خواپه تشکر سره ومنل شوه دمسافرتونو نیټی به وروسته وټاکل شی .

# ایران ته د دولت د ښاغلي رئیس او صدراعظم سفر

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دایران دشاهنشاه اعلیحضرت محمد رضا شاه پهلوی په بلنه دیورسمی اودوستانه سفردپاره د۱۳۵٤ دغوایی په ٦نیټه له غرمی وروسته په یوه نیمه بجه په مخصوصه الوتکه کی تهران ته لاړ .

زمونږملی مشر دکابل بین المللی هوایی ډگرته درسیدوپه وخت کی، دښاغلی محمدنعیم، دعظمی صدارت دمرستیال ډاکتر محمد حسن شرق، دمرکزی کمیټی دغړیو اودکابینی دهیات دجمهوری اردو دجنرالانو اوسترو منصبدارانو، یوشمیر دولتی سترو شخصیتونو، په کابل کی اوسیدونکو پښتونستانیانو اودوستو هیوادو لوی سفیرانو اودایران دلوی سفارت دغړیـو سره چه دمخه ښی دپاره حاضروو خدای پاماني وکړه .

وروسته ښاغلی محمدداؤد پداسی حال کـی چه لوی درستیز ډگرجنرال عبدالکریم مستغنی ورسره وو دجمهوری گارددسلام اواحترام مراتب ومنل اوهغه یی وکوت . پدغه وخت کی موزیك ملی سرود وغږاوه .

وروسته ښاغلی محمدداؤد الوتکی ته تشریف یووړ اوددوی دوړونکی الوتکی ترنژدی پوری ښاغلی محمدنعیم ، ډاکتر شرق او دجمهوری دولت دمرکزی کمیټی ځینی غړی او دکابینی غړی ددولت درئیس سره لاړل .

پدغه سفرکی ددولت درئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤد سره دتجارت وزیر ښاغلـی محمد خان جلالر، دپلان وزیر ښاغلی علی احمد خرم اودباندنیو چارو دوزارت سیاسی معیـن ښاغلی وحید عبدالله ملگری وو .

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم او ددوی دملگرو الوتکه دایران په محلی وخت په دریو بجواوشلو دقیقو دمهرآباد په هوایی ډگر کی ښکته شوه .

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم او ددوی دملگرو الوتکه دایران فضاته دورننوتلو په وخت کی دهغه هیواد دیوسل نظامی جت الوتکوله



ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد ته‌دمهرآباد هوایی ډگرته درسیدلو په وخت‌کښې دایران دشاهنشاه اعلیحضرت محمدرضاپهلوی‌له خواتود اوصمیمانه هرکلی وویل شو .

خوادمهرآباد ترهوایی ډگرپوری بدرگه شوه .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداود ته دمهرآباد په هوایی ډگرکی درسیدلو په وخت کی دایران د شاهنشاه اعلیحضرت محمدرضاء پهلوی له خواتودهرکلی وویل شو .

دالوتکی نه دانقلاب دمشردښکته کیدو په وخت‌کی اعلیحضرت‌دایران شاهنشاه. صدراعظم ښاغلی امیرعباس هویدا دوی ته هرکلی‌ووایه

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد اواعلیحضرت دایران شاهنشاه وروسته له‌هغه چه دافغانستان دجمهوری دولت ملی سرود او د ایران شاهنشاهی سلام وغږول شو د تشریفاتو گارد وکوت اودگارد داحترام مراتب یی ومنل .

دغه وخت داحترام په ډول دتوپ ۲۱ ډزی وشوی . وروسته د دواړو هیوادو مشران دهرکلی کوونکو دلیکو خواته لاړل . دحکومت له‌غړیو. دایرانی‌پوځی‌اوملکی ستروشخصیتونو په‌تهران کی دافغانستان دجمهوری دولت دلوی سفیر ښاغلی زلمی محمود غازی ، په کابل‌کی دایران دلوی سفیرښاغلی حسین داؤدی سره یی روغبړوکړ. اوپه تهران‌کی دافغانی‌محصلینو اواوسیدونکو افغانانو اودتهران دزیات شمیر ښاریانوله خواچه هوایی ډگرته راتلول شوی



ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم ، پداسی‌حال‌کښی چه دایران شاهنشاه هم حاضر دی
له یوتن ایرانی سره روغبړ کوی .

---

وو، په پرله پسی چکچکوداحساساتوپه ښکاره کولواوددواړوهیوادونو دملی بیرغونو په رپولو اودښه راغلاست په شعارونو اوددولت ښاغلی رئیس ته دګلانو دګیډی په وړاندی کولو یی هرکلی وشو .

دهوایی ډګر دمراسمو دپایته رسیدو نه وروسته ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم او اعلیحضرت دایران شاهنشاه، پداسی حال کی چه ددوی دسپرلی موټردیوشمیرموټر سایکل سپرو له خوابدرګه کیده د ګلستان په ماڼی کی خپل استوګنځی ته لاړل .

څه وخت چه زمونږملی مشر دسپرلی موټر دګلستان دماڼی په لورروان ؤ دشهیادپه ډګر کی دلنډتم‌کیدوپه ترڅ‌کی دتهران دښار کلی اودتهران دښار دخلکوسوغات دتهران ښاروال له خوادددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم تـه وړاندی شو .

هوایی ډګراوددولت‌دښاغلی رئیس‌اوصدراعظم دسپرلی دتیریدوواټونه ددواړو هیوادونو پـه ملی بیرغونو اودښه راغلاست په شعارونـــو ښکلی شوی ؤ .

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم دموټـر دتیریدوپه واټونو کی دمهرآباد له هوایی ډګر نه دګلستان ترماڼی پوری، دتهران ګڼ شمیر خلك چه ښځی ، نارینه اودښوونځیوزده‌کوونکی پکی ولاړ وو ددواړو هیوادونو دملی‌بیرغونو په ښورولوسره یی ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤدته هرکلی ووایه .



ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤد دایران اعلیحضرت شاهنشاه سره د نیاوران
په ماڼۍ کښې دکتنې په ترځ کښـې خبرې وکړې .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دګلستان په ماڼۍ کې دلږې دمې نه وروسته داعلیحضرت رضا شاه کبیر مقبرې ته لاړ اودګـلو ګیډۍ یې پرې کیښودله اودمقبرې په وره کې داعلیحضرت شاهنشاه ورورو والاحضرت شاهپور محمود رضاء ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم ته هرکلی ووایه .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دغوایی په ۷ د ماښام په اتو بجو په هغې میلمستیا کې برخه واخیسته چه دایران د شاهنشـــاه اعلیحضرت محمدرضاشاه پهلوی له خوادنیاوران په ماڼۍ کې ددوی په ویاړ شوې وه

ښاغلی محمدداؤد په اتو بجو اوپنځه ویشتو دقیقو کې دنیاوران ماڼۍ ته ورسیداو دماڼـۍ په دروازه کې دایران اعلیحضرت شاهنشاه او علیاحضرتې ملکې له خوایې هرکلی وشو اویو دبل په ملګرتیا یې دماڼۍ دهرکلیو تالارتـــه تشریف یووړ .

پدغه وخت کې اعلیحضرت شاهنشاه دایران دسلطنتې کورنۍ غړې ، ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم ته وروپیژندل .

پدغې میلمستیاکې ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم په ملګروسره بیره، دایران دسلطنتې کورنۍ غړیو، صدراعظم ښاغلی امیرعباس هویدا ددواړو مجلسونو رئیسانو، دنفتودملی شرکت دمدیره هیات رئیس اوعامل مدیر، ددربار وزیر، دباندنیو چارو وزیر، دکابینې یو شمیر نـورو غړیو، افغانی اوایرانی لویو سفیرانو، په تهران کې دشوروی اتحادلوی سفیر اوشیخ السفرا اویوشمیرنورودولتی شخصیتونوبرخه اخیستې وه .



ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤد کله چه په تهران کښې افغانی محصلین منی .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دایـران داعلیحضرت شاهنشاه په ملگرتیا دمابنامنی له خوړلووروسته هغه کنسرت واوریدچه دفرهنگ اوهنردوزارت دهنرمندانوله خوا اجرا شو .

دافغانستان دجمهوریت ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم او دایران اعلیحضـرت شاهنشاه پدغی میلمستیا کی ویناوی وکړی .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دتهران په وخت دغوایی په ۷نیټه پهدری نیمو بجودگلستان پهماڼی کی افغانی محصلان پداسی حال کی چه دسالون فضاددوی دانقلاب دمشرپه مقابل کی دافغان ځوانانوله خوښی اواحساساتو ځخه ډکه وه ومنل .

دخوښی اوخوشحالی پهڅپوکی ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم، محصلین ترټولوزیات دعلم اوپوهی تحصیل اودخپل وطن پهمقابل کی داتلونکو مسئولیتونوته متوجه کړل .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دایـران دناسیونال موټرجوړولو دفابریکی بیلی بیلی برخی ولیدلی . ددولـت دښاغلـی رئیس او صدراعظم دکتنی پهوخت کی موظفو ماهرانو په هره برخه کی توضیحات وړاندی کول .

دفابریکی دروازه اودهلیزونه دافغانستاناو ایران په ملی بیرغونو ښکلی کړی شوی وو اودفابریکی کاریگرو په چکچکو اوداحساساتو په څرګندولو سره ددولت دښاغلـی رئیس او صدراعظم دورتګ درناوی وکړ .

په تهران کی داوسیدونکو سیاسی هیاتونو رئیسان، دایران په وخت دشپی په اتو بجـو دشاهنشاهی تشریفاتو دعمومی رئیس له خوا دگلستان دماڼی په تالار کی ددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد حضورته معرفی شول .

دسیاسی هیاتونو درئیسانو دمعرفی په وخت کی ددولت درئیس اوصدراعظم ورسره ملګری ددواړو هیوادولوی سفیران اودایران دباندنیو چارودوزارت د تشریفاتو عمومی رئیس هم حاضروو .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دغوایی په ۸سهار په محلی وخت په نهو بجو دایران صدراعظم ښاغلی امیر عباس هویدا او دباندنیو چارو وزیرښاغلی عباس علی خلعتبری دګلستان په ماڼۍ کی په خپل رسمی استوګنځی کی ومنل .

په دی کتنه کی ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دایران دصدراعظم اودباندنیو چاروله وزیرسره په خپل مینځی روابطو اودسیمی په مسالو خبری وکړی .

دتجارت وزیر ښاغلی محمدخان جلالر، دپلان وزیر ښاغلی علی احمدخرم، اودباندنیو چارو دوزارت سیاسی معین ښاغلی وحید عبدالله ، په تهران کی دافغانستان د جمهوریت لوی سفیر ښاغلی زلمی محمود غازی د افغانستان له خواپه خبروکی برخه درلوده .

دایران لەخوادهغه هیوادصدراعظم اودباندنیو چاروپەوزیر، سره بیره پەکابل کی دایران لوی سفیر ښاغلی حسین داؤدی هم ګډون درلود .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دخبرودپای ته رسولو وروسته ، په مخصوصه الوتکه کی دتهران نه اصفهان ته ورسیدل او دهغه ځای پەهوایی ډګرکی ورته دوالیښاغلی اکبرزاد، دعسکری قواء دقوماندان اونورومحلی شخصیتونو له خواتودهرکلی وویل شو .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم کله چه دایران صدراعظم امیرعباس هویدا منی او خبری ورسره کوی .





ددولت بناغلي رئيس اوصدراعظم په اصفهان کښي، يوماشوم باندې، کله چه دوی ته ډگلو کيږي ورکوی مهرباني کوی .

داصفهان والي الوتکي ته نژدې په يـــوه ويناکښي ددولت بناغلي رئيس او صدراعظم ته ښه راغلاست ووايه . او ورپسي ښاغلي محمدداؤد پداسي حال‌کي چه داصفهان والـي اودعسکري قواوؤ قوماندان ورسره ملگري وو دتشريفاتي گارد دسلام اواحترام مراتب ومنل اوهغه‌يې وکوت. دغه وخت موزيك دافغانستان اوايران ملي سرود وغږاوه . کله چه ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم د هرکلي کوونکـو دليکوخواته وخوزيدل يوشمير ماشومانوداصفهان دښاريانو په نمايندگي ښاغلي محمدداؤد تـــه دگلوگيډي وړاندې کړې اودغه ښارته يـــې ددوی دورتگ ښه راغلي ووايه ددولت ښاغلي رئيس په ماشومانو باندې مهر باني وکـــړه وروسته له‌هغه‌ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم ته داصفهان دوالي له خوامحلي شخصيتونـه ورمعرفي شول اوله هغوسره يې روغبړ وکړ اودهوايي ډگر دمراسمو په پای‌کي په‌مخصوص موټرکي داصفهان ښارته وخوزيدل . يوشمير موټرسايکل سپرو ددولت دښاغلي رئيس او صدراعظم دسپرلي موټردهوايي ډگـر څخـــه ترښاره بدرگه کړ .

ددولت دښاغلي رئيس اوکورسره ملگرو د سپرلي دموټرونو دتگ لارې دواړخونو دواړو غاړي دافغانستان اوايران په‌ملي بيرغونوښکلي کړي شوي اوداصفهان ښاريانو ددغو واټونو په غاړه‌کي داحساساتوپه څرگندولو اودچکچکو په‌کولوسره اصفهان ته ددولت دښاغلي رئيس اوصدراعظم اودده دملگرو رسيدوته ښه راغلي اوخيرمقدم ووايه .

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم سره په دغه سفرکې ددوی سره په ملګرې هیأت سربیره په تهران کې دافغانستان لوی سفیر دایران دزراعت اوطبیعي منابعو وزیر ښاغلی روحانی، ددولت دښاغلي رئیس اوصدراعظم کوربه په کابل کې دایران لوی سفیر ښاغلی حسین داؤدي اودشاهنشاهي تشریفاتو دلوی ریاست وکیل ښاغلی رستم امیر بختیاري ملګري وو.

ددولت ښاغلي رئیس اوصدراعظم له غرمې وروسته له میدان شاه، دقاپو، ستره بناء اود شاه اوسیدلطف‌الله جامع جوماتونه چه ددغه ښاردمعماري پخواني آثاردي ولیدل دغه‌رازددولت ښاغلي رئیس اوصدراعظم داصفهان دښارملي هنرونه وکتل.

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد اوورسره هیات بیګاشپه په هغې میلمستیا کې ګډون وکړچې داصفهان دوالي له خوا ددوی په ویاړشوې وه.

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد **اود هغوی سره ملګری هیات په محلي وخت** دغوایي په ۹ ترغرمې دمخه دفارس دایالت د لرغونو آثارو اودلیدو، وړ سیمو دکتنې دپاره شیرازته ورسیدل.

ددولت دښاغلي رئیس اوصدراعظم دسپرلۍ الوتکه دمحلي وخت په لسو بجو اولسودقیقو دشیراز په هوایي ډګرکې راکوزه شوه. اوکله چه ددولت ښاغلي رئیس اوصدراعظم له‌الوتکې څخه رابښکته شودفارس دوالي ښاغلي منوچهر بهروز له خوایي هرکلي وشوپدغه وخت کې

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلي محمد داؤد،داصفهان دتاریخي آثاروپه باب دیوه میلمه‌پال توضیحات آوري .



يوى كوچنى نجلۍ دشيراز دښاريانو په نمايندگي ددولت ښاغلي رئيس او صدراعظم ته دگلو گېډۍ ورکړه اودفارس ايالت ته يې دهغوى دتگ ښه راغلي ووايه .

وروسته بياښاغلي محمدداؤد پداسي حال کې چه دفارس والي لەدوى سره ملگري وه پس لەهغه چه موزيك دافغانستان جمهوري‌ملي سرود اوداېران شاهنشاهي سلام وغږاوه ، دتشريفاتي قطعي داحترام‌مراتب ومنل اوهغه‌يې معاينه کړه .

ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم دفارس دايالت دلويي‌رتبي له عسکري اوملکي مامورينو سره چه هوايي ډگرته دهرکلي دپاره راغلي وو، روغبړوکړ اودمراسموپه پای‌کې دمخصوص موټرپه وسيله دداريوش په هوټل کې ددوى استوگنځي ته روان شول .

ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم اوله‌هغوى سره ملگري هيات استوگنځي ته دتگ په‌لاره کې چې له‌هوايي ډگرڅخه پنځه خلويښت کيلومتره لرى دى دنارنجستان باغ چه دشيراز يوتاريخي ځاى دى وليد .

دغه راز ښاغلي محمدداؤد دحضرت سعدى اوحافظ شيرازى آرامگاه ته لاړاوددغو دواړو ادبي اوعرفاني شخصيتونوروح ته‌يې له دعاکولو وروسته په يادگاري کتابونو کې لاس ليك وکړ .

سعدي‌اوحافظ دهجري اوومي اواتمي پيړۍ له نامتوشاعرانو اوليکوالو څخه دي چه په نظم اونثرکي دهغوى ارزښمندآثار ددري ژبو اود شعراوادب دخاوندانوپه نيزدخاص ځاى او مقام لرى .

ددولت رئيس اوصدراعظم ښاغلي محمدداؤد استوگنځي ته له رسيدودمخه، دجمشيد تخت ته نژدې دشيراز زراعتي سهامي شرکت هم وليد.کله چه ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم دغه شرکت کوت دموظفو کسانو له خوا ددغه شرکت دفعاليتوپه شاوخوا کې توضيحات‌وړاندې کېدل .

دشيراز هوايي ډگراوددولت دښاغلي رئيس او صدراعظم دسپرلۍ د موټر دلارې واټونه دافغانستان اوايران په‌ملي بيرغونو ښکلي کړې شوي اوددغو واټونو په دواړو غاړو کې دشيرازګڼ شمير خلکوداحساساتو په‌ټرگندولو اوچك چکو سره دښاغلي محمدداؤد او دهغوى دملگروتودهرکلي وکړ .

ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم د محلي وخت دمازديگرپه پنځوبجوتخت جمشيدلرغوني آثار اودکيږ ديوهغه‌ځاى وليدچه دتخت جمشيد په‌لمن‌کې پروت دى .

ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم دغوايي په ۹شپه په هغې ميلمستياکې برخه واخسته چه دفارس دوالي له‌خواددوی په وياړدداريوش په هوټل‌کي وشوه . دغه راز ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم په همغه تاريخ په تخت جمشيدکې دنوراوغږ، يوپروگرام واوريداوهغه يې وکوت .

ښاغلي محمدداؤد داصفهان او شيراز د تاريخي آثارو دليدلو اوکتلو وروسته له‌غرمې نه‌مخکښې تهران ته ورسيد اودغوايي په ۱۰ يې دايران دشاهنشاه اعليحضرت محمد رضاء پهلوي سره دنياوران په ماڼۍ‌کې غرمني وخوړله . دغرمنۍ له خوړلو وروسته ددولت

ښاغلی رئیس اوصدراعظم دایران د شاهنشاه په ملګرتیا په هیلیکوپتر کی دمهرآباد هوایی ډګرته تشریف یووړ اوهلته وروسته له هغه چه موزیك دافغانستان دجمهوریت ملی سرود اودایران شاهنشاهی سلام وغږاوٌ، دتشریفاتی ګارډسلام ومانه اوهغه یی وکوت . بیا ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم، دصدراعظم ښاغلی امیرعباس هویدا، دباندنیو چارو دوزیرښاغلی عباس علی خلعتبری، ددوارومجلسونودرئیسانو دکابینی دنورو غړیو، دایران ددولتی شخصیتونو اوپه تهران کی داوسیدونکو کور دیپلوماتیکو سره چه دمخه ښنی دپاره په هوایی ډګر کی حاضرو و خدای پاماني وکړه .

اعلیحضرت دایران شاهنشاه، ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم سره ترالوتکی پوری مشایعت وکړاوددوی سره یی خدای پاماني وکړه .

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم اوددوی دملګرو الوتکه دافغانستان په وخت له غرمی نه وروسته په دری نیمو بجو دتهران دهوایی ډګرنه دهیوادپه لور، راوالوتله .

کله چه ددولت ښاغلی رئیس او صدراعظم الوتکه دایران دفضانه تریدله دایران دشاهنشاه اعلیحضرت محمد رضـا پهلوی ، په نامه یـی په یوتلګرام کی یوځل بیاددوی اعلیحضرت اودایران دحکومت اوخلکوله تودو هرکلیوڅخه چه په ایران کی ددوی دتوقف په وخت کـی دوی ته ویل شوی ؤ، تشکر وکړ اودایران د نیکمرغی اوپرمختګ هیله یی وکړه .

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم او ددوی دملګرو الوتکه دایران دهوایی قواوو دیوسیل جت الوتکو له خوادمهرآباد له هوایی ډګرنــه ترافغانی سرحدپوری بدرګه شوه .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد اوله هغوی سره ملګری هیات ایران ته له یوه رسمی اودوستانه سفرڅخه وروسته، دغوایی په ۱۰ مازدیګرهرات ته راورسیدل . ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دغوایی په شپږمه نیټــه دشنبی په ورځ دایران داعلیحضرت شاهنشاه په بلنه دیوه څلور ورځنی دوستانه اورسمی سفر دپاره، دغه هیوادته تشریف وړی ؤ.

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم دسپرلی الوتکه دماز دیګر په پنځوبجو او لسودقیقو دهرات په هوایی ډګرکی راکوزه شوه . الوتکی ته نژدی دهرات والی ښاغلی عبدالتواب آصفی، عسکری قوماندان تورن جنرال سراج الدین، امنیه عمومی قوماندان ښاغلی عبدالقــدیر ، دجمهوری دفتر رئیس ښاغلی محمــد اکبـر ، دجمهوری ګارد قوماندان جګړن احمدضیاء او د بادغیس والی ښاغلی عبدالسلام ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم هرکلی وکړ .

پدغه وخت کی دووماشومانو دهرات دخلکو په نمایندګی دګلانوګیډی ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم ته وړاندی کړی .

ښاغلی محمدداؤد پداسی حال کی چه عسکری قوماندان له دوی سره ؤ، دهرات په هوایی ډګر کی دتشریفاتی ګارد داحترام مراتب ومنل او هغه یی معاینه کړ. پدغه وخت کی موزیــك جمهوری ملی سرود وغږاوه، وروسته له هغه ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم ددایرو له رئیسانو، دجمهوری اردوله منصبدارانو، مخورو اوپه هرات کی دایران له جنرال قونسل سره روغبړ وکړ .



ددولت رئيس اوصدراعظم ښاغلي محمد داؤدته په هرات کښي دخوانانو له خوا دګلانو
په شيندلو اوچکچکوسره له احساساتو ډکه په ډکه فضاکښې هرکلي ويل کيږي .

وروسته له هغه ددولت دښاغلي رئيس او
صدراعظم د سپرلي موټردهغوي استوګنځي ته
روان شو ،

ددولت دښاغلي رئيس اوصدراعظم دسپرلي
دموټردلاري دواړو په دواړو غاړوکي چه اولس
کيلومتره کيږي خه دپاسه سل زره تنوښځو،
نارينه‌ؤ، شاګردانو اودهرات دښاوخوا مخورو
اوکليوالو داحساساتو په ځرګندولو اوژوندی
دی وی زمونږملي مشر، تل دی وي جمهوريت
په شعارونو اودګلانوپه شيندلوسره هيواد ته
ددولت دښاغلي رئيس اوصدراعظم بيرته راتګ
ته ښه راغلي ووايه .

استوګنځي ته ترسيدو پوری د ښاغلي
محمدداؤد دسپرلي دموټردلاري په واټ کی
دهراتد دخلو تاوده هرکلي څه‌دپاسه دوه‌ساعته
وخت ونيو .

ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم بيګا شپه
په هرات کی استراحت درلود .

ددولت رئيس اوصدراعظم ښاغلي محمدداؤد
دغوايي په ۱۰ مابښام دهرات دقول اردو
قطعات معاينه او دجمهوري اردوله خوانو
منصبدارانو سره وغږيد . دانقلاب مشرپداسي
حال‌کي چه دقول اردو قوماندان تورن جنرال
سراج الدين له‌دوی سره وو دهرات دقول اردو
قطعات وليدل ،

ددولت دښاغلي‌رئيس‌اوصدراعظم دورسيدو
په وخت‌کي موزيك‌جمهوري ملي سرود وغږاوه
اوتشريفاتي قطعي داحترام مراتب په ځای
کړل ،

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم ذکـارد دسلام اواحترام دمراتبوله منلووروسته پیل په عسکری قطعات معاینه کړل. دجمهوریت مؤسس له منصبدارانو سره وغږیداوپه دی ترڅ کـی یی وویل :

ورونو ! گرانوعسکرو! له انقلاب نه‌وروسته نن چه دلومړی ځل دپاره له تاسو عزیزانوسره گورم، ډیره له‌گومی ممنون اومشکوریم. لوی خدای دی تل، دافغانستان اردوپه هغو ټولـو وظیفوکښی چه ورتسپارل شویدی اوهغه خاوری دوطن دناموس اودافغانستان دحقوقو دفاع اوپه پای کی زمونږملی نیکمرغی ده بریالی کامیاب اوموفق ولری .

گرانو ورونو! گرانو عسکرانو! پدی ځای کی چه‌نن تاسی یاست یعنی په هرات کـــی وپوهیږی چه یوخورامهم‌اودافغانستان له‌اهمیت نه‌ډك ولایت دی . هغه وظیفی چه دوطن ددفاع په مقابل کی‌یی لرئ ډیری درندی اومهمی دی له خدای نه‌غواړم چه تل لکه چه دافغانستان په انقلاب کی دگران افغانستان دسر لـوړی اونیکمرغی دپاره موله خانه‌فداکاری اوډیرزیات قهرمانانه احساسات وښودل، هماغه‌ډول دگران هیوادپه دفاع‌کی کامیاب، قهرمان اونیك نـام اوسی .

بیاهم یوځل بیاله دی امله چه تاسی ملگری دلته په دغه میدان کی راټول وینم او تقـریباً له دووکالو وروسته موقع په‌لاس راغلی چـه له‌تاسوسره وگورم، خوراډیرممنون اومشکوریم ځپل تشکرات‌تاسی، ستاسی محترموقوماندانانو ستاسی فردفردته رسوم اوله لوی خدای نه ستاسی روغتیا ، نیکمرغی او سلامتی غـواړم لوی خدای دی تاسی ته توفیق درکړی چـــه جمهوری نظام، هغه نظام چه دټولووطن پرستو خوانانوپه فداکاری او دافغانستان داردوپـــه همکاری مینځ ته راغلی دی تل هغه وساتل شی، وده ورکړی اوهغه ثمرخپلو راتلـــونکـو نسلونو اوژوندته ورنقل کړی .

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد اودهغوی ملگری دغوایی په ۱۱ په سهار د گازرگاه اوخواجه عبدالله انصاری مزارته لاړل اودهیواد ددغه علمی شخصیت روح ته یـــی یادونه وکړه . دغه راز ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دهرات جامع جومات اومصلا اوپه هرات‌کی د نورالدین عبدالرحمن جـامی مقبـره ولیدله . دخواجه عبدالله انصاردمزار اودهرات دجامع جومات اوتاریخی آبداتوپه کتنه کـــی دهرات والی ښاغلی عبدالتواب آصفی اودهرات دقول اردو قوماندان تورن جنرال سراج الدین هم ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم ســره ملگری وو .



ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤددګازرګاه دحجاری د(ریزه‌کاریو) دلیدلو په‌حال کښې .

ښاغلی محمدداؤد، وروسته له هغه دهرات دښار دپارک استدیوم ته تشریف یووړ اوهلته دهرات دلس ګونو زره ښاریانو اوشاوخواخلکو له خواداحساساتو په ځرګندولو چکچکواوژوندی دی وی ملی مشراوددجمهوریت موسس ، تل‌دی وی افغانستان، ټینګک دی وی زمونږ جمهوری نظام، په شعارونو سره ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم ته هرکلی وشو . پداسی حال کی چه دپارک ستدیوم ددولت دښاغلی رئیس او صدراعظم په‌عکسونو، ملی بیرغونواوبی شمیره شعارونو ښکلی ګړای شوی ؤ اوپه فضا کی دخلکو خوښی اوخوشحالی خپره وه ، ددولت ښاغلی رئیس دهرات خلکوته یووینا وکړه .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم د هرات خلکوته دخپلی ویناله ایرادولو وروسته دخلکو دفوق العاده اودصفت نه زیاتو اودشورنه ډکو احساساتو په منځ کی دپارک له ستدیوم څخه روان شو .

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم مخکی تر دی چه په هرات‌کی خپل استوګنځی ته‌تشریف یوسی دهرات دمالداری دپرمختیاپروژه ولیدله اوددغی پروژی دبری فارمیی دجمهوریت لـه سمبول څخه‌دپردی‌په‌پورته‌کولوسره پرانیست.



زموږملی مشر ددولت رئیس او صدراعظـــم ښاغلی محمد داؤد د لاس په پورته کولو سره‌دهرات دخلکوله حرارت ډکو احساساتو ته ځواب وایی .



ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤدکله چه دهرات دمالداری دپروژې دمسلخ بنسټ ږدی .

دغه راز ددولت ښاغلي رئیس اوصدراعظم، د پروژې دمسلخ دبنسټ ډبره کیښودله او هم یې دهغو لوړې لمبر ژوره خاه پرانستله . کله چه ددولت ښاغلي رئیس اوصدراعظم دغه پروژه کتله دمالداری دپرمختیا دفعالیتونو په باب توضیحات وړاندې شول .

ددولت ښاغلي رئیس اوصدراعظم په هرات کې دغرمې دډوډۍ له خوړلو او لنډ استراحت څخه وروسته، په هیلیکوپټرکی دشینډنډ هوایی ډگر ته تشریف یووړ. کله چه ددولت دښاغلي رئیس اوصدراعظم دسپرلۍ هیلیکوپټردشینډنډ په هوایی ډگر کښې راکوز شو او ښاغلي محمدداؤد له هلیکوپټر څخه ښکته شودهوایي قواؤتشریفاتي قطعې داحترام مراتب پهځای کړل اودشینډنډدهوایي قواؤقوماندان دځوانوهوابازانو قطعات ددولت ښاغلي رئیس ته وړاندې کړل .

ښاغلي محمدداؤد دیوې ویناپه ترڅ کې ځوانو هوابازانو ته وویل : زه وروهوابازانو وروڼو! له دې امله خوشحاله یم چه نن وخت په لاس راغی چه له یوې اوږدې مودې وروسته له تاسې سره له نژدې نه ووینم اوله تاسوسره خوخبرې وکړم. زه وظیفه وه چه ښوراغلې وای خوله بده مرغه مصروفیتونوماته دغه وخت رانکړ .

یدې ځای کې هغه چه غواړم ووایم ستاسې په ملې وظیفې پورې اړه لری. تاسې میړنې او ځوان هوابازان دخپل گران وطن، ددفاع په مقابل کې ایماني اووجداني وظیفه لرئ. تاسې اوددې خاوري ټول هوابازان په هرځای کی چه یاست وظیفه لرئ چه دگران افغانستان دملي ناموس اوشرافت دفاع په میړانه وکړئ عالي اخلاق میړانه، قوی مورال اوپه خدای باندې ایمان کولی شي چه له تاسې سره ددغې سترې وظیفې په



ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمد داؤد ته کابل ته دراړسیدلوپه وخت کښی ښاغلی محمد نعیم او دعظمی صدارت مرستیال دوکتور محمدحسن شرق ښه راغلی وایی .

سرته رسولو کی مرسته اوکمك وکړی .

دازمونږ اوستاسی خاوره ده. باید دغه ملی ناموس مقدس وبولو اودخدمت کولو سرښندنی اوفداکاری دپاره هیڅ ډول هلی ځلیونه سپموو.

له تاسی څخه یوه هیله لرم چه د دغـــی سپیڅلی وظیفی. یعنی لهخاوری اوملی ناموس څخه ددفاع دپاره تل چمتوواوسئ . تـاسـی د افغانستان دفداکار اردو هماغه منصبداران یاست چه دچنگابس په ۲٦تاریخی شپه موسره دهمت ملاوتړ له اودخپل ولس اوګران هیواد دنیك مرغی اولوړتیادپاره مودتاریخ پاڼهواړه وله.

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم د غوایی په۱۱دهراتِ دولایت څخهکابلته راورسیدل او دکابل په بین المللیهوایی ډګرکښی الوتکیتهنژدی ښاغلی محمدنعیم، د صدارت عظمی مرستیال ډاکترمحمد حسن شرق، دمرکزی کمیتی ځینو غړیو اودکابینی هیات دهغوی هرکلی وکړ .

وروسته بیاښاغلی محمدداؤد په داسی حال کی چه لوی درستیز ډګر جنرال عبـدالکـریم مستغنی له دوی سره ؤ دجمهوری ګارد دسلام اواحترام مراتب ومنل اوهغه یې معاینه کړ .

پدغه وخت‌کی موزیك ملی سرود وغږاوه .

وروسته له هغه ددولـت ښـاغلـی رئیس او صدراعظم دمرکزیکمیتی اوکابینی له نوروغړیو دجمهوری اردوله جنرالانو، ځوانو منصبدارانو یوشمیر دولتی شخصیتونو، په کـابل کښی اوسیدونکو پښتونستانیانو او کوردیپلوماتیکو دایران دلوی سفارت له شارژدافیراودسفارت له غړیوسره چه دهرکلیدپاره دکابل بین المللی هوایی ډګرته تللی ؤ داحوال پوښتنه وکړه .

دهوایی‌ډګرله مراسمووروستهښاغلی‌محمدداؤد دموټرپهسپرلی‌دجمهوری‌ریاست‌مانی‌ته‌روان شو.

# دافغانستان او ایران گډه اعلامیه

دایران د اعلیحضرت شاهنشاه په بلنــه دافغانستان دجمهوری دولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤد د۱۳۵٤ کال دغوایی لەشپږمی نه ترلسمی نیټی پوری ایران ته رسمی سفر وکړ .

ښاغلی محمدداؤد درسیدو په ســـر کـــی داعلیحضرت رضا شاه کبیر، په آرامگاه باندی دگلانوتاج کیښود . اودغه رازیی په ایـران کی استوګنی په اوږدوکی داصفهان او شیراز تاریخی آثار اودکتنی وړسیمی او تخت‌جمشید هم ولیدل .

دافغانستان دجمهوری دولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم پدغه سفرکی دایران لەاعلیحضرت شاهنشاه سرەخبری‌وکړی اوددوهاړخیزوروابطو اودسیمه ایزواوبین المللی اوددواړو هیوادو دعلاقی وړمسئلوپه شاوخواکی غږیدلی او دغه رازپدغه سفرکی دښاغلی محمدداؤد اودایران دصدراعظم جلالتمآب امیرعباس هویدا اودایران دباندنیو چارو د وزیر جلالتمآب عباس علـــی خلعتبری ترمینځ کتنی اوخبری وشوی .

دایران له اعلیحضرت شـــاهنشاه او نورو مقامــاتو سره دافغانستان د جمهـوری دولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم خبری له تفاهــم اودوستی اوپوره صمیمیت‌سره یوځای پداسی محیط کی وشوی ، چه د ایران او افغانستان ددواړو، وروڼواوهمکیشوهیوادو، ترمینځ دنږدی اوپخوانیو پیوندونو اوعلایقو ښکارندوی دی .

دخبرواتروپه جریان‌کی دواړو خواؤ د نظر دهغه یووالی له امله خپله خوښی څرګنده‌کړه چه په بیلوبیلو سیمه ایزو اوبین المللـــی برخوکی ددوی ترمینځ شته اودملګروملتو د موسسی دمنشورځخه‌یی دخپل ملاتړدڅرګندولو په ترڅ‌کی داخبره تائیدکړه چه لەسولی اوثبات سره یوځای دیوه جهانی نظام ټینګیدل دنوړو هیوادوپه‌کورنیو چاروکی دلاس نه وهلو دځمکی تمامیت تەپه درنده سترګه‌کتلواوپه بین‌المللی مناسباتوکی دزور څخه دکارنه اخیستلو او د اختلافونو دلری کیدو دسوله ایزاصل څخـه دپیروی پرته نشی حاصلیدی .

ددواړوهیوادو مشرانو دبین المللی حالاتـو دخیړنی په ترڅ‌کی دکړکیچ دلری کیدو او د خبروله لاری دمسئلو دحل لورته د جهـانی

نمایل له‌امله خوښی‌خرگنده‌کړه. ددواړوهیوادو مشرانودخبروپه ترڅ‌کی دمنځنی ختیځ حالاتوته خاصه پاملرنه کړی اوسولی ته یی دکلک تهدید اوپدغه سیمه‌کی دکشالی ددوام په نسبت یی خپله اندیښنه څرگنده کړه. او د ځمکودترلاسه کولوپه مقصد د زور څخه دکار اخیستلوسره یی دخپل مخالفت دتاکیدپه ترڅ کی یوځل بیادنیول شویوځمکودبیرته اخیستلو دپاره دعربی هیوادواودغه رازدخپلوحقه اوروا حقوقودترلاسه کولو دپاره یی په خپلو مبارزو کی دفلسطینی ولس په‌نسبت خپل ملاتړاعلام کړ .

دمنځنی ختیځ داختلافونو په باب دواړوخواؤ دهغو فعالو هلوځلو ددوام په لزوم ټینگاروکړ چه ډیرژر دملگروملتودموسسی دامنیت دشورا د۱۹٦۷ کال ددوه سوه دوه څلویښتم لمبر فیصلی دمفادپه رعایت سره دنیولونیول شویو سیمو دبیرته اخیستلو په اساس ددایمی او عادلانه حل دلاری سبب شی .

دواړو خواؤ دهغو اقداماتو چه د سولی دټینگیدو اودنیمی وچی اوداسیا دجنوب دهیواد ترمینځ مناسباتو دعادی کیدو دپاره کیږی ښه هرکلی کړی اوامیدیی څرگندکړ چه دغه هیوادونه دواقعیتونوددرک کولو اودروغی جوړی له‌لاری، دخپلونظریو داختلافونو لری کولو د عادلانه اوشرافتمندانه حل لاری ته درسیدو د پاره خپلو هلوځلوته دوام ورکړی .

ددواړو هیوادو دمشرانو دخبروپه ترڅ کی دهند دسمندر په سیمه کی دحالاتو څیړنه‌وکړه اودسولی اوکراری دسیمی په نامه‌یی د هند سمندردسیمی داعلام په باب چه باید دسترو قدرتونوله مقابلی اوسیالی څخه لری وساتل شی، دملگروملتودموسسی د۲۸۳۲ گڼی اعلامیی په نسبت خپل ملاتړ بیاتاکید کړیدی .

ددواړو هیوادو مشرانو هغه حیاتی اهمیت چه دفارس خلیج یی دایران اونورو ساحلی هیوادو دامنیت اواقتصاد اودغه راز دسیمی دسولی اوثبات اوبین المللی تجارت دپاره‌لری تائید کړیدی اوټینگاریی وکړچه دخلیج فارس امنیت باید دساحلی هیوادوپه همکاری او نه هرډول خارجی لاس وهنی پرته تامین شی .

دافغانستان دجمهوری دولت بناغلی رئیس اوصدراعظم دایران اوعراق د روابط له ښو تحولاتو اودسرحدی اختلافونو دلری کیدو له امله، خوښی څرگنده کړه اوهیله یی وکړه چه ددواړو گاونډیو اومسلمانو هیوادو مناسبات له پخوانه زیات پراخ اوټینگ شی .

دواړو خواؤدغه مطلب دتائید په ترڅ کی چه په طبیعی منابعو باندی ملی حاکمیت دهر

هیواد مسلم حق دی دنړۍ اقتصادی حالاتوهم وخیړل اودهغه فشار دکموالی په مقصد یی چه جهانی تورم یی دپرمختیایی هیوادو په اقتصاد باندی اچوی، دتدبیرونو دنیولو لزوم اودغه رازدپرمختللیو هیوادو اوپرمختیا یی هیوادو ترمینځ یی دیوه نوی اقتصادی نظام دجوړیدوپه مقصد، چه دنړۍ دټولوهیوادواړتیاوی اوګټی تامین کاندی دمتقابل تفاهم او همکاری ضرورت تائید کړ .

دافغانستان دجمهوری دولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم، په نړۍ کی د لاصحیح اقتصادی نظام دټینګیدوپه باب اودغه راز دهند دسمندر دساحلی هیوادوترمینځ، دیوډول ګډی اقتصادی همکاری دپیداکیدوپه باب چه نورهیوادو نه بههم پکښی شامل شی دایران داعلیحضرت شاهنشاه پیشنهادونه او هلی ځلی وستایل اوهغه اهمیت یی اعلام کړچه افغانستان یی له ایران سره ددوه اړخیزه همکاری او دغه راز ددغه پیشنهاد په چوکاټ کی هغو ته ورکوی .

ددواړو هیوادومشرانو ددوه اړخیزواقتصادی اوتجارتی روابطو دورځ په ورځ پراختیا په باب خپله خوښی څرګنده کړی او ددواړو هیوادو اوسنی ورورګلوی اودوستی ژورواړیکوته په پاملرنه سره په بیلوبیلو برخوکی د پراخو همکاریوسره خپله علاقمندی چه ددوی دګډوګټو متضمن بهوی اعلام کړه .

دافغانستان دجمهوریت ددولت رئیس او صدراعظم افغانستان ته د شاهنشاهی دولت دمرستو اوهمکاریو مننه وکړه .

دغه راز دواړوخواؤ موافقه وکړه چه داقتصادی پروګرامونو دتطبیق دچټکتیا دپاره یوګډکمیسیون جوړ شی .

ښاغلی محمدداؤد دایران د اعلیحضرت شاهنشاه اوحکومت اوملت دهغی تودی او صمیمانه میلمه پالنی څخه چه خپله ددوی او ددوی دملګرویی کړی ده خپلی د مننی مراتب څرګندکړل اودایران اعلیحضرت شاهنشاه او علیاحضرتی شهبانوته یی بلنه ورکړه چه افغانستان ته رسمی سفر وکړی دغه بلنه په خوښی ومنل شوه ددغی بلنی نیټه به وروسته اعلام شی .

# مسافرتهای شاغلی محمد نعیم نماینده خاص رئیس دولت و صدر اعظم

## مسافرت ښاغلی محمد نعیم در چین

ښاغلی محمدنعیم بحیث نمایندهٔ خاص ښاغلی محمد داؤد رئیس دولت وصدراعظم بنابدعوت حکومات جمهوریت مردم چین وجاپان برای یك مسافرت دوستانه ورسمی قبل ازظهر روز۱۱قوس ۱۳۵۳– ازکابل عزیمت کردند .

برای وداع باښاغلی محمد نعیم دکتورمحمد حسن شرق معاون صدارت عظمی ، بعضی ازاعضای کابینه، ډگرجنرال عبدالکریم مستغنی لوی درستیز ، ښاغلی محمداکبر رئیس دفتر جمهوری عده یی ازجنرالها ، کابل ښاروال سفرای کبیر هندوجاپان ، شارژدافیر سفارت کبرای جمهوریت مردم چین وشارژدافیرسفارت کبرای انگلستان مقیم کابل درمیدان هوایی بین المللی کابل حاضر بودند .

درین مسافرت ښاغلی وحید عبدالله معین سیاسی وزارت امورخارجه ، ښاغلی محمدانور نوروز معاون ریاست تشریفات و ښاغلی عبدالاحد ناصر ضیایی معاون دفتر مخصوص وزیر امورخارجه باښاغلی محمد نعیم همراه میباشند .

---

ښاغلی محمد نعیم نمایندهٔ خاص ښاغلی رئیس دولت وصدراعظم قبل ازعزیمت به کشور های چین وجاپان درحال وداع بادکتورمحمدحسن شرق معاون صدارت عظمی درمیدان هوایی کابل.



ښاغلی محمدنعیم نمایندهٔ خاص ښاغلی رئیس دولت وصدراعظم وهمراهانشان در راه مسافرت رسمی ودوستانه به جمهوریت مردم چین وجاپان ساعت یك بعداز ظهربه وقت محلی به دهلی جدید مواصلت نمودند .

درمیدان هوایی ازطرف ښاغلی چاوان وزیر خارجهٔ هند، ښاغلی عبدالرحمن پژواك سفیر کبیرافغانستان دردهلی جدید، مامورین‌عالیرتبه وزارت خارجه هند واعضای سفارت کبرای افغانستان دردهلی جدید استقبال شدند .

ښاغلی محمدنعیم وهمراهانشان روز۱۱قوس بعدازظهردر دعوت چاشتی اشتراك کردند که ازطرف ښاغلی چاوان وزیرخارجه هندبافتخار شان ترتیب شده بود .

ښاغلی محمدنعیم ساعت شش شام همان روزبوقت دهلی جدید با میرمن اندراگاندی صدراعظم هند ملاقات کردند . درین موقع ښاغلی وحیدعبدالله معین سیاسی وزارت امور خارجه نیز حاضر بود .

ښاغلی محمد نعیم نمایندهٔ خاص ښاغلی رئیس دولت وصدراعظم وهمراهان شان که برای یك مسافرت رسمی ودوستانه عازم جمهوریت مردم چین وجاپان شده‌اند ساعت هشت ونیم صبح روز۱۲قوس ۱۳۵۳ بوقت محلی ازدهلی جدید عازم هانکانگ شدند .

ښاغلی محمدنعیم نمایندهٔ خاص ښاغلی رئیس دولت وصدراعظم وهمراهان شان بعد ازظهر۱۵ قوس ۱۳۵۳ به پیکنگ مواصلت نمودند .

چیاکوان هواوزیر خارجه ، هان تین لینگ معاون وزارت خارجه، میرمحمد یوسف سفیر کبیر واعضای سفارت جمهوریت افغانستان درآنکشور ومامورین عالیرتبه وزارت خارجهٔ جمهوریت مردم چین از ښاغلی محمد نعیم وهمراهان شان‌درمیدان هوایی پیکنگ استقبال بعمل آوردند .

ښاغلی محمدنعیم نمایندهٔ خاص رئیس‌دولت وصدراعظم ساعت ده صبح ۱۶ قوس ۱۳۵۳ بوقت محلی بابښاغلی چیاوکوان هوا وزیرامور خارجه جمهوریت مردم چین ملاقات ومذاکرات بعمل آورد. طی این مذاکرات که درفضای دوستانه ای صورت گرفته ودوساعت طول کشید بین طرفین راجع به مسایل مورد علاقه دوکشور تبادل نظربعمل آمد . درین موقع ښاغلی وحیدعبدالله معین سیاسی وزارت امور خارجه نیز حاضر بود .

ښاغلی محمدنعیم ساعت پنج ونیم بعد از ظهربوقت محلی بابښاغلی لی هسین نین معاون صدراعظم جمهوریت مردم چین ملاقات بعمل آورد .

همچنان ښاغلی محمد نعیم بابښاغلی‌چوئنلای صدراعظم جمهوریت مردم چین در شفاخانهٔ ملاقات نموده وطی آن پیامی راکه ښاغلی محمدداؤد رئیس دولت و صدراعظم بایشان فرستاده بود، بوی تقدیم کردند .

ښاغلی لی هسین نین معاون صدراعظم چین ساعت هفت شب دعوت شامی بافتخار ښاغلی محمدنعیم نمایندهٔ خاص ښاغلی رئیس دولت وصدراعظم داده بودکه درآن بعلاوه همراهان ښاغلی محمدنعیم وزیرامورخارجهٔ چین وبعضی ازمامورین عالیرتبه آن کشور شرکت نموده بودند .

ورسره زمونږ او ستاسو کور ورانول او بال بچ په و ینو لمبول غواړی . نواوس مونږ څه وکړو. ستاسوصلاح ده آیا مونږ دځان نه ګېډه بزی جوړی کړو او چه‌قصاب‌موپه‌مری چا ړ ه راکاږی نو(بین بین) به‌کوو خو حلالیدو ته به پراته یو؟ نه مونږ‌انسانان یوقام یواود بلوڅ او پښتو نغوندی غیرتی‌ولس‌یومونږ به‌راپا څـو اودخپل قسمت فیصله به پخپله کوو. کـــه دچا خوښه وی هم او که نه‌وی‌خوښه هم.

**عزیزانو اوملګرو !**

که تاسو غوروکړیء نومونږ‌ته بی ددی نه بله لاره پاتی شوی هم نه‌ده تاسووګوریء چه دپاکستان دجوړیدو سره ستم مونږ پښتانـــه اوبلوڅ په‌دی ملك کښی غیراوغدارو ګڼلـــی شوو. زمونږ یوقومی منتخب حکومت ؤ هغـه مات کړی شو. زمونږ په سیاسی جماتونـــو پابندی ولګیدی اوزمونږ دفتر اومرکز په‌بمونو والوزولی شول زمونږ یواخبارؤ هغه بندشو اوپه مونږ‌بابړه کښی ګولۍ وچلیدی او اوه‌نیم سوه شهیدانٌ اوبی شمیره زخمیان شو اوپه مونږ جیلونه ډك شول . اوبیابلوچستان کښی زمونږ اووه مشرا نجیلونو کښی‌پانسی‌شول . زمونږ‌څه ګناه وه . اوڅه ګناه ده ؟

زمونږ‌ګناه داده چه مونږ‌دبرتانوی استعمار سره‌دخپلی آزادی دپاره جنګ کولو .

زمونږ‌بله ګناه داده چه مونږ‌داستعمار او د هغه دپلانونو مخالف یو. نوځکه دهغو او د هغودمقامی ایجنټانو دسترګواغزی ؤ دواړو دا کوښښ کولوچه مونږ دخپلی مخی نه لری‌کړی اوختم موکړی . دغه شان دپاکستان په اوه ویشت کلن تاریخ کښی زمونږ سره د غد ر اودښمن سلوك وشو دلوی بابا خـبره چـــه: (مونږ‌چه دپیرنګی قاضی کافران کړی یونو تراوسه چا مسلمان کړو.)

پدی اوه ویشت کاله کښی زمونږ سیاسی جماتونو داکوښښ وکړچه دپاکستان د نورو خلکو سره یوځای دخپلو ملی بشری اوحقوقی مسألو دپاره سیاسی اوقانونی مبارزه وکړی . مګرپاکستان کښی یومخصوص ټولی د یـــوی مخصوصی علاقی داکثریت په بهانه د پـوځ په ذریعه دنظریه پاکستان او مضبوط مرکز په چغه دپاکستان نورقامونه اووروسته پاتـــی ولس خپل قبضه کی ساتل غواړی .

دتیرو عمومی انتخاباتونه پس دی ټولـــی ته ثابته شوله چه محروم قامونه لکه سندی، بنګالی، بلوڅ او پښتون نه د دوی نظـــریه پاکستان منی نه مضبوط مرکز اونه‌استثماری قبضه نودوی دمسلح پوځونو په ذریعـــه دا قامونه دتشدد اوجارحیت په‌زور په مرکزپوری تړلوعمل شروع کـــړاود سیاسی قانونی او شریکو مبارزی لاره یی بنده‌کړه . چه‌نتیجه‌یی داشوه چه‌بنګال ځان له لاره غوره کړه په‌هغی روان شواونږ دمشرقی پاکستان په ځـــا ی بنګله دیش شو .

ددی ترخی تجربی نه پس بـــایـد د دوی سترګی غړیدلی وی ، ولی ددوی سترګـــی نوری هم پټی شوی اودی پاته برخه کښی‌یی بلوڅ اوپښتون سره هغه عمل شروع کړوچه دبنګالیانو سره یی کړی وو دغه شان یـــی دوی ته هم هغه لاروښودله چه بنګالیان پری رسیدلی دی پښتون اوبلوڅ دخپل طبیعت په تقاضا دغی لارته ډیر خوشحالیدل او اوس

پری ډیرپه خوشحالی اومستی روان دی اوس هیڅوك ددی سیلاب مخه نه شی نیولی دبابا خبره (چی نودانتظار نشو کولای راپاخیدلو او ترهغه وخت به آرام نه کښینو چه خپل حق موګټلی نه وی .)

دلته باید چه ددنیا هغه ملکونو اوطاقتونو ته چه‌دی سیمی سره دلچسپی لری خصوصاً خپلوهغو همسایه حکومتونو ته چه زمونږدکور داورلمبی دهغوی ترلمنی رسیدلی شی ووایو چه زمونږ سیاسی جماعتونو خپل پوره‌کوښښ وکړچه دامسئله په سیاسی او جمهوری لارو چارو هواره شی خودپاکستان حکومت زمونږ دحقوقو مطالبی اوسیاسی اوازپه جواب کښی مونږپه مسلح فوځونو لکه دښمن وژنی او زمونږ خاوره فتح‌کول غواړی نوځکه مونږ ته بله لاره نه‌ده پاتی مګرداچی که دتوپونوخولی بندولی نشو نوباید هغه لاس مات کړو چه مونږپه ډزفتح کول غواړی .

دغو ټولو طاقتونو ته وایو چه اوس مونږ تاسونه دخپلی مبارزی په لړکښی دتعاون هیله لروچه دایشعیا ددی حصی نه دشراوفساد اوجنګ جګړه اوداستعمار ددسیسو اوجارحانه پلانونو جاله ورکولو کښی کامیاب شوچه دا سیمه په قلارشی .

دغه شان هغه مسلمان ملکونوته کوم چه داسلامی ورورولی جوړولو اودغه لړ کښی زمونږاو دپاکستان ترمنځه کشالی ته توجه ورکوی، عرض کوو چه مونږ ستاسودمصالحت کوښښونه په سرسترګومنلی دی خوتاسو خپله انصاف وکړیء چه په‌دغه لړکښی زیاتی شوکړی دروغ شوك وایی‌اوبی اعتباری دچاله طرفه ده ؟

ښاغلی اجمل ختك بیا پخپله مفصله‌ویناکی دپښتنو اوبلوڅو ولس اتفاق‌او‌اتحادته‌راوبلل اووی ویل چه یابه یوکیږو‌اویابه ورکیږو .

اودوی ته‌یی خطاب وکړچه دپاکستان دحکومت په‌پیسو‌اومنصبونو اوپروپاګنډو، ونه غولیږی اودخپل قام سره دخیانت اودښمنی نه ډډه وکړی .

ښاغلی ختك دخپلی جذابی ویناپه پای‌کښی داسی وویل :

**ګرانو عزیزانو !**

دپاکستان دحکومت لویه اشتباه داده چه دوی‌نن اوپرون کښی فرق نشی کولی ، پرون زمونږدمشرانو سیاست داووچه شوك په یومخ څپیړه درکی ته ورته بل مخ ونیسه اونن دځلمو سیاست دی چه شوك مونږته دڅپیړی راکولونیت کوی مونږ به یی لاس مات کړو پرون مونږ هغه شوك ورور کول غوښتل چه زمونږ په وینو خلکو عادت شوی وو او نن مونږفیصله کړیده چه پردی خپلیږی نه، راځی چه خپل خپل‌کړو. اوپرون مونږ دخپلو ټولو ولسونو سره یوه جرګه اویوه فیصله شوی نه وو اوپرون زمونږ دټولوپښتنواو بلوڅو د جدوجهد سمت اوهدف یونه وو. اونن ؟

نن دټول پښتون اوبلوڅ دمبارزی سمت او هدف یوشونواوس بس دوخت انتظار دی او وخت هم‌که داپاکستان وی نوپه زوراومنده یی راولی .

زه دخپلو معلوماتو اودحالاتو دمطالعی په اساس پدی ډاډه یم اوخپلو مشرانو اوملګرو ته ډاډورکوم چه دغه وخت خپله راغی او‌که چاراوستو نودابه هغه وخت وی چه پښتنواو

بلوشوزلمو یی لاری ته شنه بریت او جونو دزلفوتارونه لکه دسپیلنی لوکی کړی دی اودا په هغه‌وخت وی چه دازلمی اونجونی دزړونونه دپیرنګی دوخت پاتی زنګونه اودوطن دبیلتون تول نوردیوالونه ختم کړی . په آخر کښی زه هغه پښتون اوبلوخ زلمی ته چه یاددی

انقلابی مبارزی په‌لاره کښی شهیدان شول یا جیلونوکښی بند شول په وینو ولمبیدل‌کوریی تالاشو موراوپلار یی پولیس درپه درکړل او یادکورنه یی‌په غرونو دښتـو نو کښی وږی تږی ولی لکه دزخمی زمری غورزنګ ته تیار ناست دی ، پدی خبره شاباس ورکوم چــه تاسوخپلی ځوانی قربانی کړی خوزیری چــه دقوم تاریخ کښی مودنوی باب اوملی مبارزی کی دنوی قدم ابتدا وکړه مبارك موشه تاسو دپښتون اوبلوخ تحریك انقلابی کړو اوچــه انقلابی شونواوس یی مخه هیڅوك نشی‌نیوی.

مبارك موشه- پدغه قدم تویه‌شوی وینه
مبارك موشه- پدغه‌قدم تویی‌شوی وینه
او مبارك مو شه - په‌مرګ اوژوندداړو
ســور مـــخ افتخــار او فتــح .

**دوړی ۱٦ :**

دحریت ورځپانی خبریال له اسلام آبادنه خبرورکړیدی چه دملی عوامی ګــو ند رئیس خان عبدالولی خان په یوه اخباری ویناکښی ویلی دی چه متحده جمهوری محاذ دمختلفو ګوندونو یوه داسی ډله ده چه په خپلونظریو کښی ډیرتوپیرلری مګرپه ملك‌کښی دجمهوری اداروډژوندی کولو اوولس ته دهغوی دحقوقو ورکولو دپاره یوله بل سره جوخته ملګرتیا کوی .

ولیخان د پاکستان داخبارونو او حــکومت له دی امله غندنه کړیده چه‌په اجمل ختـټك پوری یی د دروغو بیانونه تړلی دی، خــان عبدالولیخان وویل چه دکابل ټولواخبارونو او باختر آژانس ددغه ډول خبرو د دروغــوالــی تصـد یــق کــــړ ی دی . خــا ن عبدالولیخان وویل چه حکومت په سیاســت کښی ماتی خوړلی ده اوپه دروغودخپل اقتدار مودی ته ددوام ورکولو کوښښ کوی خو د دروغومزل لنډدی .

خبریال ویلی‌دی هغه‌وخت چه خان‌عبدالولی خان دغه بیان ورکاوه پاکستانی پولیسو په اسلام آبادکښی دده له استوګنځی شخه هغه خلورپښتانه محصلین ونیول چه دولیخــا ن لیدوته ورغلی وو .

خان عبدالولیخان ددغی ګرفتاری غندنه‌کړی اوویلی‌یی‌دی‌چه دپاکستان حکومت‌دخلمومخه د ګرفتاری نشی نیولی .

**دوړی ۱٦ :**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤد په هغه پیغام کښی چه داسلامی هیــوادو د مشرانو دعالم اسلام دموتمر او داسلامی عالم درابطی داسلامی جرګی دعمومی منشی پــه عنوان یی استولی دبلوچستان داندیښنی وړ حالاتو اوپه دغه سیمه کښی دپاکستان دډله ایزه بیرحمانه وژلو اوله مینځه وړلو سیاست په تیره بیا دذوالفقار علــی بوټو ورروستــی التیماتوم ته چه‌که آزادی غوښتونکی داکتوبر تر پنځلسمی نیټی پوری حکومت ته تسلیــم نشی ددوی دکلیواوکورو عمومی او پراخــه بمباری به پیل‌شی دهغوی دپاملرنی په‌جلبولو

سره دبلوڅو خلکو دالمناکه حالت بشری اړخ ته دبین المللی ټولنی خاص پام اړولی دی .

ښاغلی محمد داؤد داسلامی هیوادو او موسسو له مشرانو څخه هیله کړیده چه دحالاتو له زیاتی خرابی دمخه، زمونږ دبلوڅو ورونو په خلاف دپاکستان دحکومت دناوړه سیاست له تعقیب څخه ددغه حکومت داړولو اوپدغه سیمه‌کښی دسولی اوامنیت دګډوډیدو دمخنیوی دپاره مناسب اوګټور اقدام وکړی .

ښاغلی محمد داؤد همد غه شان پیغام دملګروملتودعمومی منشی‌ډاکترکورت والدهایم په نامه نیویارك ته استولی اوله هغه‌څخه یی غوښتی دی چه ددوی پیغام درسمی سند په توګه نشر اوویشی .

**دوړی ۲۰ :**

ښاغلی اجمل خټك دلندن دجنګ انټرنیشنل اردو ورځپاڼی دغلطی پروپاګنډی دردولودپاره دهیواددورځپاڼی دفتر ته داسی یولیك رالیږلی دی :

دلندن نه په اردوژبه خوریدونکی اخبار چه جنګ انټرنیشنل نومی په‌خپله ۱٤۱ګڼه کښی په ړومبی صفحه‌کښی یوخبر نشرکړیدی ددی خبرعنوان دی، (اجمل خټك نی بهسارت‌کو پاکستان جنګی قیدی رهانه کرنی کا مشوره دیاتها) نوموړی اخبار دکوټی څخه دخپل خبریال له خوا لیکی چه داخبر دافغان نیوز ایجنسی‌باخترسره داجمل خټك دیوی مرکی په اساس جوړدی دغه خبرکښی داهم ویلی شوی دی چه په‌کومه انټرویو چه ددی خبر اساس دی دغه‌انټرویویاخبری دباخترایجنسی

(هیواد) اوجمهوریت کښی خپره شویده ، هیواددی ټول خبرچه په نوموړی جنګ اخبار کښی نشر شویدی تردید وکړ. حقیقت هم دادی چه نه داسی انټرویوهیواد چری نشر کړیده نه پدی ډول انټرویویاخبری دباختر ایجنسی له خوانشر شویدی اونه داخبر او انټرویو په جمهوریت اوهیواد کښی نشر شویدی . داخبر دجنګ اداری یاهغه سره مربوطو خلکو دځان نه دروغ جوړکړیدی، او مسئول یی هغوی دی . (اجمل خټك)

**دوړی ۲۰ :**

دکراچی څخه په یو خبرکښی ویل‌شویدی چی دمتحده جمهوری محاذ لوی سکرترښاغلی غفوراحمد دپاکستان په حکومت تورلګولی دی چه دخبرواتروپه پرده کښی غواړی خپل پلانونه عملی کړی .

غفوراحمد ویلی دی چی دبلوچستان په مسئله دخبرواترو دپاره مهم شرط دادی چه دملی عوامی ګوندغړی دبندڅخه آزاد کړی‌شی، له بلوچستان څخه پوځونه وایستل شی اوپه پښتونستان کښی دپنجاب د پولیسو عملیات ختم شی .

ښاغلی غفوراحمد ویلی دی چی حکومت دیو پلان له مخی دملك اقتصاد خرابوی اوپه دی توګه غواړی چی ولس په اقتصادی مسئلو کښی داسی ډوب کړی چی دحکومت ناوړه چاروته یی پام نشی .

غفوراحمد غوښتنه کړیده چی دراډیو او ټلویزیون څخه دملی عوامی ګوند په خلاف پروپاګند دی سمدستی بند شی اواخبارونه‌دی

آزاد پرېښودل شي .

ښاغلي غفور احمد په پښتونستان کښې دپښتنو دسپکاوي سخته غندنه کړيده اوويلې يې دي چه دپښتنون په شان غيرتي قام سره ناوړه سلوك دپاکستان دړنگولو په لوري گام دي .

غفوراحمد ويلي دي‌چې‌که حکومت دپاکستان سلامتي غواړي نودپښتنون ، بلوخ په مقابل کښې دي دتيرى له پاليسى څخه لاس واخلي خوداسي ښکاري چې حکومت دپاکستان لـه سلامتي څخه دخپل اقتدار سره زياته مينـه لري .

**دوړۍ ۲۲ :**

دپېښور څخه په زارسيدلي خبر کښې‌ويل شويدي چه‌پاکستاني مقاماتو په خان عبدالغفار خان باندي بنديز لگولي دي چه دپښتونستان نه بهرنشي وتلي دپاکستان حکومت دغه امر په هغه وخت باچاخان ته سپارلي چه هغـه پنجاب ته دتگ په نيت اټك ته رسيدلي ؤ چه دپاکستان حکومت نه غواړي چه دباچاخان اوخان عبدالوليخان دپنجاب اولس په هغوټولو مظالمو باندي خبرکړي چه دپاکستان حکو مت يې دپښتنو اوبلوڅوسره کوي .

خبرزياتوي چه‌په پنجاب کښې ملي عوامي گوند دځينو ولسي غونډو جوړولو ترتيب نيولي وه چه په هغو کښې دپښتونستان سترمشر باچاخان اودملي عوامي گوند رئيس خـان عبدالوليخان ته دويناکولو بلنه ورکړې شوي وه .

**دوړۍ ۲۵ :**

دبلوچستان له کوټي څخه په يوخبر کښې ويل شويدي چه پاکستاني منصبدارانو يـو شمير بلوڅ ولسي مشران پدې تور بنـديان کړيدي چې دسرتيروسره مرسته کوي خبـر وايي چه دحسني قبيلي مشر ښاغلي ميرعلي جان اودهغه نولس تنه ملگري پوليسو نيولي دي اوداتوريې پرى لگولي دي چې سرتيـرو ته وسله اودخوراك ، څښاك شيان برابروي.

په خبرکښې‌زياته شويده چه دنال اودنورو سيمو څخه هم يوشمير محصلين او مشران په دغه تورنيول شوي اودمچ بنديخاني تـه استول شويدي په خبرکښې داهم ويل شوي دي چه دبلوڅو سرتيرو په ضد دپاکستا ن دنظامي قواؤ ټول کوښښونه کومي نتيجې ته ندي رسيدلي او سـر تـيري ورځ په ورځ دبرياليتوب په لورمخ په وړاندې ځي .

دکراچي په يوبل خبرکښې ويل شويدي چه احمد نوراني پخپلـه يوه و ينا کښـې دپاکستان حکومت ته مشوره ورکړيده چـې دبلوچستان دمسألي دحل کولو دپاره دبلوڅو مشرانوميرغوث بخش بزنجو ، عطاء الله‌مينگل اوخيربخش مري سره خبري وکړي .

خبروايي چي ښاغلي نوراني پخپله وينـا کښې دافغانستان‌اوپاکستان ترمينځ دمناسباتو دخرابوالي مسئوليت په پاکستان اچولي دي اوويلي يې دي چې دپښتنو او بلوڅو سـره دتوپ په ژبه خبره‌کول يوه لويه سياسـې غلطي ده .

**دوړۍ ۲۵ :**

دلاهورپه يوخبرکښې ويل‌شويدي چه دملي عوامي گوند رئيس خان عبدالوليخان ويلي دي چه دحکومت دغه ادعابيخي بی اساسه ده چه

گوندي پهځانګړې تو ګه دپاکستان مسئلــــي حل کولی شي .

خان عبدالوليخان ويلي دي چه په خپــل لاس بحران پيدا کول اوبيا دبحران ختميدل اعلانول ولس ته دتيرورکولو شخه پرته بــل څه نه دي .

دلاهور په غونډه کښي دمتحده محاذ ځينو نورو مشرانو په حکومت باندې تورولګوه چه دخپل عمراوږدولو دپاره بحرانونه پيداکوي .

**دوړۍ ۲۷ :**

ښاغلي اکبر خان بګټي دپاکستان دحکومت سره په يوهکتنهکښي ويلیدي چه دبلوچستان دمسألي دحل يواځني لاره داده چه دبلوچستان دملي عوامي ګوند ټول مشران له بند څخه خوشي کړای شي د بلـو چستا ن څخــه پوځونه وايستل شي اودبلوچستان حکو مت ملي عوامي ګوند ته وسپارل شي، ښاغلـــي اکبربګټي زياته کړه چه په پاکستان کښي دملي عوامي ګوند دمرستي نه پرته دحکومت کولو تصورنه شي کيدی ، اکبرخان بګټـــي ويلي دي چه دحکومت په بلنه کراچي تهراغلي وم اودبلوچستانپه باب اوسهمزماعقيده هغه عقيده ده کومه چه پخوا مادرلوده ، ښاغلي بګټي ويلي دي چه دبلوچستان او سنیاياليتي کابينه بيکاره اوغير فعاله کابينه ده او دوی دکښالو دهواره ولوپه ځای مسألي پيدا کوي. ده زياته کړيده چه ددا سي کابيني ړنګــول ډير ضروري کاردی .

ديوستوال په ځواب کښي پخواني ګورنر بګټي وويل چه دسرتيرو دمخ نيوي په کـــار کښي دحکومت ناکامي ځماددې خبرې ثبو ت

دي چه دبلوځونوپه زورتابعکول ګرانه خبرده. ده وويل چه بمباري اوپوځي عمليات مسألي نشي حل کولی.

**دوړۍ ۲۷ :**

لهپيښورنه په رارسيدلي خبر کښي ويل شويدي چه دپښتونستان پخواني ګورنرارباب سکندر خليل دصوات شانګله پارپه ځايونو کښي ولسي غونډوته ويناوي کړې دي پهدغو ويناووکښي نوموړی ويلي دي چه پښتنوتــه دپاکستان حکومت غداران وايي خو حقيقـت دادی چیپهاولسي حقونوسترګي پټول جيلونه دبنديانو نه ډکول پخپل جوړکړی اساســي قانون پوری ملنډی کول پخپل لاس بمونــه اورول غداري ده .

حق غوښتل اودخپل حق دپاره وينه تويول دوطن سره وفاداري ده.

سکندر خليل په پښتنو غږکړيدی چهدوطن جنګ شروع دیاووطن دخلمونه قرباني غواړی خلمي دی ميدان ته راوځي اوثابته دی کړي چه هغوی خپل حق په خپلو متواخيستیشي.

دپښتونستان ستر مشر خان عبدالغفارخان په ديرکښي يوی اولسي جرګي ته دوينا په ترځکښي ويلي دي چه په پاکستان کـــي د بلوڅو اوپښتنو دپاره دعزت ژوند نشته او بايدچه دغه قومونه په شريکه راپاڅي اوخپله آزادي وګټي باچاخان اوس دديراوچترال پــه دوره وتلي دي .

**دوړۍ ۲۸ :**

سياسي معين ښاغلي وحيد عبدالله پخپله مرکهکي دواشنګټن پست دورځپاڼي د نماينده ښاغلي ليويس سايمنز سره دپښتونستان په

باره کی داسی وویل :

**پوښتنه :**

لطفاً په لنډول له پاکستان سره خپل روابط بیان کړی ؟

**ځواب :**

یقین لرم دهغه یواځنی سیاسی اختلاف له تاریخچی سره بلدیاست چی دافغانستان اوپاکستان ترمینځ شته ، هغه شی چی افغانستان یی غواړی دادی چی پاکستان دی دپښتنو اوبلوڅو خلکوحقه حقوق په خپله دهغوی له خوا دراتلونکی سرنوشت دټاکلو په غرض په رسمیت وپیژنی .

افغانستان دپاکستان ددولت دتاسیس نه مخکښی اووروسته لههغه، هڅهکړیدهچه دغو خلکوته دسرنوشت دټاکلو حق ورکړ شی .

متاسفانه په هغو ټولو هلو ځلو سره چه تراوسه افغانستان کړی دی پاکستان ندی حاضر شوی چه د غهکار سر ته ورسوی .

پښتانه او بلوڅ اودهغوی خاورهمیځکله دپاکستان جزء نه وه او نده دد غه خلکاو دهغوی خاوره د استعمار دزور په اثرنیول شویده . وروسته له هغه پهنیمه وچه کی حالات بدل شول بیاهم د هغه استعمار دفشار دسیمیسیلاندی یوازی یو مصنوعی ریفرنډم وشو چه دخلکو اکثریت ورسره

پریکړه وکړه .

افغانستان تل ټینګهعقیده لرله او لرییی چه باید دغو خلکوته دسر نوشت دټاکلو حق ورکړ شی .

په بلوچستان کی د پاکستاند ظلمونو پهضد ملیمبارزه روانه ده اوپهپښتو نستان

کی هم دسیاسی استقرار نشتوالی پیل شوی دی . لهپاکستان نه دافغانستان دخلکو او حکومت هیله داده :مخکی لههغه چهډیر وخت تیر شوی وی د پښتنو او بلوڅو له مشرانو سره چه غیر دیموکراتیك او غیر عادلانه ډول تر فشارلاندی نیول شوی اوبندیان شوی دی خبری وکړی .

**پوښتنه :ــ**

**آیا دافغانستان د خلکو او حکومت د غه** هیله دپاکستان نپه کورنیو چارو کی لاس وهل ندی ؟

ځواب ــ نه، ځکه لکه چهومی ویل، دغه خلك یعنی پښتانه او بلوڅ داستعماری شومو فعالیتونو په اثر پهزور اشغالشوی اوهیڅکله یی دبرتانوی هنداو پاکستان یوهبرخه نده جوړهکړی بلکه په یوه خاص حالتکی وو .دافغانستان خلك نشی کولی دخپلو دملیونونو پښتنو اوبلوڅو ورو ڼود سرنوشت د آیندی پهباب بی تفا و ته پاتی شی .

**پوښتنه :ــ**

ترکومه ځایه چه مو په یاد دی دانقلاب نهمخکی دبلوڅو مسالهنهیادیدهاو ښاغلی محمد داؤد دهغه پهخپله مطبوعاتی مرکه کښی یاده کړه .

ځواب ــ ددی په خلاف دبلوڅو د آزادی غوښتنی مبارزه له ځانه اوږده تاریخچه لری چه لهکلونو کلونو او په تیره بیا دپاکستان دتشکیل نه وروسته یی تبارز کړیدی خو اوسنی حالت یعنی مسلحانه مبارزه په افغانستان کی له انقلاب نه څلور پنځه

میاشتی مخکی هغه وختچه‌په غیرقانونی ډول په‌بلوچستان او پښتونستان کښی د اکثریت حکومتو نه لغو شول او بلوڅ مشران بندیان شول پیل‌شوه ۰

دپاکستان دتیر یو له نظره په تیره بیا په بلوچستان کی د بلوڅو نوم یادشوی دی ۰

پوښتنه :-

ددغه بدلون مقصد څه دی ؟

ځواب - خاص منظور نه لری یوازی د ښه فهم او پیژندلو له پاره ،ځکه دو اړه زمونږ ورونه دی اود هغوی دسر نو شت حق تاییدوو ۰

پوښتنه :-

په‌څو وروستیو میاشتو کی‌له‌پاکستان سره ستاسو روابط دیادونی وړ ډول سره مخ په خرابیدو شوی دی۰ پدغه شان فضا لی څرنګه کیدی شی داختلاف دحل له پاره لاره پیداشی ؟

ځواب - د افغانستان او پاکستان روابط هغه وخت خراب شول چه‌دپاکستان حکو مت حتی په افغانستان کی له انقلاب نه مخکی دپښتنو اوبلوڅو دحقه حقو قو دپښو لاندی کولو اقدام‌وکړ ۰په‌پښتونستان او بلوچستان کی چه داکثریت‌حکو متو نه لکه‌چه مخکی می وویل لغوه کړل او دوطن پالونکو په‌ضدیی مسلحانه فعالیتو نه پیل کړل دپاکستان دغو اقدا ما تو په اثر افغانستان نشی کولی په پښتنو او بلوڅو باندی ددغه راز فشار په مقابل کښی بی تفاوته پاتی شی او لدی امله چه مو نږ په دی سیمی کښی دسو لی او استقرار اهمیت ته متوجه یو نه غواړو د پاکستان دزمامدارانو د غیر مسوولو اعمالو او هغه فشار په‌مقابل کی چه په پښتنو اوبلوڅو یی اچوی اودسیمی سو له او استقرارله منځه وړی یوازی کتونکی واوسو .

پوښتنه :-

تاسو مخکی اوسنی حال دابنګله دیش د ۱۹۷۱ کال له‌حالت‌سره مقایسه کړ هغه وخت له ختیز پاکستان نه لس ملیو نه پناه وړونکی هند ته‌لاړل هند هغوی‌دځا ن له‌پاره تهدید وباله او له پاکستان سره‌د دنو پناه وړونکو دمراجعو له پاره‌وجنګید ؟

ځواب - که پاکستان داولتیماتوم دنیتی له ختمیدو نه وروسته د بلوچستان په‌کلیو اوبانډو بی له‌توپیر نه بمباری وکړی‌دهماغه څه فکر کیږی چه په بنګه دیش کی‌وشول۰

پوښتنه :-

آیا په‌هغه صورت کی به د پاکستان سره مقابله وکړئ ؟

ځواب - ګرانه ده چه پدی مرحله کی ستاسو پوښتنی‌ته‌ځواب ووایم ۰خو دو مره وایم‌چه که هغه‌حالت منځ ته‌راشی نه‌یوازی افغانستان او پاکستان ته‌به ستر پرا بلم وی بلکه دنړی ددی سیمی سولی ته به ستر خطر پیداکړی ۰

دهمدغه علت اود همدغه مسؤلیت د احساس له مخی‌ږچه د افغانستان د دو لت رییس ټولو اسلامی هیوادو له مشرا نو

داسلامي جرگې سکرتر جنرال اود ملګرو ملتو د موسسي د سر منشي په ذريعه ددغه موسسي دټولو غړيو هيوادو له حکومتو نو څخه وغوښتل مخکې لدې نه چه دغه راز پيښه وشي د پاکستان صدر اعظم ښاغلي بوټودغه راز خطر ناکو عواقبوته په دوستانه تو ګه ملتفت کړي ·

پوښتنه :-

د اسلامي هيوادو دجرګې سر منشي ښاغلي تهامي د ښاغلي بوټو او دپاکستان دمشرانو سره له کتني نه وروسته ډير خو ښ نه وو او حالات يې بحراني وګڼل ·

ځواب - ښاغلي تهامي زمونږ دريغ په ډيره ښه تو ګه حس کړي دی او مو نږ ښه پيژني چه دسو لي دټينګيدو اوساتني او دخبرو کولو طرفداريو اوعقيده لرو چه نشو کولی چه مسالي يوازې دزور له لارې حل وفصل کړو له بوټو څخه غواړو چه د يو واقعي سياسي مشر شهامت پيدا کړي د پښتنو او بلوڅو او د افغانستان مشرانو سره دې خبرې پيل کړي اودپيښو د پيدا کيدو لپه دې نه کوي ·

پوښتنه :-

زه له پاکستان څخه راغلي يم هلته مې ديونيم ساعت دپاره دبوټو سره مر که درلوده زياتي موضوع ګاني په همد غه خبره راڅرخيدې هلته اودلته له سفر نه وروسته پدې فکر کې شوم چه خبرې کول امکان نه لري ځکه چه دريځونه له يو بل څخه ډير لرې او ثابت دي ·

ځواب - داخبره بيخي په بوټو پو رې اړه لري خو هغه نشي کولی چه د يومسلم حقيقت څخه انکار وکړي · بايد په ډا ګه وواېو چه د مسألي دحل کيدل په اسلام آباد کې ده نه په کابل کې ·

پوښتنه -

خبرو دپاره ستا سې شرط څه شي دی؟

ځواب - زمونږ شرط دادی چه خبر ې کول بايد قيد او شرط ونه لري ·

مونږ چمتو يو چه دپاکستان سره داختلاف په باره کې ددغې يوازنۍ مسئا لې په باب خبرې وکړو ·

پوښتنه :

ښاغلی بوټو وايي چه دا مساله د پاکستان کورنۍ خبره ده ؟

ځواب - دپاکستان مشرانو تل دا خبره کړيده مونږ هيڅکله دغه مساله د پاکستا ن کورنۍ نده ګڼلې ·

پوښتنه -

که چيرې ښاغلی بوټو خپل اولتيماتوم اجرا کړي او بمباري پيل کړي څه کول غواړئ ؟

ځواب - مونږ نشو کولای چه دد غه اعمالو په مقابل کې بې تفاو ته پاتې شو·

پوښتنه :

ددواړو هيوادو په سر حدو نو کښې د افغانستان او پاکستان دپو ځونوځا ی په ځای کيدل زه‌جنګ تعبيروم؟

ځواب - دافغانستان له خوا د پوځو نو ځای په‌ځای کيدل قطعا او هيڅکله ندی‌شوی

مـــونږ د ی جر آت لر و چه تاسو تـه بلنه در کړو او لازمی آسانتیاوی برابر ی کړو چه مربوطو سیمو ته‌لاړشی اود یـو آزاد ورځپاڼه لیکـــو نکـی په حیث دغـــه ځایونه وګورئ اودابه ډیره ښه وی چـه د تش په نامه سرحدنه اخواعینی کتنی وکړئ او مقایسه وکړئ چه کوم هیـواد خـــا ص عسکری ترتیبات نیو لی دی ۰

**پوښتنـــه :**

پوهیږم چه پاکستان خپلی قـــواوی متمرکزی کړیدی اولدغه ټکی څخه انکار هم نه کوی ۰

ځواب ــ ښه شوه چه ستا سی پد غـه تصدیق سره نړیوالو ته معلومهٔ شـوه، پـه داسی حال‌کی چه څه وختد مخه ښا غلی بوټو په سرحـــدونو کـی په افغـا نستـان او هندتورووالګاوه چه خپل پو ځـــونـه یی سرحدونو ته راوستلی دی خودوی پـه خپله په سرحدونو کی‌پوځو نه اچولی اوستاسی له‌ویناسره سم له هغی څخه انکار هم‌نـــه کوی ۰

**پوښتنـــه :**

ستاسی نظر څه دی چه په خپله ورځپاڼه کښی‌یی په غتوټکو ولیکم چـه په بلوچستان کښی د اولتیماتوم د اجرا کولو په‌وخت‌کی به تاسی دپاکستان سره مقابله وکړئ ؟

ځواب ــ بی تفاو ته به پاتی نشو ۰ کوم شی چه دپاملرنی وړدی دادی که چیری فرځیاً مقابله وشی عواقب به یی له هغه څه نه چه‌تصور کیږی زمونږ دسیمی‌د پاره ډیـــر خطرناك وی ۰

**پوښتنـــه :**

دپاکستان سره خپل پو ځی قـــدر ت څرنګه مقایسه کوئ ؟

ځواب ــ متأسفانه نه شم کو لی چـــه ستاسی دغـــه پوښتنی تـه ځـواب ووایم .

**پوښتنـــه :**

دمقابلی دپیداکیدو په وخت کی به آیا هند مرسته وکړی ؟

ځواب ــ بیا هم داخبره تکراروم چـــهد افغانستان او پاکستان تر مینځ دیوی ناوړی پیښی دپیداکیدو په‌وخت کی به دغه‌ساحه تنګه پاتی نه شی۰

**پوښتنـــه :**

دځینو بلوڅانو د تسلیم کیدو په باره کی څه ویلی شئ ؟

ځواب ــ دبلوڅانو تسلیمیدل حقیقت او ریښتیا ندی ځکه چه دوی د یو پرنسیـــپ دپاره جنګیږی ۰

**پوښتنـــه :**

دپاکستان سره دمقابلی په صورت کی څه‌ډول او له کومه ځایه کولی شی‌مرسته واخلی ؟

ځواب ــ له ځانه دفاع د هر ملت‌وظیفه ده ددغه شان حالت تصور باید ونه کړو چه‌پیښی محدودی پاتی کیدای شی ۰

**پوښتنـــه :**

که چیری د امریکا متحده‌ایالات‌پاکستان ته‌وسله ور کړی ستاسو عکس العمل به څه شی وی ؟

ځواب ــ هیله لرو د امریکا دمتحــدو ایالاتو حکومت په هغې پوهــې ســره چــه لری یې دنړۍ ددې گوټ دســولـې دساتنې دپاره دغه کارونه کړی .

پوښتنـــه :

د ځینو امریکایانو سره دا اندیښنهشته چه پاکستان دسیمی پــه تسلیحاتی مسابقــه کـــی وروسته پاتی دی پاکستان د هنــد د وسلی پهمقابلکښې بیخی عاجزدی په هغــه چټکتیا سره چــه افغانستان هــم خان مسلح کوی ځهموده وروسته به لهپاکستان نـــه مخکی شی .

ځواب ــ همدا اوس پاکستان له نو رو منابعو وسله ترلاسه کوی اودهغه هیوادپه سلوکی پنځه اویا بودجــه پـــه تسلیحـا تو باندی لگیږی .که چیری دامریکا متحـــده ایالاتهم هغه هیواد ته خپله وسله ور کړی پهسیمه کی دپوځونو انډول گډوډ کیږیلدی امله هیله لرو د امریکا متحده ایـــــالات دیوه ستراو سولی دعلاقه لرونکی هیواد پــه توگه دغهکار ونه کړی .

پوښتنـــه :

آیانور مطالب شته چه غواړی خپاره یی کړیء ؟

ځواب ــ دواشنگتن پست له جریده ی ځخه زما هیله اوانتظار دادی هغه څه می چه ویلی دی بی لهتحریف څخه دی یــی خپاره کړی .یو بلټکی چه غوا ړم څرگند یی کړم دادی چه پیښه لتولد هر چادپاره چهوی یو تجملی امر دی . دهنداوپاکستان دووجنگونو دغه حقیقت په عملی ډولثا بت کړ ددی سیمیهیوادو نه اقتصادی پراختیا اودخپلو خلکو دژوند ښــه کــولوته اړدی او باید هڅه وکړی له هغه څه نه چه منـابــع پهحیرانوونکی ډول بی ځایه له لاسه ورکوی ډډه وکړی .

پوښتنـــه :

زه هم ستاسو لدی نظریی سره پوره موافقه لرم اما فکر کویء چه بوټو د جنـگ طرفدار دی ؟

ځواب ــ د ښا غلی بوټو سختی وینا وی اوبمباری سره بلوڅو ته گوا ښی اود هغود یوه مخیزه له منځه وړلزیات یوی حاد ئــی غوښتنی تهور ته دی .

ښایی ددهبلمقصد دپاکستان له کورنیو ستونزو نه دهغه هیواد دعا مه افکا رواړول هموی . د پو ځونو اچول چه مو نږ تــه یی نسبت کړی همد همدی مقصد له پاره وو .

خوولیدل شی چه دی به د خپل هیواد دخلکو عا مه افکار چه ورځ په ورځ د زیاتو مسائلو او ستونزو سره مخامخ کیږی، ترڅه وخت پوری منحرف اومشغول وساتی .

پوښتنـــه :

پاکستانی مقامات وایی داسی سندو نه پهلاسکی لرو چهپهپاکستا ن کی دورا ن کاری دسر ته رسولو دپاره په افغا نستان کی دگریلایانو درو زنی د کمپو نوشتوالی ثابتوی .

ځواب ــ داله افسانیتهپرته بل شی نه دی او کهچیری داسی شی مو جود ویحاضر

یو دغه سندو نه وګورو .

بوټو لدغه دول جعلی داستان و یلو سره خاصه مینه لری. د افغانستان د جمهوریت دیوه مسوول مامور پهحیث په څرګند دول وایم چه هیڅکله زمونږ په هیواد کی دغه شان مرکزونه نه وو او نه شته اوهغه بیخی ردوم .

د واشنګتن پست نماینده ـ ستاسی له مرکی نه مننه کوم

**دوړی ۲۹ :**

دبلوچستان له نو شکی څخه پهرارسیدلی خبرکی ویل شوی دی چه پاکستانیمقاماتو دنوشکی او توکندی په سیمو کی ۱٤٤ ماده نافذه کړی ده چه د هغی له مخی یی په ولسی غونډو مظاهرو کی دپنځه تنو څخه دزیاتو کسانو په غونډیدلو او لوډسپیکر په استعمال بندیز لګولی دی .

دبلوچستان له کوټی څخه په رارسیدلو خبرونوکی ویل شوی دی چهد بلوچستان په ولس باندی د پاکستان د حکومت ظلمونو دپخوا په شان دوام لری .

خبرونه وایی چه پاکستانی مقاماتو زیات شمیر پښتانه او بلوڅ محصلین له امتحانونو څخه محروم کړی او په بیلو بیلو بندی خانو کی یی اچولی دی .

**دوړی ۳۰ :**

دپښتونستان نه رارسید لو بیلو بیلو خبرونو کی ویل شوی دی چهد پښتونستان په ټولوسیمو کیدپاکستان دحکومت په خلاف دسخت مخالفت کرکی مظاهرو او اعتصابونو سره سره د پاکستان په سیمو یعنی سند او پنجاب ولایتونو کی هم دهغه حکومت په خلاف اعتصابونه دوام لری .

پهخبرکی ویل شویدی چه په کرا چیکی دبیلو بیلو کارخانو پښتنواو بلو څو کار ګرونکو چه سیند یانو هم ور سره ملګرتیا کړی ده دپاکستان دحکومت په خلاف په سختو اعتصابونو لاس پوری کړی دی .

دکراچی نه په خپور شوی رسمی خبرکی ویل شویدی چه دپاکستان حکومت دد غه اعتصاب په اثر یو زیات شمیرکار ګران د پاکستان دقانون ساتنی د مقرراتو سره د مخالفت په پلمه نیو لیاوبندیخانو ته یی لیږلی دی .

**دوړی ۳۱ :**

دملی عوامی ګو ند مشر خان عبدالولی خان د پښتونستان د ایالت پخوانی ګور نر ارباب سکندر خان ته وظیفه ور کړی ده چه بلوچستان تهلاړشی اود مری په سیمه کی دچمالنګ هغهبلوڅ ووینی چه د روانی میاشتی په لومړی هفتهکی دپاکستان طیارو بری بمباری کړی ده .

په چمالنګ کی ددغه بمباری په نتیجه کی تقریبا خلور سوه مریان بلوڅشهیدان او زخمیان شوی دی او یو زیات شمیر یی دبوډاګانو تورسرو او ما شو ما نو په شمول پاکستانی پو لیسو نیو لی اودکولو پوځی تعذیری کمپ ته یی لیږلی دی پدغه خبر کیویل شوی دی چه دچمالنګ دمریانو په زرګونو څاروی او بنسان او ګډی

بزی دپاکستان افسرانو و لجه کړی او اوس یې په بازارو نو کې خر شوی . پدغه پیښې باندې په ملي عوامي گوندکې ډیر تشویش پیدا شویدی نو ځکه ارباب سکندر خان چمالنگ ته لیږل شوی دی چه حالات معلوم کړی او د بلوڅو سره ددی خونړی پیښې په باب صلاح مشوره وکړی د غه راز دپښتونستان له پیښور نه په یو خبر کې ویل شوی دی چه دپښتو نستان په ټو لو سیمو کې دپاکستان دحکومت په خلاف مظاهری احتجاجونه او اعتصابو نه روان دی .

دتلی لومړی :

د باندنیو چارو دوزارت د اطلاعاتو مدیریت خبر ور کړ چه پدی وروستیوختو کې دپاکستان حکومت د افغانستان په فضایی سیمه باندی دهغه هیواد د یوپوځی هیلی کوپتر دتیری په نسبت دافغانستان دباندنیو چارودوزارت په رسمی ډول دخپل معذرت خبرورکړی دی چه د افغانستان د جمهوری دولت دمربوطو مقاماتو تر غور لاندی دی .

دتلی ٤ :

دپاکستان وسله وال پو ځو نه دبلو څو سرتیرو د کوریلایی نهضت د مخنیوی د پاره دیوی لوی جملی په لټه کی دی .

دامریکا داسو شیټیدپرس د خبررسولو آژانس ددغه مطلب درپوټ په ترڅ کی ویلی دی چه دپاکستان دهوایی قواو الوتکی دبلوچستان په سیمو باندی دحملی گو لو په نیت په منظمه توگه دالوتنی تیاری نیسی.

آژانس دبلوچستان د پخوا نی گور نر اکبرخان بگتی له قوله ویلی دی چه د پاکستان حکومت غواړی چه دسرتیرونهضت بیخی له منځه یوسی .

د تلی ٦ :

دهغه زلمی محصل مړی چه ویل کیږی دپولیسو دوهلوو له امله وژل شوی دی د کوټی یوشمیر خلکو په اوږو واخیست اود کوټی دښار په واټونو کی یی وگرزاوه . د اسو شئیتید پرس د خبر سره سم د غه خلك په پای کی ددغه مړی سره دیووزیردکور په مقابل کی ودریدل اودحکومت ضد شعار ونو په ورکولو سره یی مظا هره وکړه. او په اداری دستگاه باندی یی دخلکو په ضددظلم او نیری تور لگاو . لکه چه معلو مه شو ی ده په پای کی مظا هره گوو نکی دپولیسو د مدا خلی په اثر تیت اوپرك شول .

ویل کیږی چه پدی پیښه کی څو تنه نور ټپیان شول اویو شمیر مظاهره گوو نکی دامنیتی قوا له خوانیول شوی دی .

د تلی ١٥ :

دبی بی سی نماینده له اسلام آباد څخه خبر ور کړی چه په پاکستان کی دحکو مت دمخالفو گو ندونو ډلی یعنی دیموکرا تیکی متحدی جبهی تصمیم نیو لی چه دبلوچستان مسائلی ته دپاکستان دخلکو او بین المللی ټولنی پاملرنه راواړوی .

دپښتنو دنورو گو ندو نو دمشرانوسره

دخلکو دديمو کراتيکی جبهی مر کــز ی اجرا يه جرگه کی دتيری هفتی په سرکـــی په کرا چی کی دری ورځنی جرگه وکړه اوپه هغی کی يی پهٔ نيره دبلوچستان دمسا لی په باره کی خبری وکړی ٠

دغی جرگه کی په يو فيصلــه ليك کښی له حکومت څخه وغوښتل چه بلو چستا ن ته استول شوی عسكر ډير ژر خپلو اډو تــه راستانه کړی٠

سياسی بنديان خوشی کړی دبلو څــو خلکو ديمو کراتيك او قانونی حقـــو ق هغوته بيرته ورکړی اودبلوڅو مشرانو لــه تبعيد څخه دی ډډه وکړی ٠

د بی بی سی نماينده زياته کړی ده چـه دغی جرگه کی څرگنده کـړی ده چـه پــه بلوچستان کی دهوايی حملوشمير او پـــه دغه سيمه کی دنظامی افرادو عمليات زيا ت شوی دی ٠

دخلکو متحدی ديمو کراتيکی جرگه کی د اسلامی جرگی ددارالانشاء سکرتر جنرا ل ښاغلی حسن التهامی ته سمدستی تلگـرام استولی او په هغه کی يی له ده څخه غوښتی دی چه په بلوچستان کی دپاکستان د پوځی قواؤ د عملياتو د سمدستی پـای ته رسولو په لارکی دخيل اوددغی مؤسسی له نفـو ذ څخه کار واخلی ٠

دمتحدی ديمو کراتيکی جبهی لوی منشی ښاغلی پرو فيسر غفور احمد دد غی فيصلی څخه وروسته وويل : ددوی د اقدام مهـم علت دادی چه مخالف گوندو نه دی نتيجی ته رسيد لی دی چه پاکستان د هغه هيواد دحکومت د اقداماتو په اثر پهٔ بلوچستان کښی دگړنگ سرته رسيدلی اوهره ورځ دهغـــه دلويدلو او تباهی ويره شته ٠

دبی بی سی نما ينده زيا توی چه دمتحدی ديمو کراتيکی جبهی مشرانو پتييلی ده چه په اسلام آباد کی دبهر نيو هيوادو نـــود سفيرانو سره په راتلونکی اوونی کی وگوری او دبلوچستان حالات هغوی ته ثر گنــد کړی ٠

څرنگه چه دپاکستان حکومت څه مو د ه پخوا يوشمير سفيران بلو چستان تــــه بوتلل چه حالات هغوی ته دحکومت پــه سترگو وښيی څکه نود پاکستان د حکو مت مخالفان دی نتيجی ته رسيد لی دی چـــه اوس هغه وخت دی چه په پاکستان کښی د بهرنيو هيوادونو سفيران دحکومت له رسمی ادعاگانو سربيره دبلوچستان په حقيقی حالت په هغه خای کی دپاکستان دحکومت په نظامی عملياتو اودبلوڅو په دردوو نـکـو حـالاتـو هم خبر شی ٠

دتلی ۱۵ :

دملی عوامی گوند رئيس د کـــراچـی په هوايی ډگر کی د اخبار ليکونکو دپوښتنو په ځوا ب کی وويل :

مخالف گو ندونه دپاکستان د حکومت سره دبلوڅو او پښتنو د مسئلی د حل لپاره خبروته چمتودی اوهر وخت چه دپاکستان حکومت دخپل ضد نه وگرزی نود مخا لفو گوندو نو متحده جمهوری محاذته وال وکړی

شوی دی چه هغه وخت ور سره دبلوچستان او پښتونستان په باب خبری وکړی ۰

ولی خان وویل : دبلوچستـان مسئلـه یوه سیاسی مسله ده خو حکومت کو ښښ کوی چه دقوی داستعمال او تو پك په وسیله یی حل کړی حال داچه حکـومت پـه خوله تشی چغی وهی چه دوی دد غی مسئلی دسیاسی حل کوښښ کوی ۰

په بلوڅـو او پښتنو بانـدی دغـه تـول مظالم ځکه روان دی چه له حکو مت نـه خپل حقوق غواړی اوحکومت تری دا انتقـام او کسات اخلی چه بلوڅو او پښتنو پیپلز گوند ته ولی رایه نده ورکړی . دبلوچستان انتخاب کـړی شوی اولسی او سیـا سی مشران دپاکستان په بندیخانو کی پرا ته دی او دبلوچستان داولس واك د افرا طیا نو په لاس کی دی که چیری دغه حالت نور هـم دوام وکړی نو سیاسی حالت به دو مر ه خراب شی چه بیابه یی عادی کول ډیر سخت او مشکل شی ۰

ولی خان زیاته کړه ـ حکومت د خپلـو نظامی وسله والو قواوو په وسیلـــه د بلوچستان او لس له خپلو سیمو نه شړل غواړی خو که هغوی هم توپك ته لاس کړ نو د پاکستان حکومت ته بی له پښیمانی نه بل هیڅ په لاس ورنشی ۰

په بلوچستان کی دانکشافی چارو په لـړ کی دپاکستان د حکومت دویناؤ اوخرگندونو په باب خان عبدالو لی خان د اخبــــار لیکونکو پوښتنو ته په ځواب کی وو یل دغه

ډول ویناوی دپاکستان دحکومت یوعام ډول توقی تشی او مـذاقی دی چـه دپښتنو او ـ بلوڅو په سیمو کی یی کوی د مخا لفـو گوندونو مشرو ویل : دپاکستان حکو مت ده ته اجازه نه ورکوی چه دبلوچستان کو مه سیمه و گوری اودمخا لفو گوندو نو هغه هیأت ته چه دبلوچستان کتنـه یـی کـو له هغو ځایونو ته دور تگ اجازه نده ورکړی شوی چه هغوی یی کتل غوښتل هغه وو یل دپاکستان دحکومت سره دبلوڅو او پښتنو دسیاسی حالت پته ددی نه ښه معلو میږ ی چه دهغه حکومت مرکزی لوی مامورین بی له امنیتی قواؤ له کلکی بدر گـی نه د هغـوی سیمو ته نه شی ورتللی ۰

ولیجان وویل دپاکستان حکومت د مظالمو له لاسه به دپښتونستان او بلوچستان سیاسی حالت داسی ځای ته ور سی چه بیا به یی له هغی نقطی نه راگرزول ډیر سخت وی اوس بیاهم که چیری دپاکستان حکومت رښتیا وا یی نو لوړی دی له بلوچستان څخه خپل عسکر په شا کړی ځکه چه خبری دعسکری فشار او گواښ لاندی نه کیږی ۰

دخان عبدالولی خان سره تر مر کـــی وروسته پرو فیسر غفور احمد (دمتحـــده جمهوری محاذ مشر) وویل په کراچی کی به دمخالفو گوندونو د مشرانو له خوا د ـ ښاغلی غلام فاروق خټـك په کورکی غونـډه وشی او په هغی کی به دبلوچستان د تـــازه سیاسی صورت حال په باب خبر ی وشی ۰

هغه وویل هیله ده چه دمتحده جمهوري محاذ مشران په خو راتلونکو وختو کښې بلوچستان ته هم ور شي .

پەکرا چي کي دمتحده جمهوري محاذ پەغونډو کي دګډون له پاره د جمعیت العلماء اسلام ګوند مشر ښاغلي مولا نا مفتي محمود هم کراچي ته ور غلي دي .

**دتلي ۱۷:**

**دنشنل عوامي ګوندرئیس خان عبدالولي** خان ویلي دي ، چه دبلوچستان مسئله ورځ پەورځ نوره هم خرابیږي اودپاکستان حکومت دنظامي قوي په زوردغه مسا له حل نکړی شوه . ولي خان وویل چه دپاکستان پەحکومت باندي ددي خبري هیڅ فرق نه کیږي چه پاکستان ورانیږي او که پاتي کیږي او دوی هغه حالات پیداکوی کوم چه بنګله دیش کي پیداکړی شوی ؤ .

ده زیاته کړه چه حکومت پاکستان ورانوی خوغواړي چه دپښتنو او بلو څوته لو تــي لوټي وطن پاتي شي او هغوی په اقتصادی توګه دو مره کمزوري پریږدي چه ورو سته بيا دوی ته محتاج وي .

خان عبدالو لي خان زيا ته کړه چه باید حکومت پدی خبره پوه شي چه پښتا نه او بلوخ پد غه دسیسه خبر دي اوهیڅ کله پەحکومت کا میابیدو ته نه پريږدي دەوويل چه مونږ دهـري مسألـي سیاسي حــل غواړو خو که حکومت په نظامي قـــواوی مسالي حل کوی نو بنګله دیش دي نـــه هیروي .

**د تلي ۱۸:**

دروېتر نماینده له اسلام آباد څخه خبر ورکړي دي چه دپاکستان دحکومت دمخالفو ګوندونو متحدی دیمو کرا تیکي جبهي مشرانو ورمه ورځ په اسلام آباد کښي د خارجي هیوادو له نمایندګانو سره وکتل له دغي کتني څخه دهغوی مقصد دبلو چستا ن دمسالي پەباب دهغوی دنظرد ټکو مطر ح کول دي .

ددغي جبهي دهیئات رییس دبلو چستان دمبارزو دتاریخچي په تیر کال کښي پـــه بلوچستان کي د ملي عوامي حکو مت د برطرفي دیو زيات شمیر کسا نودوژ لوپه ګیږن په بلوچستان کي دپاکستان دپو ځي قواوو دنظامي عملیاتو دجزئیاتو په باره کــي خارجي سیاسي نمایند ګانو ته یو لیـــک سپارلي دي .

دهيات رئيس وويــل چــه لــه اتــو واړو سفارتونو څخه هيڅ یوه دمتحدی دیموکراتیکي جبهي له هیئات سره له کتني څخه ډډه نــه ده کړي .

دديموکراتيکي متحد ي جبهي د هیئـــا ت رييس ويلي چه له خارجي سیاســـــــي نمایندګیو سره دتماس د نیولو د پـا ره ددغه محاذ اقدام که څه هم یو غیر عـادی اقدام بلل کیږي خو دغه اقدام بلو چستان ته دروان کال دمارچ په میاشت کي دخارجي سفیرانو دبیولو په باب دپاکستان دحکومت داقدام په ځواب کي شوی دي .

ده زیاته کړه چه مونږ باید خــا ر جـی سفیرانو ته دبلوچستان دموضوع بــل اړخ چه په بلوچستان کی دپاکستان د سیاست حقایق د هغو له درد نا کو نتیجوســـر ه ښیی روښانه کړو .

دتلی ۲۰ :

د بهر نیو چارو د وزارت سیا ســی معین اود ملګرو ملتو دعمو می ټو لنیپه نهه ویشتمه غونډه کــی دافغانی هیأت مشر ښاغلی وحید عبدالله په هغــه ټولنه کښــی دعمومی خبرو په وخت کیپه یوه ویناکښــی دپښتونستانموضوع ته د اشاری په ترڅ کی او له پاکستان سره د افغا نستاندروابطو په باب وویل : چه د افغا نستان اوپاکستان دروابطو د خړپړتیا په باب د پاکستان د باندنیو چارو د وزیر جلالتمآب عزیــز احمــد دسپتمبر داوه ویشتمــی نیټــی ویناتــه دګوتی په نیولو سره باید وویل شی چه ، هغو ی دروابطو رضایت نه بخښوونکیوضع بیا ن کړی ده خود هغی دعلتله یادو لو څخه یی ډډه کړیده .

باور لرمچه د هغو ښا غلو نمایند ګا نو په ذهن کیچه پدغه تالارکی را ټول شو ی دی پوښتنه پیداشوی ده چه د روابطودغی ګډوډی او خړپړ تیا ربښتیانــی علــت به څه شیوی ؟

غواړم له موقع نه په استفادی ســـره یوازی د عمو می اذها نو د رڼاکولو اودحل دلاری د امکاناتو دلټون دپاره څر ګنده کړم چه ددغی لانجی واقعی علت د دوړوهیوادونو ترمینځه یوازینی سیاسی اختلاف دی .

په تیره پیړۍ کی دنړۍ ستر استعمــاری قدرت بریتانیا نه یوازی دا چه ورو پهورو دهند نیمه وچه دخپل تسلط لاندی راوستله بلکــه په بیلو بیلــو پلمــو لکــه د خپلـــو استعماری متصرفاتو لــه پــاره د خــونـــدی سرحدو نو د ایجاد په څیر دافغا نستــا ن په اصلی خاوره باندی تیری کړی دی او په بیلوبیلو دورو کی یی زمونږ د خاوری اود خلکو یوه برخه ددوی داصلی وطن څخـــه جلاکړل او همد غه قضیه وه چه نژدی د نیمی پیړۍ پــه مــوده کـــی د افغــانستــان اود هغه وخت د هندبرتانویحکو مـــت مناسبات یی خړ پړ وساتل او نن هــــم همدغسی قضیی له بده مر غه د استعمار د شومو بقایاؤ په تو ګه زمونږ اود پاکستان روابط چه خیال کوم دواړه د دوستا نـــه مناسباتــو هیله مند دی په هماغــی پخوانی روحیی سره خړپړ ساتلی دی .

پدغی څرګندونی سره محترمنمایندګا ن ښهتوګه درک کو لی شی چه د هنـــد له نیمی وچی څخه دبرتانوی استعمار دتسلط پهله منځه تللوسره افغانستان په بشپــړه توګه د حق خاو ند وو چه دلا سه تللی خپلی ځمکی وغــواړی مګر افغــانستان دغهکار ونه کړ او داځکــه چه دملګرو ملتو دمنشور دتصویباو پهآزاده تو ګهد استعمار لا ندی بشری ټولنو دحق خود ارادیت دپرنسیـــپ دپیژندلو څخه وروستهافغانستان لاز مــــه

وګنیله چه هغه مسئله په سالمه تو ګه اود سولی له‌لاری دپښتنو او بلو څود غوښتنو سره سم حله شی ۰ نو څکه افغا نستـا ن دپاکستان دجوړیدودهماغو لومړیو وختونو څخه تل کوښښ کړی او کوی یی چــه دغه یوازینی اختلاف په عاد لانه اوشرافتمندانه توګه د سو له ایزو مفاهیمو اوخبرواوزمونږ ترمینځ دښه نیت اود هغوی د ملــــی لاربښوونکو درضایت د جلبولو پــه اســاس حل‌او فصل شی۰

افغانستان ټینګه عقیده لری چــه د هغــو کسانو په مقابل کی چه د خپلو بشــر ی حقوقو غوښتنه کوی دقوی او زور استعمال اوبندی کول بیله دی نه چه بدبینی، نــاـ رضایتی او دډیــر مقاومت حس تولیـدکیږی بله ګټه به ونه لری او سر بیره پرد ی په‌سیمه کی سوله او استقرار به چه مونږ ورته سخته اړتیا لرو زیانمن کړی . پداسی حال کی چه دجلالتماب‌عزیز احمد ویناوی په دغه برخه کی چه ویلی یی دی دده‌حکومت دافغانستان سره تر ممکن حده دښوروابطو غوښتونکی دی مقابله‌کوم غواړم یوځـل بیـا ووایم لکه چه پخوا هم څوځو ځله‌مودخبرو له‌پاره خپل چمتو وا لی څرګند کړی‌دی‌اوس هم دزړه له کومی غواړو چه دپاکستان سره ددغه یوازینی سیاسی اختلاف دحل‌و فصل اودښه اعتماد دفضا درامنځ ته کیدلـو لــه پاره په هر ځای او هر وخت کی چه و ی بیله قیدوشرط خبری‌وکړو۰

باور لرم هغه دوست هیوادونه چــی پدغه مجلس‌کښی حاضردی دافغا نستـا ن ددغه پیشنهاد سره چه زمونږ د سو لـــی غوښتنی واقعی ښکارندوی او ددغی موسسی په منل شووپرنسیپونو باندی متکی دی له دغه مامول دلاس ته راوړلـو له پاره دفکر او عقیدی یووا لی ولری ۰

په هغه صورت کــی چه په ربښتیا ســره دسو لی همکاری‌تفاهم اود ګــــډ ژ و ند غوښتونکی و اوسو لازمه‌ده چه خپګان یوی خوا ته کیږدو اود مسؤلو انسانانو په تو ګه دغه جرآت ولرو چه‌مسئلی او پیښی‌دنظر په پراخوا لی سره‌ومنو او وپی څیړو او په‌یاد ولرو چــه دراتلونکو نسلونو تاریخ به زمونږ په اعمالو باندی قضاوت وکړی .

په اوسنی نړۍ کښی چی ټـول په یــوه نړدی اویوپربل باندی په یوه متکی ټولنــه کښی ژوند کوو دمسئلو دمقابلی او حل له پاره دی ته اړیوچی دنظرپراخوالی او جرأت ولرو .

موږبایډ هغو سترو مسئلو په مقابل کښی چی زموږ په مخ کښی پرتی دی دواقع بینی اودمسئولیت داحساسولو سره ودریږواوداځکه چی دحل دلاری پیداکولو بریالیتوب واقــع بینی ته ضرورت لری .

دتلی ۲۰ :

دباندنیو چارو وزارت نطاق دپاکستان د صدراعظم ذوالفقار علی بوټو ددی ادعا په‌باب دباختر آژانس دپوښتنی په ځواب کښی چه دافغانستان دباندنیو چارو دوزارت سیاســی

معین دواشنگتن پوست دورخپانې نماینده ته ویلی دی چه‌که دافغانستان اوپاکستان ترمینځ دښمنی پیښه شي شوروی اتحاد او هند بـه دافغانستان په طرفداری مداخله وکړی ، وویل چه دغه ادعادښاغلی بوټو دخیالاتونه پیداشوی اوپه خپله دهغه دذهن اوفکر زیږنده ده .

نطاق وویل : څرنگه چه دواشنګتن پوست دنماینده سره دافغانستان دباندنیو چـارو د وزارت دسیاسی معین دمرکی بشپړمتن دمخه خپورشوی ددغه‌متن مطالعه‌دپاکستان دصدراعظم دوینابی اساستوب اوجعلی توب ثابتوی .

نطاق زیاته کړه لکه چه افغانستان په‌وار واروپلی دی دافغانستان اوپاکستان دسیاسی اختلاف دحل لاره دسوله ایزووسایلـو سـره دبی قیده اوشرطه خبروکولولاره ده . اوترهغه خایه چه‌په افغانستان پوری اړه لری په‌دغه لارکښی به دتل دپاره خپل کوښښ ته دوام ورکړی .

## دتلی ۲۱ :

د بلوچستان له کـوټی نه رارسیدلی یوبل خبروایی چه دپاکستان حکومت په مـر ی سیمه باندی ترهوایی بمباری پخوا دهرنایی کولهو بارکهان سنزای اوځینو نورو سیمـو کښی دخښلو اوبه مسمومی کړی اوله دغـه درکه یی اولسی خلك سخت زیانمن کړیدی.

دمریانو په سیمه باندی دپاکستان دهوایی بمباریو په باب رارسیدلی خبرونه وایی چی ددغو بمباریوپه اثردیر کورونه خراب شوی اویوزیات شمیر خلك وژل شوی او ټپیـــان شوی دی .

خبر زیاتوی چه دبلوڅو دملی مبارزینو د متقابلی حملی په نتیجه کښی ډیر پاکستانی پوځیان وژل شوی اوعسکری مړی دمری دغرنی علاقو څخه په هلیکوپتر انو کښي دکوټـــی چونۍ ته راوړل کیږی .

## دتلی ۲۱ :

دفرانسپرس دنماینده خبردی چی په پیښور کښی یوی چاودنی دطبیعی گاز پایپ لایـن ته په دغه ښارکښی زیات تاوان ورساوه او دغه ښارته یی دگاز رسول بندکړی دی .

دغه چاودنه په پیښور کښی ددوو چاودنو اودپاکستان په مرکز اسلام آباد کښی له دوو چاودنووروسته شویده دپخوانیو چاودنو پـه پیښه کښی څلورتنه په پیښور اواته تنه په اسلام آبادکښی ژوبل شویدی .

دیوه بل خبرسره سم چه درویټر نماینده دراولپندی نه خپور کړیدی دپیښور د شمال ختیزپه څلویښت میلی مردان کښی وړه‌ورځ دري چاودنی وشوی چه دهغوله امله دوه‌تنه وژل شوی اوشل تنه نورژوبل شویدی .

همدارنګه خپله په پیښور کښـی هـم د پاکستان دبین المللی هوایی کرښی دودانۍ په څنګ دپیښور کلب اوپه یوه بله ودانۍ کښی چاودنی شویدی .

دفرانسپرس آژانس په هغه خبرکښی چی په‌همدغه باره کښی یی خپورکړی دی ویلی دی چه‌په پیښور اومردان کښی ددغو چاودنو سره په یوه وخت کښی په اسلام آبادکښی همدغه شان چاودنی شویدی او دهغـــه بـم دچاودنی په پیښه کښی دوه تنه ژوبل شویدی چه دراولپنډۍ دانترکانتی ننتال هـوتـل پـه

لانديني پوړکښی وشو .

**دتلی ۲۲ :**

دبلوچستان له کوټی څخه په رارسيدلی يوخبر کښی ويل شويدی چه تيره ورځ دمتحده جمهوری محاذ دمشرانو ډله د راولپنډۍ څخه کوټی ته رسيدلی ده چه دبلوچستان له جاری سياسی حالاتو څخه څانونه خبر کړی .

خپروايي چه دمتحده جمهوری محاذدمشرانو په ډله کښی چه کوټی ته رسيدلی ده خان عبدالوليخان، مولانامفتی محمود ، شيربازمزاری ميراحمد نواز بګټی ، ارباب سکندرخان ، خليل مولانا شاه احمدنورانی ، پروفيسر غفوراحمد اوملك قاسم شامل دی .

خبرزياتوی چه دملی عوامی ګوند مشر خان عبدالوليخان دکوټی په هوايی ډګر کښی دخبريالانوديوی پوښتنی په ځواب کښی وويل: چه دحکومت سره بايد دمخالف ګوند له خبرو څخه مخکښی ددوی ټول شرطونه ومنل شی .

خان عبدالوليخان وويل : چه ددوی شرطونه دسياسی بنديانو خوشی کول د بلوچستان څخه دپوځونو ايستل اودمطبوعاتو آزادی ده.

**دتلی ۲۵ :**

دافغانستان ستر مشر ددولت رئيس او صدراعظم ښاغلی محمد داؤد دکمکی اختر په مناسبت په خپله ويناکښی وفرمايل: «يوځل بيادډی بختوری ورځ له امله دافغانستان او پښتونستانی ورونو او دنړۍ مسلمانانو ته مبارکی وايم او دلوی خدای (ج) دربارنه دجمهوری نظام په رڼاکښی دګران افغانستان نيکمرغی اودنړۍ دسولی هيله کوم .

**دتلی ۲۷ :**

دپښتونستان اودبلوچستان ټولو بلوڅو او پښتنو مشرانو او په افغانستان کښی د پښتونستان او بلوچستان اوسيدونکو پښتنو اوبلوڅو دخپلو خلکوپه نمايندګی دکوچنی نيکمرغه اخترپه مناسبت دافغانستان د دولت رئيس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤد دمرکزی کميټی اوکابينی غړو اوافغان ولس ته د زړه له کومی مبارکی ويلی اوددولت درئيس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤد ترقيات لاندی يی دافغانستان دزياتی ترقی او دافغان ولس نيکمرغۍ هيلی څرګندی کړيدی .

**دتلی ۲۷ :**

له کوټی څخه دفرانسپرس نماينده خبر ورکړيدی چی دپاکستان حکومت په بلوچستان کښی داعلام شوی اولتيماتوم نيټه داکتوبر د ۱۵ نيټی نه ددسامبر تر ۱۵ نيټی پوری ځنډولی ده .

دپاکستان دمخه ويلی وه که چيری بلوڅ آزادی غوښتونکی داکتوبر تر ۱۵ نيټی پوری وسله په ځمکه کښينږدی او حکومت ته تسليم نه شی دپاکستان عسکری قواوی به په کليو اوکورونوباندی دبمباری په ګډون عمومی او پراخ عمليات پيل کړی .

دحکومت مخالفينو ويلی دی څرنګه چه حکومت داسی مساعدځواب چه دخپل اولتيماتوم څخه يی درلود لاس ته نه دی وروړی نومجبوراً يی دالتيماتوم نيټه دوه مياشتنی نوره اوږده کړی ده .

دبلوچستان پخوانی ګورنر ښاغلی محمداکبر بګټی چه تيرکال يی دحکومت دسياست په

ضد داحتجاج په توگه له دغي وظیفي څخه استعفا ورکړه دپاکستان اردویي دبلوچانو په ضد په عامه وژنو تورنه کړه .

ده وویل : چه دپاکستان پوځي قواوو په تیره بیادکویټي دختیځ دمری په سیمه کښي خلك بي له توپیره په ډله ایزه توگه وژلي دي .

ښاغلي بگټي وویل : چه هوایي قواوو په خپلو عملیاتو کښي دخلکو په ضد دماشینگڼو میراژالوتکو اودجنگي هیلي کوپترونو څخه په ښځو، نارینه اوماشومانو باندي دډزوکولو د پاره کاراخیستي دي . دسیاسي حالا تــــو کتوونکوویلي دي دمخه دپاکستان اردو تهامر شوی وچه دآزادی غوښتوونکوله خوادالتیماتوم دنه منلوپه وخت کښي ددوی په ضد پوستر برید پیل کړي .

خودنیاته دحالاتوکراری دښودلو ضـرورت لازمه کړه چه دالتیماتوم نیټه نوری دوه میاشتي اوږده شي .

درویټر نماینده له کویټي څخه په یوریوټ کښي خبرورکړی چه دپاکستان حکومت دخپل التیماتوم دنیټي داوږدولوپه مربوطه ویناکښي په بلوچستان کښي دآزادي غوښتوونکو داتلس میاشتني مقاومت دتلفاتو جزئیات ښودلي نه دي.

خولکه چه معلومه ده دپاکستان ۳۵ زره عسکردناآرامه سیمي په مرکزونو کښي پـــه نظامي عملیات بخت دي .

## دتلي ۲۷ :

دباندنیو چارو دوزارت داطلاعاتو مدیریـت خبرورکړ لکه چه پخوا ویل شوی ؤدپاکستان حکومت دافغانستان په فضایي قلمرو باندي دهغه هیواد دیوه پوځي هیلي کوپتر د تیری په نسبت دافغانستان له حکومت څخه یي رسمي ښښنه غوښتي اوموضوع دافغانستان دحکومت د مربوطومقاماتوله خواترغورلاندي نیول شوي وه ، په دي وروستیو وختو کښـي د افغـــانستان حکومت فیصله وکړه، دهغه ښه نیت لهمخي چه تل یي لری دپاکستان دحکـــومت رسمـي غوښتنه ومنی اودهغي په اساس ددوښنبي په ورځ ددغه هیلي کوپتر خلورتنه عمله مربوطو پاکستاني مقاماتو ته وسپارل شول . دپاکستان پوځي هیلي کوپتر به وروسته دغه هیواد ته وروپریښودل شي .

## دتلي ۲۷ :

دباندنیو چارو دوزارت نطاق دپاکستان د حکومت درسمي مقاماتو دغه ادعاچه افغانستان دپښتنو اوبلوڅو آزادي غوښتوونکو سره مالي اووسلي مرسته کړی اوگیریلایان په خپلـــه خاوره کښي دننه روزي . په کلکه رده کړه اوویي ویل دغه بي اساسه تورونه پخواهم دپاکستان دحکومت دبیلوبیلو مقاماتو له خوا لگول شوي ؤ او دهغوی اصلي منظـور پـــه بلوچستان کښي دپاکستان دسخت اوله تشدد ډك سیاست نه دپاکستان اودنړۍ دعامه افکارو اړول اودپښتنواوبلوڅو آزادي غوښتوونـکـو په مقابل کښي ددغه سیاست دناکامي پټول دي .

نطاق زیاته کړه چه دغه له حقیقته لـری تورونه داوضاعو دخړپړکولو اوگډوډۍ نه پرته بله نتیجه نلری اودافغانستان حکومت دپخوا په شان عقیده لری چه دافغانستان اوپاکستان ترمنځه دسیاسي اختلاف دحل یوازني ښه لاره

دروغي جوړي لاري اودپخواني قيد اوشرط نه پرته خبري دي .

**دتلې ۲۹ :**

په نوي ډيلي كښې دافغانستان لوى سفير ښاغلى عبدالرحمن پژواك چې د ملګرو ملتو دعمومي ټولني په نهه‌ويشتمه غونډه كښې يې دافغانستان دهيأت دمشاورپه توګه ګډون كړى دى دملګروملتو دعمومي ټولني دعمومي خبرو په وروستي ورځ دپاكستان د دايـمي نماينده دوينا په ځواب كښې داسي وويل :

دبشپړي غونډي په پاى كښې دپاكستان نماينده پرون يوه ويناوكـړه او دافغانستان هيأت دخپل ځواب حق وساته ترڅوهغه حقيقت چې دپاكستان نماينده په نادرسته توګه‌څرګند كړي ؤ وړاندي كړي .

له دي كبله چې دپښتونستان موضوع تر اوسه پوري دملګروملتو په اجندا كښې نده شامله شوي نوپدى اوسنى مرحله كښې به زماوينا لنډه وي .

لومړى غواړم هرډول هغه نيك نيت ته‌چې دافغانستان دخلكوپه مقابل‌كښې يې دپاكستان دنماينده په وينا كښې پيـدا كـړى شوي ، مقابلتاً مشابه ځواب وركړم .

دوهم غواړم هغه مطالب چه داكتوبر په‌اومه نيټه دافغانستان دبهرنيو چارودوزارت سياسي معين پخپله ويناكښې ويـلي او د پاكستان نماينده هغې ته ځواب وركړيوځل بيا تائيداو تاكيد كړم له‌دغي ويناڅخه چې حكومت چمتو دى چې دهري مسئلي په باب چـې ددواړو هيوادونوپه روابط باندي اغيزه كوي خبـري وشي ښه هركلي كوم غواړم په عين حال‌كښې دغه حقيقت چې انكار تري نشي كيدلى هـم تائيد كړم چې له ښه مرغه زموږ تر منـځ دپښتونستان دموضوع اودپښتنو او بلوڅـو له حقه حقوقو څخه پرته چې انكارتري نشى كيدلى هيڅ يوه داسي موضوع چې ددواړو هيوادوپه روابطو باندي اغيزه وكړي او بايد خبري وربا ندي وشي، وجود نلري .

موږ تل ويلي دي چې دغه ددواړو هيوادونو ترمنځ يوازني سياسي اختلاف يوازني موضوع ده چې بايد خبري ورباند ي وشي او دسوله ايزولاروڅخه دى حله شي .

دپاكستان نماينده وويل : چې دافغانستان دبهرنيو چارو دوزارت معين دهغوى له پاره دغه ناوړه احساس پريښى دى چه‌افغانستان دپاكستان په ځينو ځمكو باندي ادعا كوي . افغانستان دپاكستان‌دخاوري په هيڅ يوه برخه باندي‌هيڅ‌ډول‌ادعانلري‌كله چې‌دافغانستان‌دبهرنيو چارودوزارت سياسي‌معين نيول‌شوو خـاوروته اشاره وكړه مقصدېې په هيڅ ډول دپاكستان خاوره نه‌وه بلكه په څرګنده توګه يې هغـو ځمكوته اشاره كړي ده چې ديو استعـماري قدرت په واسطه دپاكستان له موجوديت څخه ډيره پخوادافغانستان څخه جلاكړي شـو ي

يعنى هغه ځمكي چې دهند له ويشلو څخه وروسته پاكستان ورباندي ادعاكړي اوتراوسه پوري دپاكستان په لاس كښې دي افغانستان دغه خاوره هيڅ وخت دپاكستان جزنده ګڼلي. هغه شعي چه دافغانستان دبهرنيوچارودوزارت سياسي معين‌ويلي‌دي‌اودعمومي ټولنى داكتوبر دمياشتي داوومې نيټې‌په‌غونډوكښې‌درج‌شويدي داسي‌دي‌چه افغانستان‌په‌بشپړه‌توګه‌حق‌درلودچي

افغانستان په بشپړه توګه حق درلودچې خپلي له لاسه تللي ځمكي بيرته وغـواړي

مگرافغانستان داکار ونکړ او دا څکـــه چـــی افغانستان عقیده لرله چی باید ددغو څمکـــو دخلکو حقوق وپیژندل شی اوپه خپله ددوی دارادی اوفیصلی احترام وشی . دغه دریـــغ یوداسی دریغ ندی چی افغانستان ته نـــوی وی اویایی په دغه ټولنه کښی تازه ترلاس لاندی نیولی وی .

د۱۹٤۷ کال دسپتمبر دمیاشتی په دیرشمه نیټه دملگروملتو درسمی ډاکومان لهمخی پـــه ملگروملتو کښی دپاکستان دشمولیت په وخت کښی افغانستان عین دریغ غوره کړی اوعین نظریی څرگند کړ .

دپاکستان نماینده دافغانستان اوپاکستان ترمنځ دسرحدکرښو اچولو ته اشاره وکړه اوددیورند دتش په نامه کرښی دکښلو پـــه وخت کښی اصلا پاکستان وجودنه درلود او هغه سرحد دیواستعماری لوی قدرت دنظامی قواؤ په واسطه په افغانستان باندی تحمیل شواوهغه تړون چی اشاره یی ورته وکــړه په افغانستان باندی په زوره تحمیل کړی شو په داسی حال کښی چی دافغانستان ملـــت دهغه په مقابله کښی پهکلکه سره خپل نـــه رضایت څرگند کړ .

دنوموړو څمکو له نیولو څخه وروسته دهغی سیمی اوسیدونکو داستعماری اشغال گرانـــو سره په سوله کښی ژوند ونکړ او ترننورځی پوری دپاکستان په ضد خپلو مجادلوته دوام ورکوی .

دپاکستان نماینده ادعاء وکړه چی دیـــو خپلواك اوحاکمیت لرونکی دولت په حیـــث دپاکستان درامنځ تهکیدو په وخت کښی یو ریفرندم هم وشو اوپه سلوکښی له نهه‌نوی څخه زیاتی رایی دپاکستان پهطرفداریورکړی شوی، ټول سوابق‌اوسندونه‌ښیی چی پهسلو کښی له پنځو سو څخه لږ دبریتانیا ترلاس لاندی سیمی اوسیدونکوپه دغوو رایواخستلو کښی برخه واخستله او دآزادو قبایلو پـــه هغو سیمو کښی چی دبریتانیا ترادارئ لاندی نهوی هیڅ چاپه رأیو اخستلو کښی برخـــه وانه خستله ..

دبریتانیا ترلاس لاندی دسیمی مشران او خلك رسماً پهدغه دلیل ددغه تش په نامـــه ریفرنلم سره پریکړه وکړه چی هغوی تـــه ددینی ملاحظاتوپه اتکا سره یوازی دوهانتخابه ورکړی شوی ؤ یعنی دپاکستان اویا هنـــد سره یوځای کیدل اونوری لاری په تیره بیا ددوی په مخ دیومستقل دولت جوړیدل بندؤ.

په پښتنو اوبلوڅو باندی دپاکستان دزور اوزیاتی اوفشار پالیسی دننی ورځی دهغـــو مسایلوڅخه دی چه ټول پری خبردی .

دپاکستان دحکومت ددغی پالیسی دارنگـــه توجیه (دخوپیړیو وروسته پاتی قبایلو نجات دبی خبری اودفیوډالیزم دجغ نه) چه دپاکستان دنماینده له خوا څرگنده شوه په تکراریتوگه دپخوانی استعمار استدلال بلل کیږی چـــی ددغی غونډی زیاتره حاضر نمایندگان له هغه څخه په بشپړتوگه خبردی .

دپاکستان نماینده وویل : دده دحکومـــت منظور دانه دی چی دخپلو خلکو په ضددقوی په استعمال سره خپل هدفونه تعقیب کړی ی په دی باندی ویریږم چی دغه ویناهغه خاطره

چې په بنګله دیش کښې رامنځ ته شوه ، زموږ په ذهن کښې ژوندي نکړي .

ښاغلی رئیس ! پخواتردې چې خپلې وینا ته خاتمه ورکړم غواړم چې دپاکستان دحکومت دنماینده دغه ادعا چې دپوریغاړي له سرحد څخه ګیریلایان اووسلې استول کیږي رده‌کړم دغه توربیخی بې اساسه دی .

**دتلې ۲۹ :**

درویتر نماینده له راولپنډی نه خبرورکړی دی چه دپاکستان حکومت وړمه ورځ وویل : په‌بلوچستان کښې په تیرو اتلسو میا شتو کښې دآزادی غوښتوونکو بلوڅو اودپاکستان دعسکرو ترمینځ دنښتوپه موده کښې څه دپاسه شپږسوه تنه عسکر، پولیس اوقبایلي افرادمړه یاژوبل شویدي .

په‌هغه سپین‌کتاب‌کښې چه‌په‌دی مناسبت په راولپنډی کښې خپور شوی ویل شویدي چه په‌دی موده‌کښې دوه سوه یو څلویښت تنه سرتیري مړه اودوه شپیته تنه نوریې ژوبل شوی اوپه مقابل کښې دحکومتي پوځونو یو سلودوه څلویښت تنه په‌دی نښتو کښې مړه او۱۸۸ تنه نوریې ژوبل شویدي .

پاکستاني عسکرو په دغو اتلسو میاشتو کښې دآزادي غوښتونکو دخپلو دپاره اته څلویښت نظامي عملیات کړیدي اود هغوی پنځه زره پنځه سوه اویوتن یې نیولي دي .

درویتر نماینده تبصره کړي ده چه په‌دغه کتاب کښې دشمیر په خپرولو سره دلومړي ځل دپاره په بلوچستان‌کښې وژنې په رسمي ډول یادې شویدي .

دپاکستان حکومت تراوسه پورې هڅه‌کړې وه چه دپاکستان د نظامي پوځونوپه خلاف دسرتیرو نظامي عملیات او همدا رنګه ناڅاپي بریدونه پټ وساتي خوهغه زیاتي خپرونې چه په بلوچستان کښې دپاکستان دنظامي پوځونو دعملیاتو په باب دنړۍ په مطبوعاتو کښې شوي اوهغه خبري چه‌په دې باره‌کښې په بین المللي مجلسونـــو کښې وشـوې د پاکستان حکومت یې مجبورکړچه په دې باب ځینې معلومات خپاره کړي . داسې بریښي هغه څه چه‌په دې کتاب کښې خپاره شـوي پیچلي اومبهم دي‌اودهغه څه سره ستمون نلري چه‌په رښتیاپیښ شویدي . اوحقایق په پوره ډول نه څرګندوي . که څه هـم پا کستاني مقاماتو پخواویلي ؤ چه دپاکستان دحکومت په ضد دخلکو مقاومت پای ته رسول شویدي خوپدغه سپین کتاب کښې اعتراف شویـدي چه تراوسه لاپه بلوچستان کښې دپاکستان پنځه دیرش زره وسله والي قواوې دآزادي غوښتونکوپه مقابل کښې په نظامي عملیاتو اخته دي .

**دلړم ٦ :**

دخوشحالخان‌دلیسې دښوونکو اوزده‌کوونکو له خوا دهغې لیسې په ډګر کښې (دپښتنو بلوڅودملي مبارزي) ډرام وښودل شو. ددغه ډرام دکتنې دپاره دخوشحالخان اورحمن بابا دلیسو په شاګردانو سربیره دکابل ښاریانو مامورینو ، میرمنو اوپه‌کابل‌کښې پښتونستاني اوسیدونکواونوروډیرعلاقه‌مندانوګډون‌کړی وو.

**دلړم ٦ :**

لکه چه دبین المللي خبررسولو آژانسونو خبرورکړی دی چه دشوروي اتحاد صدراعـظم

ښاغلی الکسی کاسیګین په هغه میلمستیا کښی چی پهٔ ورروستیو وختو کښی پهٔمسکو کښی دپاکستان صدراعظم ښاغلی بوټو تــه کړی وه دافغانستان او پــاکستان داوسنیو روابطو پهٔباب یی ویلیٔدی چه دشوروی اتحاد حکومت هیله لری هغه اختلاف چه دافغانستان اوپاکستان ترمنځ درواىطو فضایی خړه پړه کړی ده دپاکستان اوشوروی اتحاد دوست ګاونډی یعنی افغانستان ترمنځ په سولهٔایزو وسایلوډیرژرحل شی .

دباندنیو چارو دوزارت نطاق د ښاغلــی کاسیګین دوینا ددغی برخی دتائید په تــرڅ کښی وویل چه دغه هیــله دافغــانستان او پاکستان ترمنځ دسیاسی اختلاف دحل دپاره دافغانستان دسوله غوښتونکی مثبت اودروغی جوړی له سیاست سره پوره سرخوری .

همدارنګه نطاق په دغه میلمستیا کښــی دښاغلی بوټوددغیٔویناهرکلی وکړچه پاکستان هیله لری دافغانستان سره خپل روابط ښــه کړی اوزیاته یی کړه لکه چه ځوځڅله مــو تکرار کړی ده د افغا نستان او پاکستـــان ترمینځه دسیاسی اختلا ف په بــاره کښــی دافغانستان دایمی اونه بدلیدونکی سیاست دهغو دروغی اوجوړی دلاری حل دپښوا نیــو بی قیداوشرطه خبروله لاری دی .

نطاق زیاته کړه ترکومه ځایه چــه پــه افغانستان پوری اړه لری پښوایی همیشه ددغه سیاست پیروی کړی ده اوپه راتلونکی وخت کښی به هم پدغه لاره کښی خپلی هلی ځلی روانی وساتی .

دافغانستان حکومت ددی غوښتونکی دی چه زمونږ سیمه دسولی آرامی اودایمی کــراری سیمه وی .

**دلوړم ۸ :**

له اسلام آبادنه درویټر نماینده خبرراکړی دی چه دپاکستان حکومت دهغو اختیارونو د مخی چه پهٔدی وروستیو وختونو کښی یـــی ترلاسه کړی دی کولی شی هرګوند ددولــت په ضد فعالیت په تورغیر قانونی اعلان کړی. دسیاسی ګوندونو دقانون دتعدیل اوحکومت ته ددغه واك دورکولو په بارهٔکښی دجمهوری ریاست فرمان دپاکستان په مطبوعاتو کښی خپور شوی دی . دغه تعدیل له مخیٔدپاکستان حکومت واك لری چه هراوسنی ګوند دحکومت پهٔضد دفعالیت په تورمنع اوټول شته یــی ضبط کړی .

دغه راز دپاکستان حکومت اجازه لری په دغه اساس دهرډول ګوندونو دتشکیل ســره له موافقی نه ډډه وکړی .

دجمهوری ریاست په فرمان کښی حکومت دغه پخوانیٔاختیارونه دحکومت په ضددفعالیت په توردخلکو دسیاسی فعالیتونو دمنع کولو اوبانیولوپه بارهٔکښی تائید شوی دی .

درویټر نماینده تبصره کړی ده چه دنویو اختیارونو له مخی دخان عبدالولیخان پهٔمشری ملی عوامیٔګوندچه دپاکستان دحکومت بانفوذه مخالف ګوند دی دنورو ګوندونونه زیات دخطر سره مخامخ دی .

دپښتون زلمی په نامه ددغه ګونددځوانانو موسسه دحکومت دپخوانیو اختیارونو له مخی منعٔکړی شوی اودملی عوامی ګوند دری تنه ستربلوچی شخصیتونه دڅوار لسو میاشتونه

راهیسی بې له محاکمې بندیان دي اوپه دې وروستیو وختونو کښې دملي عوامي ګوند یو شمیر مامورین دیولږهغو چاودنو سره دارتباط په تورنیول شوي اوبندیان شوي دي چه‌په پښتونستان اوبلوچستان کښې شوي دي .

سیاسي کتوونکي وایي چه د پاکستان دحکومت دغه اقدام په څرګندډول دهغه هیواد داساسي قانون دروحیې سره مخالف اویوپوره غیردیموکراتیک اوجابرانه حرکت دی اوحقیقي مقصدیې دګوندونو اودپاکستان د حکومت دمخالفو قوتونو له منځه وړل اودپاکستان د موجوده نظام زیات ټینګښت دی .

**دلړم ۸ :**

دپاکستان دملي اسامبلۍ غړی او دمتحدې دیموکراتیک جبهې سکر تر جنرال ښاغلی غفوراحمد په یوه ویناکښې غوښتنه کړې ده چه دحکومت له خواپه څېره شوي سپینه‌پاڼه باندې دبحث‌کولو دپاره دې دملي اسامبلۍ اوسنایوه ګډه غونډه راوبلل شي اوپه دغه غونډه کښې دې دمخالف ګوندډغړوووینا دراډیو اوټلویزیون په ذریعه خپره اوورځپاڼې دې له دغوویناووڅخه په بیطرفه توګه رپوټونه ترتیب کړي .

غفوراحمد ویلي دي چې که دده دغه‌غوښتنه ترسره شي نوولس ته به‌په ډاګه څرګنده شي چه دبلوچستان په مسئله‌کښې حکومت څومره پړدی .

پروفیسر غفوراحمد زیاته کړې ده چه دجمهوري اصولو له مخې یکاردي چه‌دحکومت له نظره سره یوځای دمخالف ګوند نظرهم ولس ته وړاندې شي .

**دلړم ۹ :**

دپښتونستان دسوات له مرکز سیدوشریف نه‌په رارسیدلي خبرکښې ویل شوي دي چه په هغه سیمه کښې دپاکستان دحکومت په خلاف دآزادي غوښتونکو فعالیت روان دی چه پکښې دبمونو چاودنې هم شاملې دي .

په خپرونو کښې ویل شویدي چه په‌څینو ځایونو کښې دبم په چاودنو یوشمیر وداني زیانمن شویدي .

دمردان نه په رارسیدلو خبرونو کښې‌ویل شویدي چه دملي عوامي ګوند مشر خان عبدالولیخان دمیرویس نیکه دکالیزې دمراسمو دنمانځنې په غرض دملي عوامي ګوندله خواپه ترتیب شوي غونډه کښې په خپله وینا کښې وویل : چه دپاکستان دحکومت مامورین دهغه حکومت دخوشحالولو دپاره دملي عوامي ګوند په ډلوباندې ظلم کوي .

خان عبدالولیخان زیاته کړه چه ۲۷ کاله وشو چه زموږ دولس سره زورزیاتي کیږي اوپدې وختوکښې خبره دیته رسیدلې ده چه دولس دصبر حدتمام شوی دی هغه وویل : دپاکستان له حکومت نه‌ولس کرکه کوي اوکه پاکستان دغه خبره نه مني دپولیس او امنیتي قواؤ دمرستې نه پرته دې په مردان کښې یوه جلسه وکړي چه جال ورته معلوم شي ولې خان دپاکستان حکومت په دې خبره وغنده چه دجمهوریت په ضد دخپل اقتدار ددوام دپاره هرناوړه عمل کوي .

خان عبدالولیخان زیاته کړه چه‌دپښتونستان موجوده ایالتي حکومت غیرقانوني دی او د

پاکستان حکومت په زور په پښتونستان حکومت کول غواړی .

دملی عوامی گوندمشر زیاته کړه چه دمیانی اوخپل ملیت سره دپیښتنو دمینی دغه لوی ثبوت دی چی دپاکستان واکمن گوند دملی عوامی اوجمعیت العلماء اسلام گوندونو یو غړی هم په پیسو پرمتونو په واکمن گوند کښی شامل نکړای شو. دپاکستان د حکومت دناوړه چارو په باب ولی خان وویل چی پښتون قوم په پیسونه خرڅیږی خوکه څوك زموږ سره دجمهوریت په ځای دشمنی کول غواړی. نوموږددغه دښمنی مقابله کولای شو. هغه وویل چه که چیری دپاکستان حکو مت په بلوچستان اوپښتونستان کښی زموږاکثریت نه منی نوموږهم په سند اوپنجاب کښی دهغه اکثریت نه منو .

پدغه غونډه کښی دپښتونستان سترمشر جناب عبدالغفار خان هم وینا وکړه اوپښتنو ته یی دزیات اتحاد اویووالی اوخپل ملی هدفو ته درسیدوپه لاره کښی دمجاهدی توصیه وکړه.

**دلړم ۱۰ :**

دامریکا دباندنیو چارو وزیر ډاکتر هنری کسینجر دافغانستان دحکومت په بلنه د۱۳۵۳ کال دلړم په لسمه نیټه ادفغانستان جمهوریت ته رسمی سفروکړ اودهغه دسفرپه آخرکښی ددواړوخواوو له خواگډه ابلاغیه خپره شوه . چه په دغه گډه ابلاغیه کښی داهم ویل شویدی: «دواړوخواؤ موافقه وکړه چه ددولتونو ترمنځ داوسنیو ستونزواواختلافونو دپاره ددایمی او دوامداری روغی جوړی دحل دلاری دپیداکولو له پاره دټولواړخونو ترمنځ مثبتی اوگټوری خبری دی .»

**دلړم ۱٦ :**

دباندنیو چارو دوزارت نطاق په بهاول نگرکی دپاکستان دصدراعظم ذوالفقار علی بوټو د وروستی وینا په باب چه په هغی کښی یی ادعا کړی وه، یوزیات شمیر ورانکارو چه په ټول پاکستان کښی دبم داچولو په تورنیول شوی اعتراف کړیدی چه په افغانستان کښی دچاودیدونکو موادو داستعمال د پاره روزل شویدی دباختر آژانس دیوی پوښتنی په ځواب کښی وویل : دغه شان بی اساسه تورونه چه دپاکستان دلانجو په حل کښی ددغه هیواد دحکومت دکمزوری ښکارندوی دی پخواهم څو څله دپاکستانی مقاماتوله خوادافغانستان په خلاف لگول شوی اوافغانستان هغه ردکړی او یوځل بیا هغه له حقیقت څخه لری بولی اوپه کلکه یی ردوی .

**دلړم ۱۸ :**

دبهرنیو چارو دوزارت داطلاعاتو مدیریت خبرورکړچه دافغانستان په فضایی قلمرو باندی دپاکستان دنظامی هیلیکوپتر د تیری له امله دپاکستان دحکومت درسمی معذرت او ددغه هیلیکوپتر دعملی دخوشی کولو نه وروسته پرون دپاکستان نظامی هیلی کوپتر د هغه هیواد حکومتی مقامونو ته وسپارل شو .

**دلړم ۲۱ :**

دباندنیو چارو دوزارت نطاق وویل : چه دځوورځونه راپدی خوا یوشمیر بلوڅو دخپلو ښځواوماشومانو سره دپاکستان د حکو مت

دظلمونو دشرڅخه دافغانستان خاوری ته پناه راوړی ده .

نطاق وویل : چه دسږکال دوړی دمیاشتی په١٦ نیټه ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم دبلوڅو دآزادی غوښتونکو په مقابل کښی د پاکستان دنظامی عملیاتو دناوړه عواقبو نـه داندیښنی په څرګندولو سره داسلامی هیوادو مشرانو اودملګروملتو دموسسی سر منشـی داسلامی جرګی عمومی منشی ته په یو پیغام کښی دبلوڅو بی‌ګناهو خلکو خواشینوو تکو حالاتو ته چه دپاکستان نظامی قواوور باندی بیرحمانه یرغل کړی اوددوی په‌کورونـو او کروندو باندی پرله پسی بمبارکیدلـی د دوی پاملرنه‌اړولی اوویلی‌یی ووچه‌دغه‌کاردانديښني وړحالت پیداکړیدی اوپدی سیمه کښی یـی سولی اوامنیت ته خطرونه پیداکړیدی .

نطاق وویل : دپاکستان دصدراعظم‌ذوالفقار علی بوټو داکتوبر د١٥نیټی داولتیماتوم نیټی دتیریدووروسته اودوونوروميااشتو دپاره دهغی داوږدولو داعلان ادسپین جعلی کتاب پـــه خپرولو سره دپاکستان دنظامی قواووپه تیره بیادهغه هیواددهوایی پوځونو عملیات زمونږ په بلوڅو ورونو دیرزیات شویدی اودعملیاتو ددغوزیاتولوله امله دلړم دیولسمی نیټی نـه تر١٩نیټی پوری دوه سوه ډیرشوتنومهاجرو دافغانستان خاوری ته پناه راوړیده .

نطاق زیاته کړه چه دافغانستان حکو مت دغو مهاجرینوته چه زیات شمیر ماشومان او ښځی هم پکښی دی مخصوص‌کمپ جوړکړیدی اومربوطومقامونو ته یی امرورکړیدی چه‌ددوی دخوراک، څښاک اودسرونو دساتنی په غرض سمدستی اوګټوراقدامات وکړی .

**دلړم ٢٥ :**

دباندنیو چارو دوزارت نطاق دپنجشنبـــی په ورځ وویل چه دافغانستان خاوری تـــه د بلوڅوپناه وړونکو جریان دوام لری .

لکه چه دلړم له شلمی نه تردرویشتمی‌پوری دښځواوماشومانو په‌ګډون یوسلوڅوارلس تنو نوروډپاکستان دحکومت دظلم اوزیاتی اوددغه هیواددپوځی قواو دبیرحمانه حملوله لاسه د افغانستان خاوری ته پناه راوړ یده .

پدی ترتیب دهغو پناه وړونکو شمیرچه د پنجشنبی ترور ځی پوری افغانستا ن تـــه راسیدلی دری سوه څلور څلو یښتو تنوتـه رسیږی.

نطاق زیاته کړه چه دافغانستان دحکومت مربوطو مقاماتو او دافغانی سره میاشتی‌موسسی دبلوڅوپناه وړونکو دلار ښوو نی خوراک ـ څښناک استو ګنی اوساتنی دپاره ګټوراومنسجم پروګرامونه تر لاس‌لاندی نیو لی دی .

**دلړم ٢٧ :**

بلوڅو پناه راوړ ونکو افغانستان ته‌دخپلو دپناه راوړلو دعلتونو دڅرګندو لو په‌طرز کی داسی‌وویل :

(کله چه دپاکستا ن الو تکو په‌پرله پسی بمباریوپه بی دفاع خلکوښځو ماشو مانو او سپین ږیرو باند ی دژوندانه ډګر تنګ‌کړاو زمونږ په کورونو یی اوربل کړله دی پرته‌بله چاره پاتی نشوه‌چه خپل‌وطن پریږ دواوخاند افغانی ورونو دمهربانی په لمن‌کښی واچوو.) همداوچه سره ددی چه پنجا بی‌سپا هیانـو

**کلکه خارنه کـــوله اوپه ښځو اوماشومـــانو باندې یې له‌ګولیو اوبرچو سره بریدکاوه یو یو** تن‌یادوه دوه تنه یاپه زیا ته اندازه‌دری دری تنه دشپې له‌پلوه‌له خپلو کورونو را وو تل دغرونواوبیا بان له لاری اوپه هغو سختولارو **چه تنګ راتګ پری سخت دی راروان شوو.**

پداسې حال کښې چه داتیا کلن سپین ږیری په‌سترګو کښې او ښکې پیداشو ی‌وی‌خپل سریې‌راپور ته کړوی ویل :(په هغه ډیربد حالت‌سره‌چه تصور یې کید ی نه‌شي په بیلو بیلو بلوڅوقبایلو په تیره بیا د مری په‌قبیلې باندې‌له‌څه مودی را هیسې‌دپاکستانوسپاهیانو بمباری اوډزی کیږی.) ښاغلی مهربان خان مری‌چه ستونی یې‌ډک ډک کیده‌هغوړوماشومانو ښځو اوسپین ږیرو ته‌چه شمیر یې‌دری سوو خلورخلو یښتو تنو ته رسیده‌ګو ته ونیو له **وی‌ویل: (دورځی له‌پلوه پټیدو اودشپې مولار** وهله‌اوپدی توګه زیاتره پښتی‌لو خی په‌هیڅ **ډول وسایل اوجامې یی نه‌وی‌څه دپاسه دوی** میاشتی‌مودشپې‌له‌پلوه لارو هلی ده)۰

(هغې سپین سری ښځې‌چه‌عمر یې‌له اویاو کالونه زیات بریښیده خپلی لو خی پښې‌چه‌د لاری اغزیو اوډبروزښتی زیاتی ژوبلی‌کړی وی‌وښود لی اووی ویل میړه اوخلور زا من می‌ـشرودرمندوډلیرا و بختیار د پاکستانی الوتکو په بمبارد یو کښې مړه شو ل زمونږ دکورکالی‌یی‌وسوزو ل اودافغانستان لورته‌له راتګ‌نه‌پر ته هغه هم دشپې له‌پلوه له‌کوچنیو ماشومانو اونجونوسر ه بله چار ه را پاتـــې نشوه۰)

سلیمان‌هغه هلك چه له لسو کالو زیات عمرنلری په‌درد منده لهجه‌یی وو یل :(ماته هیڅ‌شی او هیڅوك ندی پاتی شوی ته ل‌یی ووژل اوماد کورنی یوازنی غړی دخپلووطنوالو **په‌پناه اوملاتړکښې دغرونو اودښتو** لاره غوره کړه۰)

یوی‌بلی سپین سر ی ښځې چه ځان‌یی‌د یاربازاوخیر موربلله وویل ( دواړه زامن‌می په‌بمباری کښې ووژل شو ل اومونږ ونــــه غوښتل چه ددښمن منګو لو ته ورشو)۰

پدی مینځ کښې یوه‌ځوان غږوکړ (پوهیږی **داولی په ټولوبې دفاعو باندی بمباری‌کوی او هم دبلوچستان په علاقه باندی ګولی وروی)** پر ته‌ددی چه‌ځما دځواب انتظار وباسی وی ویل:(ددی دپاره چه پیپلز پارټی ته مورایی ندی‌ورکړی سرواوځوانانو وروسته له هغه‌چه په‌خپله‌په خلکومربو ط محلی حکو مت‌له‌مینځه یوووړل سخت عکس العمل وښو د او ددی دپاره چه دخلکو دحق غوښتنی غږ یی غلی **کړی‌وی دپاکستان حکومت دمشرانواو ځوانانو** په‌نیولو لاس پور ی کړ اوپدی هم قانع نشو **په‌هوایی بم غورځو ونکو توپونو توپکوسره** یی‌په‌بلو چستان‌باند ی یرغل وکړ۰)

دوی‌لو مړی دبهلو ل علاقه بمباری کړه وروسته له هغه‌یی پر له پسې اوه ور ځـی په‌کچل تل بمباری وکړه دیار لس تنه یی بندیان کړل‌اوڅه دپاسه څلور سوه تنه یی ووژل۰

دوی دخلکو په مال اوسر صر فه ونکړه‌او ددغی‌سیمی دخلکوڅه ناڅه دڅلوریا پنځــــه

ملیونو روپیو مال یی تالان او لوټ کړ.

وروسته دبم اچولو لمن دپور کوریه گنجی‌اوسپین تنگی سیمو ته پراخه شوه‌اوځه دپاسه دری سوه تنه یی ووژل او خورا کی موادیی ...) ښاغلی مهربان‌خان دزلمی له‌خولی خبره‌ونیو له اووی ویل :(هغوی ځا رو ی خوراکی مواد او خلك بمبار ی‌کړل‌چه دلوږی ومری.)

ده وویل: (پاکستان بندیخانی ټولی په پښتنو اوبلوڅوډکی شوی او څرنگه چه‌په‌بندی خانوکښی ځای‌ندی پاتی شو ی دلویو کلاگانو نه‌یی‌بندیخانی جوړی کړیدی).

ده داهم وویل دکوټی لوره یی مچ سبی‌کولو، په‌سیمو کښی چه پخپله دهغه ځای‌دی اوهرناوی کښی هر څومره ځوانان‌اود کارخلك چه دپو ځیانو لاس ته‌ورځی‌بندیانوی یی.

‌دغو بی کوره خلکوسر نو شت یو ځل بیا د تاریخ خونړی پښی ستر گو ته دروی.

داکیسه نه‌وه داستا ن او فانتیزی هم نده‌د فلسطین دبی‌کوره خلکوددوهم جنگ د پیښو کیسه نه‌کوم‌بلکه یو دردونکی ننني تر اژیدی واقعیت دپښتو نستان اوبلو چستان په‌علاقو کښی دملی عوامی حکو متونو له مینځه تلونه وروسته خو نړی پیښی وشوی او د پاکستان حکو مت‌چه دبلو څو او پښتنودخلکو دقهرپه مقابل کښی سلیم منطق نه درلود له‌زورنه‌یی کار واخیست اودسرتیرو اوقومی مبارزینوله بندی کولو وروسته یی دبلوچستان دسیمو په‌بمبا ری لاس پوری کړ. خود انسانیت‌نه‌په‌دغو خلافو عملونو سر ه‌نه‌یواځی په‌سیمه کښی دحق غوښتنی اورمړ نه‌شو بلکه دغه‌اورنور هم زیات شو. او دظلم‌اوحقه‌حقوقو دغصبولو په‌ضدیی قوم نور هم راوپاروم‌هربان خان‌وویل (دافغانستان دحکو مت او زمونږد افغانی ورونو دتودهرکلی اوخلاصه غیږزمونږد ټپونودپاره ملهم شوه‌او اوس دهغو نوروله فکرخخه چه په‌ځای کښی پاتی شوید ی او په بلوچستان او پښتونستان کښی زمونږ د ځوانانو د مبا رزو دنتیجو نه‌پر ته کومه بله اندیښنه‌مونږ نه‌لرو).

یوی بلی ښځی چه ځلور زا من یی‌له‌لاسه ورکړی او دهغوی کوچنی ما شوما ن اوښځی ورپاتی شویدی‌وویل :

په هیڅ ملت کښی په‌انسان باندی داسی ظلم‌ندی شوی خوزمونږ زامن تر هغه‌و خته پوری چه خپل ملی هدف تر لاسه نه‌کړی‌له مبارزی‌نه‌لاس‌نه اخلی .)

دلړم ۲۷:

دپښتو نستان د آزادی غو ښتنی د لاری یوه مجاهده خدایی خدمتگار حباب خان دهغی ناروغی له‌امله چه ورپیښه شوی وه د۸۵کلنی په‌عمرپرون په‌نادر شاه رو غتو ن کښی وفات شو.

دمرحوم‌حباب خان دفاتحی په مجلس کښی دسرحداتو د وزارت او دهغه مرحوم دکورنی له‌خوا‌دشاه دوشمشیره علیه‌الرحمه په‌جومات کښی واخیستل شوه دعظمی دصدار ت -

مرستیال ډاکتر محمد حسن شر ق د مر کزی کمیټې څېنوغړو، دکابینې څېنوغړو، لوی درستیز ډګرجنرال عبدالکریم مستغني یو شمیر جنرالانو عسکري او ملکي مامورینو اونورو ډیرو خلکو ګډون کړی وو. او د مر حو م روح ته دمغفرت دعاوشوه. مر حو م حباب خان دپاکستان د ـ ظلمو نوله کبله په ۱۳۲۸ کال کښې افغانستان ته هجرت کړی وو.

**دلړم ۲۸:**

**دافغانستان ملي مشر او ددولــت رئیس په** خپله مر که کښې دتایمز افانډیاد نما ینده **بناغلي دلیپ موکــرجي سره دپښتونستان د** قضیې په ارتباط دهغه دسوالو په ځواب کښې داسې وفر مایل :

**پوښتنه :**

په تیر او ړی کښــــې دا ویر ه وه چه افغانستان **یوی جګړی ته راکښل شي اوس حالات څنګه سنجولی شيء په تیره بیا دملي** دفاع دتقویې اوله راتلونکو **بحرانونو سره د** مقابلې دپاره څه ګامو نه ا خستــــــــل شویدي.

ځواب: البته **پاکستان** سره زمونږ رو ابط پوره روښانه **دی پاکستان تل په تیره بیا په** افغانستان کښې **دجمهور ی نظام له جوړیدو** وروسته هڅه کړی ده **چه په افغا نستان کښې ناکراري پیداکړی اودهغوی پروپاګنډدوام لری د پاکستان دپروپاګنډمقصددوه شیان دی یویې داچه غواړی دافغانستان پــه نسبت د نــړۍ** ذهنیت ګډوډ کړی او دبلې خواپه دغه ډ ول غواړی پخپل هیواد کښې دننه نا کراری اوبد **بختي د سترګـونــــه پټې کـړی . امکـــــان شته څه وخت مخکښې** به تاسې اوریدلی وی چه پاکستانی منابعو وویل : **افغانستان په پولو** کښې نظامی سو قیات وکړل په عین حال کښې **پاکستانی** منابع پرو پاګنډکوی **چه افغانستان** **پخپله** خاوره کښې سر تیری روز لی ، **روزی اوپاکستان ته یې لیږی پداسې حال کښې چه داتورونه بیخي دروغ دی اوبیاوایې چه څه دپاسه** سلونو او زرونو **د** ظلم **تیری اوبی عدا لتی** له لاسه **پاکستان** ته پناه راو ړی ده .

پداسې حال کښې **چه** دوی هغه **کو چیان دی** **چه په پیړیو پیړیو په تاکلي موسم کښې لدغه ځایه** هلته ځي دپاکستانی منابعو له **خواهمد غه رازضد** ونقیض ویناګانی شوی او کیږی **چه البته دغه** ډول تبلیغات ور ځ په ور ځ کې کیــــــــږ زیاتوی.

دافغانستان **په شان یو ملت چه دخپلــــو** وروسته پاتې کیدلو په لری کو لو بخت دی اوهڅه کوی چه خپل اقتصا **دی مشکلات لری** **کړی** او تل سو له دوست **دی هیڅکله د جنګـ** هیله نه لری البته دا خبر ی یواځې **پاکستان** جوړی کړیدی .

**زمونږ هیله تل داده چه دنړۍ دټولوخلکو** سره په روغه جوړه ژوند **وکړو**. **البته دخاوری** ددفاع وظیفه دهر ملت **ملي وظیفه ده تر کومه** ځایه پوری چه په **افغانستان پوری اړه پیدا** کوی دخپلې دفاع دپاره باید **هغه تیاری ولری** **چه په واک یې دی اوداټولو دپاره یــو مــلي** مکلفیت دی خو زمونږ هیله داده **چه یوه ور ځ** **نړۍ هغه ځای ته ورسیږی چــه اصلا دمسلـح**

کولواودجنګ دپاره هیڅ ضرورت پاتې نشي.

**پوښتنه:**

څه وخت مخکښې دافغانستان یو نظامي هیأت دیوه جنرال مستغني په مشرۍ مسکوته لاړاوپدې وروستیو وختونوکښې نوی ډیلي ته هم یو هیات لاړ ایادامو ضوع دافغانستان ددفاع دقابلیت په پیاوړي کیدوپوری ارتباط لري.

ځواب: زمونږ ملي وظیفه ده چه د خپلې دفاع دپاره تیاری ونیسو. ددې موضوع د جزییاتو به باب دځواب له ورکولو نه بښنه غواړم.

**پوښتنه :**

پدې وروستیو وختونو کښې دایران پاچا دبلوچستان په باب ځینې خبرې کړي دي اوواقعه یې هلته دپاکستان کورنۍ موضوع بللې ده اوهم یې دافغانستان سره دپاکستان داختلافونو حل و فصل ته دمساعدت د - پاره دخپل تیاری خبری کړیدي پدغه باب ستاسو جناب نظریه غواړم.

ځواب: دبلوچستان دموضوع په باب بایدووایو چه بلوچستان دجغرافیا یي موقعیت له نظره له افغانستان سره ګاونډی دی. اوهغه خلك دافغانستان له خلکو سره ډیر نژدې تاریخي اوکلتوري علایق لري نو هره ناآرامي زوریدل اوبدبختي چه پدغه ځای کښې دهغه خلکو ته پیدا کیږي هرو مرو په افغانانو باندې اغیزه کوي او ممکنه نده چه په افغانستان کښې دهغه تاثرات انعکاس ونکړي.

افغانستان تل یواصل تائید کړی او هغه زمونږ د پښتنو اوبلوڅوورونو ملي آرزو ګانو ملاتړ دی دا په خپله په هغو خلکو پوری اړه لري چه دځان او خپلې ایندې په باره کښې څه فیصله کوي او څه مني.

دافغانستان او پاکستان داختلافونو دلرې کولو دپاره دایران دپاچا دکوښښ په برخه کښې باید ووایو چه دایران پاچا ځما دصدارت په وخت کښې هم کوښښ وکړ چه ددواړو - هیوادو مناسبات ښه شي.

ښایي دوی اوس هم دغه شان فکر ولري خو پدغه برخه کښې نه دهغوی له خوا هیڅ ډول پیشنهاد وړاندې شوېدی اونه زمونږ له خوا دغه شان پیشنهاد شویدی.

**پوښتنه :**

دوی ورځې پخوا ما کندهار ولید او ځینې هغه بلوڅان می ولیدل چه له بلوچستان څخه یې افغانستان ته پناه راوړیده دهغوی شمیر څه ناڅه دری سوه تنه دی دبوټو دهدایت په اثر چه خپل پوځونه یې له مری څخه مینګل ته سوق کړیدي امکان شته دبلوڅو پناه راوړونکو شمیر زیات شي اوس لکه څنګه چه لیدل کیږي افغاني مقامات له پناه - راووړونکو سره مرسته کوي که چیرې دهغو شمیر زیات شي ایا دملګرو ملتو دپناه وړونکو له اداري څخه به مرسته وغواړي.

ځواب :هوالبته کله چې دبلوڅو پناه وړونکوشمیر زیات شي هغه وخت به مجبورو اوسو دغه موضوع دغې اداري ته وړاندې کړو خو تراوسه پورې مودغه اداره پدغې موضوع

باندې نده‌خبره کړي.

**دلیندی ۲:**

دپښتو نستان دپیښورڅخه رارسید لی ــ خبرواییچه دتحر یك استقلا ل مشرښا غلی اصغر خان په پښتو نستا ن او بلو چستان کښی دپاکستان دحکو مت د اعمالو دغند نی په ترڅ کښی په‌لیا قت باغ کښی دپښتنواو بلوڅو په‌غو نډه‌باندې دپاکستا ن د نظامی قواوو په ډزو هغه حکومت ته سخت بد وویل‌اوزیاته یی کړه‌دپاکستان حکو مت دې چی د خپلـــو مظالموله لاسه‌یی په سوو نو بلو څاوپښتانه افغانستان ته‌په هجر ت مجبور کـــــړی دي.

اصغر خان وویل ــ دپاکستا ن د حکومت دغه ظالمانه اقدام بەډیری ناوړی‌نتیجی‌ورکړی اودبدعواقبو مسو ل به‌یی‌په‌خپله دغه حکومت وی هغه اخطار ورکړ چه پښتون او بلوڅ ولس اوهمد غه شا ن دپاکستا ن و لسونه‌بەد پاکستانی حکو مت سره دد وی داعما لـــو حساب وکړي.

**دلیندی ۲:**

دپښتونستان له پیښور نه په راسید لـــی خبرکښی ویل شویدی چی دجمعیت العلمـــای اسلام گوند مشر دپښتونستان پخو انی‌وزیر اعلی ښاغـــلی مو لانا مفـــتی محـــمود پـــه پښتونستان اوبلو چستا ن کښی د پاکستان دحکومت دمظالمو دغندنی په تر څ کښـــــی وویل هغه حکو مت په دغوسیمو کښی یوځل بیاهغه مظالم تکرار وی چه د بنگله د یش ترجوړیدو پخوایی په‌بنگا ل کښی کـــــړی دي.

ښاغلی مولانا مفتی محمود وویل بلوڅ اوپښتانه دپاکستانی مظالمو نه تنگ شوی‌او دظلم په خلاف یی ټوپك ته لاس کړی‌دی‌خو داحتمالی سختی جگړی مسولیت به یوا ز ی دپاکستان دحکومت پەغاړه وی.

بایدوویل شی‌چه‌دپښتو نستان په مختلفو سیموکی دحکو مت په‌خلاف ولسی مخالفت اود آزادی غوښتنونکو له‌خوا مجادلی روانی دی اوددغه فعالیتونوله وجهی پاکستان ته د یـــر مالی اوځانی تاوانونه رسید لی اورسیږی.

**دلیندی ٦:**

**ددولت رییس اوصدرا عظم ښاغلی‌محمد داود دملکرو ملتو دمو سسی دعمو می منشی دوکتور کور ت والد هایم په عنوا ن دخپـــل پیغام‌په‌تر څ کښی د ۱۳۵۳ کال‌دو ږی‌دمیاشتی په شپاړسمه نیټه دبلو چستان داندیښنی‌وړ حالاتو اوپه هغی سیمه کښی د پاکستا ن‌د حکومت له‌خوا دبیر حمانه ډله‌ایزووژنوسیاست ته‌په‌تیره بیاپه بلوڅو باندی دپراخو اوعمومی بمباریوله کبله دبین المللی‌ټولنوخاصه‌پاملرنه رااړولی وه.**

**دپاکستان‌صدرا عظم ذوالفقار علی بوټـــو دملگروملتو دمو سسی دعمومی منشی‌په‌عنوان په‌ځوابیه‌لیك کښی دحقایقو په‌اړو لو سره‌پر افغانستان باندی یولړ بی اسا سه تو رونه ولگول چه ددولت رئیس اوصدرا عظم د ۱۳۵۳ کال دلیندی دمیاشتی دشپږ می نیټی دخپل پیغام‌په‌تر څ کښی‌هغه ردکړل او دبلو څود خلکو دخرابو حالاتو او دافغانستان‌اوپاکستان**

ترمنځ دسیاسی اختلاف دمربوطو حقایقوپه باب یولړ مطالب شرح کړی دی.

ددولت دښاغلی رییس اوصدراعظم د پیغام متن

کابل : ۱۹۷٤ کال دنومبر ۲۲
د۱۳۵۳ کال دلیندی٦:

جلالتمآبا!

ماسناسو دجلالتما ب په عنوا ن ۱۹۷٤ کال دسپتامبر دمیاشتی د(۷) نیټی دلیك پواسطه د هغی اندیښنی وړحالت ته دملگروملتودموسسی دغړوهیوادو پاملرنه راجلب کړه چی په دغی سیمه کښی سوله او امنیت چی افغانستان هم په هغی پوری تړلی دی سخت په خطرکښی ا چو لی دی.

نوموړی لیك خرنگه چی غوښتنه شوی وه د ۱۹۷٤ کال دسپتا مبر دمیاشتی دپنځه ویشتمی نیټی پـ ۲٤ رسمی سند په تر ځ کښی دملگرو ملتو ددارالانشا له خوا دهغی موسسی غـړو هـیوادونو تهوویشل شو.

افغانستان د ملگرو ملتو دیو غړی هیوادپه توگه خپله وظیفه وگڼله چی تاسو جلالتماب او ستاسو پواسطه دملگرو ملتو غړی هیوادونه اوټولی بین المللی ټولنی سولی اوامنیت ته ددغه تهدید څخه باخبره کاندی •

افغانستان عقیده لری چی ټول غړی هیوادونه مکلف دی چی دملگرو ملتو موسسه له ټولـو حالاتوڅخه خبره کړی اودهغو حوادثودپیښیدلو مخنیوی وکړی چی سوله گواښی.

دافغانستان اندیښنه چی دنو موړی لیـــك پواسطه په اطلاع ورسو له شوه دهغو ناوړو عواقبوپه نسبت ده چی ښا یی دبلو څودآزادی غوښتونکو پر ضد دپاکستان دحکومت دسیاست په نتیجه کښی مینځ ته راشی. دغه اند یښنه د بلوڅو دآزادی غوښتونکو په مقابل کښـــی د پاکستان دحکو مت له خوا دهوایی بمبا ریوپه گډون دقوی د سیستماتیك استعمال څخـــه وروسته چی دسیاسی مشرو عو غوښتنو دله منځه وړلو او دخپلوحقه ارزو گانو پر ضـــد خپل مقاومت ته دوام ور کوی څر گنـــــده شوه.

له هغی څخه وروسته چه پاکستان نظامی قوه استعمال کړه او دزړو ښځو اوماشومانو په گډون په دله ایزه توگه دزرگو نو تنو او خلکو دوژلو دعمل مرتکب شو دبلو څو آز ادی غوښتونکو په غرونوکښی داسی ځایونو ته پناه یوړه چی دهستو گنی وړنه دی چی څو له هغــه ځای څخه دخپلو حقه حقو قو لاس ته راوړلوله پاره مبارزه وکړی.

دپاکستان مخالفو گوندونو او دبلوڅـــــو سیاسی مشرانودبین المللی موسسولکه د ملگرو ملتو دبشرد حقوقو دکمیسیو ن داســلا می جرگی ددارالا نشاء دسره صلیب اوهلال احمرد بین المللی موسسی او دبین المللی عمومی ښځنی دموسسی( امنستی انټر نیشنل) پاملرنه دغه حالت ته راواړوله چه دبین المللی اطلاعاتی او نشراتی وسایلو په واسطه سره له دی چی د پاکستان دحکومت له خوا کلك سانسور لگول شوی ووڼړی وال له هغه څخه خبرشـول.

دغه وخت وو چې دپاکستان صدراعظم دلومړی ځل دپاره دبلوڅو آزادی غوښتونکوله پاره اولتیماتوم صادر کړ اواعلام یی وکړ چې کهچیری هغوی د۱۹۷٤ کال داکتوبر دمیاشتی تر۱۵نیټی پوری تسلیم نهشی ددوی پرضد بهسخت اوپراخه نظامی عملیات شروع شی . پهدی اساس وچې دافغانستان حکومت چې دقوی دزیات استعمال اوتهدید دسیاست له ناوړو عواقبو څخه خبردی مجبورشوچې د ملګروملتو دموسسی دمنشور دبشر د حقوقو دجهانی اعلامیی اودبشر دحقوقو دتړونونوله اصولو څخه دغه ګړګند تیری ته ستاسو دجلالتماب اودملګروملتو دغړو هیوادو پام راواړوو .

دپاکستان حکومت د۱۹۷٤ کال داکتوبر دمیاشتی دلومړی نیټی دلیك په واسطهچې ستاسودجلالتماب په عنوان دپاکستان صدراعظم لهخوا صادر شویو خپلی نظریی ځرګندی کړیدی دافغانستان حکومت یوځل بیا خپله وظیفه بولی چه داوسنی حالت په باب خپل نظروړاندی کړی .

دپاکستان حکومت دحقایقو دلاس ته راوړلو دپاره دبین المللی تحقیقاتو پراساس پیشنهاد دپاکستان پهکورنیو چارو کښی مداخلهګڼلی ده . که چیری دحقایقو دپلټلوپه منظور د بین المللی تحقیقاتو غوښتنه دیوه هیواد په کورنیو چارو کښی دمداخلی په توګه وګڼله شی نودغه کار به بی لهکوم شرط څخه دځینو هغوحکومتونو دسیاست دسپارلو سره برابروی چې دبشر حقوق نقض کوی . دبین المللی تولنو په واسطه دحقایقودتحقیق غوښتنهلومړی دبلوڅو آزادی غوښتونکو اودهغوی د سیاسی مشرانو له خوا شویده چې دافغانستانحکومت ددغی غوښتنی پوره ملاتړ کوی .

نوپس دخنداوړده ځرنګه چې دپاکستان په لیك کښی ځرګنده شویده چې دافغانستان دحکومت له خوادبلوڅو دخلکو ملاتړ دپاکستان دسیاسی خپلواکی اودخاوری دتمامیت پرضد یوه طرحه ده دښاغلی بوټو په مکتوبکښی ادعاشویده چې دافغانستان حکومت دپاکستان دخاوری په ستروبرخوباندی ارضی دعواوړاندی کړی ده . دغه ډول اعلام دافغانستان دحکومت په واسطه هیڅکله اوپه هیڅ سویه نه د ی شوی اودهیڅ یوی منبع پهواسطه ثابت کیدلای نشی.

دپاکستان حکومت پرافغانستان باندی لهدی کبله تورلګوی چې په پاکستان کښی دننه په سیستماتیکه توګه ددهشت اچولو اوخرابکاری عملیات ترتیب مساعدت اوتشویق کوی دغه البته حقیقت لری چې آزادی غوښتونکی دټولو هغو وسایلو په واسطه چې پهلاس کښی یی لری دپاکستان دحکومت سره جنګیدلی د ی خودغه حقیقت نهلری چې دافغانستان حکومت پههغه کښی کومه برخه لرلی ده. که چیری اجازه ورکړی شیچهدبلوڅو دآزادیغوښتونکو مجادله ددهشت اچولو په توګه تعبیر شی پس داسی ویل کیدای شی چې دنړی په بیلوبیلو سیمو کښی ټول آزادی غوښتونکی ، دهشت اچوونکی دی پههمدی اساس ټیك نه ده چې دیوی ملی داعیی سیاسی مشرانو ته دفیودال

دمشرانو خطاب وشی دحقایقو دلاس ته راوړلو په منظور یوازی بین المللی تحقیقات کولای شی چې حقیقت واضح کړی .

له بین المللی تو لنی څخه غوښتنه ددی له پاره چې حقایق منځ ته راشی په هیڅ توګه یوفیوډالی طرزالعمل نشی ګڼل کیدای.دبلوڅو دخلکو مشری دبلوڅو دمنورینو او ځوانانو په لاس کښی ده، دپاکستان حکومت دخپل لیك په ترڅ کښی یادونه کوی چې دپاکستان دټولو خلکواساسی حقوق اوآزادی دهغه اساسی قانون پواسطه چې دپاکستان دټولو ایالاتو دنمایندګانو له خواپه دیموکراتیکه توګه مستقیما ترتیب اوتصویب شوی تضمین شویدی .

دبلوچستان منتخب حکومت چې د خلکو نمایندګی لری اودهغه ځای خلکو دنورو ایالاتو په څیر ټول هغه اساسی حقوق تضمین کړیدی لری .

خوپدی ځای کی باید یونه انکارکیدونکی حقیقت یادکړو اوهغه دادی چې دبلوڅو اوپښتنو منتخب نمایندګان په غیر قانونی توګه برطرف کړی شول اوزیاتره یی اوس په زندان کښی ژوند کوی .

دپاکستان په لیك کښی افغانستان ته (دمنځنیو پیړیو دیودولت) په توګه اشاره شویده چې (په هغه ځای کښی د سیاسی مخالفینو جسمانی له منځه وړل یوه قاعده ده نه یوه استثنی ، تیرکال یوشمیر برجسته افغانان په دغه سرنوشت اخته شول اوله دغو جملوڅخه زیاتره یی په کندوکښی بی له کومی محاکمی څخه په کړاونوکښی ژوند تیروی دغه - وینادحقایقو فاحشه اړونه ده) . زه یقین لرم

چې تاسو جلالتماب خبریاست چې په افغانستان کښی د جمهوریت د انقلاب څخه وروسته دجمهوریت دمترقی نوی رژیم دله منځه وړلو دپاره دپاکستان په لمسون یولړ کوښښونه وشول چې خائنان ګرفتار اومجازات شول خوبی له محا کمی څخه هیڅ مجازات نه دی ورکړ شوی افغانستان دخپل هیوادپه کورنیو چارو کښی دپاکستان دمداخلی په مقابل کښی دتل له پاره دصبر اوتحمل څخه کار اخیستی دی .

دافغانستان په کورنیو چارو کښی دپاکستان مداخلی دهغو سندونو پواسطه چې دافغانستان دحکومت په لاس کښی دی په اثبات رسیدلی شی .

دپاکستان صدراعظم افغانستان (دمځنیو پیړیو دیودولت) په نامه یادکړیدی . دغه یادونه په رښتیاچې دخنداوړده زه فکر کوم چې په آسیاکښی خپله دپاکستان څخه پرته هیڅ کوم بل هیواد ددغسی لقب دپاره دښه شرایطو لرونکی نه دی . له هغه ځایه څخه چې حکومت په سیستماتیکه توګه دبشری حقوق اودخلکو فردی آزادی ترپښولاندی کړیدی ، له هغه ځایه چې دیموکراتیکی موسسی یوازی په نامه شته اوله هغه ځایه چې دعسکرو او پولیسو بیرحمی دورځنی ژوندانه وحشتناکه حقیقت ګرځیدلی دی .

تباه کوونکی اونابود کوونکی جنګ چې اوس دبلوڅو دبی دفاع خلکوپه مقابل کښی روان دی دخلکو داساسی حقوقو اوبشری کرامت په مقابل کښی دپاکستان دحکومت له توهین څخه په ډکی رویی شاهد دی اوپه څرګنده توګه

تابتوی چی دهغه حکومت دغه راز اقدامات په هیڅ وجه دیوه عصری اودیموکراتیك حکومت اعمال نشی گڼل کیدای .

ستاسو دجلالتمآب په عنوان د پاکستان دصدراعظم په‌پیغام کښی یاده شویده چی (تیرکال یوسلو پنځوس زره تنه افغانی اتباعو پاکستان ته پناه وړی ده .)

دغه هم دحقایقو اړول دی دموضوع حقیقت دادی دغه افغانی اتباع افغانی کوچیان دی چی هرکال دیخنی په موسم درارسیدلو په وخت کښی دسیند دناوی دغاړوتودو سیموته مهاجرت کوی، دغه رسم اورواج یی دهغه وخت څخه تعقیب کړیدی چی دغه سیمی دافغانستان جزوی .

کله چی ددوبی تاوده بادونه شروع شی دغه کوچیان لوړوبرخوته بیرته راگرزی .

دکوچیانو دژوندانه طرز دپاکستان اوسنیو واکدارانو ته پوره معلوم دی، لکه چی د دوی تیرواسلافو اوپه تیرو لس کلنو دورو کښی برتانوی مقاماتوته‌معلوم و، نوپس‌دپاکستان حکومت‌په‌دی‌ښه پوهیږی‌چی‌که‌چیری دپاکستان دمربوطو مقاماتو له خوامحدودیتونه نه وضع کیدل او دغو خلکو ته دهغوی له خواآزاراو زور ونی نه پیدا کیدلی نو دکوچیانوشمیربه‌په عادی‌ډول‌سره‌له‌هغی اندازی څخه‌چی‌دپاکستان دصدراعظم په لیك‌کښی یادونه شویده په‌عادی توگه ډیرزیات وایی .

که څه هم‌دپاکستان حکومت په‌دی وروستیو وختوکښی یوسپین کتاب خپورکړی دی چی دپښتونستان حالات آرام شویدی او هغه خلك

چه دپاکستان دحکومت پرضدیی مبارزه کوله تسلیم شویدی .

غواړم دوه مهم انکشافونه چی دسپین کتاب دادعابیخی ردوی تاسوته ورسوم .

لومړی : دپاکستان حکومت داولتیماتوم هغه پخوانی وعده چی داکتوبر دمیاشتی۱۵نسیټه یی تاکلی وه دددومیاشتو له پاره اوږده‌کړیده. ددغی مودی اوږدیدل په‌ښه توگه ښیی چی دنظامی عملیاتو اوهوایی بمباریو د پراخوالی تهدید دآزادی غوښتونکو دحقه حقوقو دلاس ته راوړلو دپاره دآزادی غوښتونکو په مقاومت کښی هیڅ ډول بدلون نه‌دی‌راغلی اودپاکستان حکومت چی داولتیماتوم دهغی مودی په دننه کی دخپل مرام په پرمختگ بریالی نه‌شو مجبور شوچی په بلوچستان کښی خپلونظامی هدفونوته درسیدلوله پاره دخپل اولتیماتوم دپاره یوه نوی نیټه وټاکی .

دوهم : په‌دی وروستیو هفتو کښی دښځو اوماشومانو په‌گډون دری سوه څلورځلویښت تنوبلوڅانو دافغانستان خاوری ته پناه راوړی ده .

افغانستان ته ددغو خلکو راتگ دپاکستان دحکومت دظلم اوتشدد دپراخوالی اوزیاتوالی په‌تیره بیا دبلوڅو په‌خلکو باندی دهغه‌هیواد دنظامی قواو زوراوزیاتی چی بلوڅان یی‌مجبور کړیدی خپلی‌کروندی اوکورونه پریږدی‌ښیی.

له بلی خوادپاکستان حکومت دبلوڅو د مجاهدینو له پاره عمومی عفوه اعلام کړی ده اودخپل سپین‌کتاب‌په ویشلوسره‌په‌بلوچستان کښی حالات بیخی عادی څرگندوی اوله بلی

**خوادخپل اولتیماتوم موده ددوومیاشتو لەپاره اوږده کوی .**

**دپاکستان دحکومت پەابلاغیو کښی دغـــه څرگندتضاد دغەکار تائیدوی چی د پاکستان دنظامیانو پرضد دبلوڅو دمجاهدینو پەمقاومت کښی دپاکستان دادعا پەخلاف هیڅډول کموالی نەدی راغلی .**

**داولتیماتوم دمودی اوږدیدل او افغانستان تە دبلوڅودپناه راوړونکو مهاجرت پە دیباره کښی دافغانستان دادعا ټیککیدل بیخی ثابتوی اودبلوڅو دخلکو اودپاکستان دحکومت ترمنځ دجنگ ددوام پە باره کښی دافغانستاناندیښنه تصدیقکوی ...**

**دغه رازپه څرگنده توگه دغەحقیقت تائیدوی چی دبلوڅو دبیگناه خلکو پرضد دهغەحکومت له خوا پەډله ایزه توگه دخلکو وژل اودناوړه اوبیرحمانه سیاست تطبیق کول ورځ پەورځ دحالاتو دخرابیدو موجب گرځیدلی دی .**

**دبلوڅو بشری اوسیاسی حقوق یی ترپښو لاندی کړیدی اوزمونږپه سیمه کښی دسولی او امنیت دپاره یی یوخطر منځته راوړیدی.**

**دغه پیښی ښیی چی افغانستان باید تاسو اوستاسو لەلاری دملگروملتو دغړو هیوادو او بین المللی ټولنو تە پە بلوچستان کښی لەدغه ناوړه حالت څخه خبردرکړی وای اونه یـــی پریښودلای چی دپاکستان دناوړه پروپاگنـــد دپنځی پردی څخه حقایق له سترگوپټکړی.**

**پردی اساس د۱۹۷٤ دسپتامبر د میاشتی داوومی نیټی دخپل تیرلیك مندرجه مواد بیـا تائیدوم اوهیله لرم چه د پاکستان حکومت دبلوڅو دآزادی غوښتونکو پرضد دقوی لـه استعمال څخه چی داولتیماتوم پەذریعه یـــی تهدید کړیدی ډډه وکړی هیله ده چی ستاسو جلالتمآب زمونږ زیات احترام ومنی .**

**محمد داود**

**دلیندی ۱۰:**

دفرانسپرس نما ینده د راولپنډی نەخبر ورکړی دی چه دپاکستان دحکـومت مخـالف گوند یعنی دملی عوامی گوند څلورتنه مشران دلیندی په پښپږمه نیټه دلوړی څل دپاره دوی دبند نه شپاړس میاشتی وروسته محکمی ته بیول شوی دی.

دغه مشران دبلو چستان پخوانی گورنر غوث بخشبزنجوا یالتی پخوانی صدراعظـــم عطاالله مینگل خیر بخش مری اوسلطان محمد مینگل دی.

داڅلورتنه به دغلطو اتهاماتو په تورونو محاکمه کړی شی.

دفرانسپرس نماینده ویلی دیبلوڅیمشران چه دبند نه مخکښی یی دپاکستان دتـشپـه نامه دیموکراسی باندی کلك انتقاد کړیوو په ۱۹۷۲ کال کښی په سیاسی تور او دغه ادعا چه دپاکستان دکښو په ضدراپورتهشویدی دپاکستاندحکومت له خوابر طرف شوی وو خودپاکستان حکومت دشپاړ سو میاشتوبـی محاکمی بندنه وروروسته دغه دیدوی دمدنی جرایموپه تورو نو محکـــمی ته بیولی دی.

دفرانسپرس نماینده زیاتوی چەددغو کسانو دمحاکمی غونډی دبنگله دیش له بیلتونـنـه وروسته دبلوچستان په باره کښی دحکومت

دسیاست له مخی چه ددغه سیاست مقصد د حکومت ضد مخالفینو او مبارزینو دجبوروئو اوله غورونو څخه رابنکته کیدو اودپاکستان حکومت ته دتسلیمیدلو له لاری دبلوچستان دلانجی دپاره دحل دلاری موندل دی.

دپاکستان دحکومت ددغه سیاست سره دنظامی قوی استعمال هم یوځای دی.

دفرانسپرس نماینده ویلی دی چه هیله کیږی چه دملی عوامی گوند دمشرانو محاکمه په خو راتلونکو او نیوکښی په پنجاب یا کوټه کښی پیل شی دغه څلور تنه له دی ویریږی چه محاکمه بهیی په عنعنوی ډول وشی او دملوك الطوایفی سردارآن او ستر کسان چه دی ته مجبور کړی شویدی دحکومت او دخلکو دگوند ملاتړوکړی اوددوی په خلاف شاهدی ورکولوته مجبورشی. ویل کیږی چه دملی عوامی گوند مشران دعصری محاکمی غوښتونکی دی چه په خپل واك اوپرته دقیود وڅخه له ځانه دفاع وکړی شی.

**دلیندی ۱۱:**

درویترنماینده له اسلام آباد څخه خبر ورکړیدی چه دبلوچستان برطرف کړی شوی صدراعظم ښاغلی سردار عطاالله مینگل ویلی دی چه دپاکستان حکومت دده له نیولو یو کال په خوا کوښښ کړیدی چه له ده اودملی عوامی گوندله نوروبندی کړی شویو مشرانو سره دبلوچستان دمسئلی دسیاسی حل په باره کښی خبری وکړی ده وویل- چه حکومت په دغو کتنو کښی هغوی ته دځینو شرایطو له مخی ددوی دخوشی کولو پیشنهاد وکړ اوکله چه دوی دحکومت پیشنهاد ونه مانه دپاکستان حکومت په جلا جلا بندیخانو کښی دهغوی دبند امر صادر کړ.

مینگل ضمنا وویل -چه دپاکستان دقانون پخوانی وزیر عبدالحفیظ پیرزاده دفدرالی حکومت په نمایندگی پشنهادکړی ووچه دوی دی په حکومت کښی برخه واخلی.

ده وویل چه مونږ ته پیشنهادشوی ووچه په بلوچستان کښی یوائتلافی حکومت جوړکړو.

درویټر نماینده څرگنده کړیده مینگل دغوث بخش بزنجو اودملی عوامی گوند دنورودو دشخصیتونو یعنی دسردار خیر بخش مری او سلطان محمد مینگل په ملگرتیا سره په لاهور کښی دپاکستان دستری محکمی په یوځانگه کښی تر تحقیق لاندی نیول شویدی چه ددوی څلورواړو بند قانونی بڼه غوره کړی .دوی څلورواړو د څوورځنی څیړنی په موده کښی ویلی دی دهغو تورونو په خلاف چه دپاکستان حکومت دهغوی دمحاکمی دپاره لگولی دی دوی دجنایی جرایمو په اثرندی نیول شوی دپاکستان دحکومت هدف چه په بلوچستان کښی یی دملی عوامی حکومت له برطرفی نه اوه میاشتی وروسته دهغوی امرصادر کړیدی. داووچه دوی سیاسی روغی مجبورته کړی.

درویتر نماینده ویلی دی دبلوڅو دمشرانو ادعاوی دپاکستان دحکومت دسختی اندیښنی سبب شویدی.

**دلیندی ۱۳ :**

دالمان دخبر رسونکی آژانس نماینده له اسلام آباد څخه خبر ورکړیدی چه دملی عوامی

گوند مشر خان عبدالوليخان عقيده لري ددي دپاره چه پاكستان له تباهي څخه بچ شي بايد دپاكستان دحكومت له لاس څخه اختيارات واخستل شي . ده ددغه آژانس له نماينده سره د مركي په ترځ كښي اخطار وركړي دي چه ممكنه ده داسي حالات پيدا شي چه دحكومت مخالفين له خان څخه ددفاع دپاره وسلي ته لاس كړي اوله وسله والو پوځونو څخه استفاده وكړي.

دملي عوامي گوندمشروويل: همدااوس په پاكستان كښي ديموكراسي بيخي له منځه تللي ده . ده توروولگاوه چه دپاكستان دحكومت له خوا په پاكستان كښي په تيره بيا په بلوچستان او پښتو نستان كښي نيول، جسمي ځورولو اوسياسي قتلونو عموميت پيداكړي دي. ده پخپله حكومت دخان په خلاف په ځلور ځله كوښښ تورن كړ عبدالوليخان وويل: سره ددي چه حتي خلك هم پدي پوهيدلي دي چه دپاكستان حكومت به په ديموكراتيكو وسايلو سره له قدرت څخه ونه لويږي.

دى پخپله دحكومت په خلاف سياسي مبارزي ته دوام ور كوي. ده وويل په پاكستان كښي حتي يوه مخالفه ورځپانه نده پاتي شوي او نور جرايد هم دمخالفو گوند ونو په باب له پټي خولي څخه كار اخلي.

عبدالوليخان وويل خلك دپاكستان دحكومت په ديموكراسي هغه وخت يوه شول چه حكومت پدي وروستيو وختو كښي په دغه ايالت كښي دبلوچستان حكومت اوددغه ځاى پارلمان چه اكثريت يي درلود بر طرف كړ.

دلندن نه دبي بي سي يوخبر وائي چه دگاز دين په نامه مشهوري انگليسي ورځپاني په اسلام آباد كښي دخپل نماينده له قوله ليكلي دي چه په پاكستان كښي دپارلمان ديموكراسي حكومت هير كړي شوي دي اوحتي دپاكستان حكومت پخپله كله ناكله اعتراف كوي چه ديموكراتيك پارلماني حكومت له ماتي سره مخامخ شويدي.

دگاردين ورځپاني وايي چه دپاكستان د مخالفو گوندونو مشران دساختگي تورونو په اساس بند او محاكمي ته راكښل شويدي. مخالف گوند ونه اوس ددغي مو ضو ع په مطالعه بوخت دي چه دتل دپاره پارلمان پريږدي.

دگاردين دورځپاني په عقيده سياسي او اقتصادي بحرانو نو اودتربيلا دبند د ماتيدو وپيښي دپاكستان داقتصا دي پر مختگ اميدونه هم داوبودسرځگ گرځولي دي .

**دلیندی ١٤ :**

درويتر نماينده له اسلام آباد څخه خبر وركړي دي چه دپنجاب ستري محكمي دلينده په ١٢ خپل تحقيق ته دعوامي ملي دحزب دځلورو ليډرانو د مسئلي په باره كښي او داچه آيادډوى بندي كول قانون ووا كه نه خاتمه وركړه .

دمحكمي په جريان كښي چه پنځي ورځي ني دوام درلود دغه ځلورو ليډرانو شاهدان وړاندي كړل. دغه ځلورو تنو چه ښاغلي عطاالله مينگل دبلوچستان سابق صدراعظم اوښاغلي غوث بخشس بزنجو دبلوچستان بر طرف شوي گورنر هم پكښي شامل دي ويل دي چه د پا كستان

حکومت څکه ددوی دنیولو امروز کړی چه دوی دسیاسی مصالحی دپاره مجبور کړی.

**دغه لیډران چه لهډیری مودیراهیسیبندیان** دی ویلی دی چهدویته وعدهورکړشوی وه چه که چیری دوی په بلوچستان کښی دیو ائتلافی حکومت لهتشکیل سره چه په هغه کښیبه دخلکوگو ندهمشامل وی موا فقــه وکړی دوی‌به لهمجسمه خلاص‌شیاوټول هغه انہا مو نه چه په دوی بانډی لګول شوی دی بیرته به واخیستل شی اوله منځه په‌یوړل شی. خودوی حاضر نشول چه دپاکستان د حکومت دفشار او تعجیزیه اثر دخلکودنفعوپه خلاف سیاسی معامله وکړی.

**دلیندی ۱٤:**

زمونږ دپښتونستانی او بلوچستانی وروڼو حاجیانو لومړی کاروان په شپږو سړویسونو کښی ووړمه ورځ ترغرمی وروسته دسرحدونو دچړوله وزارت څخه دحج دفریضی په ځای کولو په نیت‌دکعبی شریف په لورو خوځیده. دحج دفریضی داد اکولو دپاره دپښتونستانی او بلوچستانی وروڼو څخه ۲٦۱ تنه سږ‌کال له افغانستان څخه بیت‌الله شریف ته تـلـی چه پنځوس تنه بهبی دهوا اودوه سوه یوو لس تنه به‌یی دځمکی له لاری ولاړشی.

دکعبی شریف په لوردحاجیانو دلومړی کاروان له روانیدو نه مخکښی دقرآن پاك څـومبارك اینونه ولوستل شول او وروسته بیادسرحد ونود چار ودوزارت معین ښاغلی عبدالهادی مځمل دیوی وینا‌په ترڅ کښیوویل: افغانستان دپښتونستان اوبلـــوچستان له ولس سره دورور ګلوی نه شلیدونکی دینی تاریخی او کلتوری اړیکی لری‌لدی‌امله‌دافغانستان‌جمهوری دولت اوخلك له خپلو وروڼو سره له هیڅډول مادی اومعنوی مرستو څخه سرنغړوی تاســو ښاغلو حاجیانو دحج دفریضی داداکولـــو داسانتیا ؤبرابرول دهمد غو معنو ی مرستوله جملی‌څخه ګڼل‌کیږی‌چه‌جمهوری دولت یی تل د پښتنواوبلوڅوله ننګیالیو خلکو سره کـوی هیله ده چه په بیت الله شریف کښی دلوی خدای (ج) په دربار کښی ستاسودملی‌خپلواکی غوښتنی دعاوی قبول شی.

مقابل کښی ښاغلی مولوی ظاهرشـــاه د حاجیانو په نمایندګی دپښتنو او بلوڅوخلکو سره دافغانستان دجمهوری دولت او دافغان اولس دهراړ خیز ومرستو څخه شکریه‌وکړه اودملی مشرپه‌لار شوونه یی دافغانستا ند جمهوری نظام دبقا اودافغان اولس دژیاتی هوسایني هیلی څرګندی کړی.

**دلیندی ۱۷ :**

ددولت ښاغلی رئیس اوصدراعظم خاص نماینده ښاغلی محمد نعیم دچین دولـ ی جمهوریت په بلنه دلیندی په‌شپا ړسمه هغه دوست هیــواد ته مسافرت وکړ.

ښاغلی‌محمدنعیم دچین دصدراعظم مرستیال ښاغلی لی هسین‌نین په هغه میلمستیا کښی چه ددوی په ویاړ شوی ووپه خپل بیان کښی دنړ‌ومطالبو په ضمن کښی داسی وویل: دافغانستان جمهوریت کلکه عقیده لری چه

بایدهیواد وترمنځ اختلافونه دخبروله لارې او دروغې جوړې په وسایلو سره حل‌شي دملتونو دسرنوشت‌دازادانه ټاکلو دانکارنه کیدونکي حق ته په درنه سترګه وکتل شي چه‌داستعمار دبقایاوډله منځه وړلوله لارې دبشري کتلو دحقه حقوقو دژوندی کیدو دپاره کلك اوعملي اقدامات وشي.

جلالتماب خبردی چه دپښتنو اوبلو څوخلکو دآیندی په‌باب زمونږدهیواد او پاکستان ترمنځ روابط کړ کیچن‌دي. دافغانستان حکومت دزړه‌له‌کومې هیله لری چه ددواړو هیوادترمنځ دغه‌سیاسي‌اخلاف دروغې‌جوړې له لارې اوپه دوستانه‌فضا کښې زمونږ ترمنځ‌حل‌شي‌اوپه‌سیمه فضا کښې زمونږ ترمنځ حل شي اوپه سیمه کښې یوه دایمي سوله تامین شي.

**دلیندی ۲۲:**

دمخالفو ډلو مشرانو دنیشنل عوامي پارټي دلیډرانو په شمول دیومطبوعاتي کنفرانس په‌ضمن په‌اسلام آباد کښې وو یل چه دپاکستان نظامي قواوی دهغه شدیدوامنیتي ترتیباتوله‌وجهې یې‌چه‌په د ی ورو ستینیو وختونوکښې نیولي‌دبزګرانودټك راټك‌څخه‌دیو کښې نه بل کلي ته مخنیوی کوي.

هغوی په همدی شان ویلي دي چه دبلوچستان آزادي غوښتونکي خپلوفعالیتونوته دوام ورکړی اوپه ورستنیو ورځوکښې ئې دپاکستان دنظامي قواوو یو هلیکوپتر هم راغورزولي دی.

دحکومت دمخالفوډلور هبرانو زیاته کړیده چه دوی دغه مطبوعاتي کنفرانس څکه تشکیل کړی دی چه دپاکستان دحکومت دممانعتو نو له کبله دوی په ملي اسامبله کښې نشي کولای دبلوچستان پراوضاعو بحث وکړي.

**دلیندی ۳۰:**

دبی‌بی‌سي نماینده په اسلام آبا د کښې دپاکستان دصدراعظم په وینا باندی چه دهغه هیوادد مشرانو په جرګه کښې یی کړی دتبصره په ترځ کښې ویلي دي - چه‌په‌ښکاره ډول دپاکستان حکومت په پای کښې دمخالفو ګوند ونود مشرانو ددغه دریځ سره په یوه عقیده شوی دی چه دبلوچستان‌لا نجی‌یواځی دسیاسي لاری حل کیدی‌شي. دغه نماینده‌ویلي دی چه دبلوڅو مشرانو په څرګند ډول‌ددیمو کراسي اعاده اوله بندنه ټولو سیاسي ګوندو نود مشرانو خوشې کیدل دمطبوعاتو دآزادی تضمین او په‌پای کښې خپلی وظیفی ته د بلوچستان د پخواني صدراعظم ښاغلی‌مینګل بیرته راتګ غوښتي اوویلي ئې دي چه پرته لدی به دپاکستان دحکومت سره دخبرومیزته کښیني. لکه چه معلومه شویده دپاکستان حکومت اعتراف کړیدی چه ددی مسالي دحل لارله زورنه کاراخستل ندی.

حکومت همدغه راز ویلي دي چه‌په‌پاکستان کښې هیڅ خارجي قدرت لاس نه‌وهي.

دبی‌بی سي نماینده نظریه څرګنده کړیده کوم شي چه باید وویل‌شي‌دادي‌چه‌دبلوچستان حالت نوی اوکړ کیچنی مرحلی ته ورداخل شویدی.

بی ګناه خلك وژل کیږی اودخلکو ګوند هغه کوي‌چه حالات دزورپه استعمال او دویری

له لاری کړارکړی‌او ددغه سیاست په نتیجه کښی بلوخ افغانستان ته‌په پناه ورلو‌مجبوره شو یدی.

**دلیندی ۳۰:**

دا کونومنیست په نامه مشهوری انګلیسی‌مجلی په‌خپله یوه وروستۍ ګڼه کښی د بلوچستان په حالاتو باندی دیوی تبصری په ترخ کښی لیکلی دی چه بله مهمه یعنی دپناه وړونکو لانجه تیره میاشت هغه وخت پیدا شوه چه څه ناڅه دمری دقبیلی دری سوه تنه غـړی دبلوچستان له ګډوډی نه‌ډك ایالت افغانستان ته و تښتیدل.

هغی قصی چه دمری دغه پناه وړونکی‌یی دپاکستان دارد ودمرګ ژوبلی په باره کښی کوی دغه‌مستقل‌رپوټونه تائیدوی چه دپاکستان پنځه غونډه عسکر دالوتکو په ملاتړ له‌خپلو عرنیو سنګرونو څخه دبلوڅانودآزادی‌غوښتونکو په ایستلوبو خت دی.

که څه هم دبلوچستان دعملیاتو په باره کښی دحقایقو ترلاسه کول‌سخت کاردی ځکه پـــه پـــا کـستـا ن کښـی سخـــــت سانسور شته هغه څه‌چه انکارتری‌نشی‌کید ی دادی چه دپاکستان حکومت داکتوبرد میاشتی له‌اعلامیو سره‌سره چه‌دپاکستان دحکو مت په خلاف دبلوڅانو درویشت میاشتنی مبارزی‌پای ته‌رسیدلی دپاکستان اردو لاتر اوسه پوری‌د آزادی غوښتونکو له سخت مقاومت ســـره مخامخ دی .

دغی مجلی زیاته کړی چه‌د پاکستان اردو خپل پام‌د مینګل قبایلوته چه‌یوه بله سترهاو جګړه‌ماره قبله ده اړولی‌ده اودوی ته یـــی التیماتوم ورکړی‌دی چه دد‌سمبرتر پنځلسمـی نیټی‌پوری تسلیم‌شی .

که‌چیری مینګل هم‌په‌مری قبایلو پســـی افغانستان ته‌پناه‌یوسی دغه‌کارد افغا نستان حکومت ته‌یوبل معقول او نوی عذرور کوی‌چه دبلوچستان اودشمالی لویدیز صوبه سر حد یعنی پښتنودخلکو دخود ارادیت دحق په باب چه‌زیاتریی په افغانستان‌کی ژوندکوی خپلــو غوښتنوته زورورکړی .

دغه غوښتنی له‌هغه‌وخت نه چه برتانیه په ۱۹٤۷ کال‌کی دهندله نیمی‌وچی‌نه‌ووتله‌راپورته شوی اوتراوسه پوری‌دوام لری اوپدغه‌لاره کی دپښتنو اوبلوڅوخلکو فعالیت پدغودواړوسیمو کی سیاسی حالات‌ګډوډ کړی دی د ۱۹۷۳ کال په‌فبروری کی‌دبلوچستان دایالت حکومت چه‌د ملی‌عوامی ګونددا‌کثریت‌په‌لاس کی وُ‌دپاکستان دحکومت له‌خوا برطرف‌کړی‌شواودشمال‌لویدیز صوبه سرحد حکومت چه‌هغه‌هم دملی عوا می ګوند‌په لاس‌کی‌وُ سملاسی داحتجاج په توګه استعفاءو کړه .

د بلوچستان پخوانی ګورنراو ایالتــــــی صدراعظم‌ښاغلی بزنجو او ښاغلی‌مینګل لـــه ښاغلی مری‌سره‌د ۱۹۷۳ کال داګست‌نه‌راهیسی په‌بندی خانه‌کښی ژوندکوی .

اکونومیست لیکی چه‌پدی‌تر تیب ســـره به‌حالات ترهغه‌وخت پوری کړ کیچن پاتی‌شی چه‌دپاکستان حکومت دسیاسی حل‌یوه لاره‌ومنی اودهغی‌معنی دملی عوامی‌ګوندمشر ولی خان په ګډون‌دمخالفو ګوندونو له‌مشرانو سره خبری

کول‌دی ۰

مجله په پای کی‌زیاتوی چه په‌بلوچستان کښی **کورنی جګړه روانه ده هره‌شپه دکوټی‌شاوخوا** غونډی‌دآزادی غوښتونکو په‌سنګر ونوباندی د پاکستان‌دپو ځی‌قواؤ دسختویر غلونو په اثر لړزیږی که‌څه‌هم هیڅادجګړی په‌سیمه کښی چاودنی ندی‌شمیر لی خوپه‌وروستیو شپو میاشتوکی دپاکستان په بیلو بیلو ایالاتو کی څه‌ناڅه دری سوه چاودنی شویدی ۰

که‌څه‌هم پاکستانی مطبوعاتو په‌بلوچستان کی‌دغوحالاتو ته‌په بی اعتنایی سره کتلی‌دی اودهغوخبرونه نه‌خپروی خوحقیقت‌دادی چه نوره نړی‌نشی کولی دپاکستان دمطبوعا تو په‌شان‌پدغو پیښو باندی چه‌ورځ په‌ورځ لاپسی خرابیږی اوسترتهدید پیداکوی ستر ګی پټی کړ ی ۰

**مرغومی لومړی :**

**ددولت ښاغلی رئیس او صدر ا عظم** فرانسپرس له‌نماینده‌سره دیوی مرکی په‌ترڅ **کښی دپښتو نستان د مسئلی په باره کی** وفرمایل :

**پوښتنه :**

لکه څنګه چه دپاکستان له‌نظره لیدل‌کیږی **تاسی له ځینو مذهبی ډولنو سره ستو نزی** لری خوکله چه‌انسان‌کابل‌ته‌راشی دد غو ستونزو درجه‌شك ته‌رسیږی ۰ دموضوع‌حقیقت څه‌دی ۰په‌عمومی توګه آیافکر کوی چه‌اسلام اوچټکه پرمختیا یوځای امکان لری ؟

ځواب ــ دپاکستان دواکمنو په‌نظر کښی چه‌دهغه‌د خلکو عقیده‌نه منعکسه کوی‌هیڅکله‌د افغانستان په‌نسبت حقیقت او ښه نیت‌نه‌درلود اونه یی‌لری ۰

ونه‌یوازی پدغه مساله‌کی بلکه زمونږ دهیوادپه‌زیاتو مسلو کی په‌خپلوغولوونکواو **له حقیقت څخه لری تبلیغاتو سره کوښښ** کوی‌چه‌په هره‌سویه او وسیله چه ممکن وی زمونږ دوطن په‌نسبت ذهنیتونه ګډوډ کړی ښه شوه چه‌زمونږ‌وطن ته‌راغلی‌او له نږدی څخه مواقعیت ولید دپرمختیا او اسلام په باره‌کی بایدخرګنده‌کړم چه داسلام حقیقی فلسفه‌د **پرمختیا خنډ‌نه وه اونه ده :**

**پوښتنه :**

غواړم له پاکستان سره دروابطو په‌باب چه مهمه اومشکله موضوع ده پوښتنه وکړم ۰ له ۱۹٤۷ کال راهیسی په‌نیمه‌وچه کی ددغی‌سیمی داقتصادی پرمختیا په‌ځای‌دجګړی او تسلیحاتو په‌لاره‌کښی زیاتی پیسی لګول شوی دی خوله هغی نیټی څخه‌تر نن پوری دبنګله دیش له‌خپلواکی‌پرته‌هیڅ بدلون ندی‌راغلی۰ سخته بریښی چه‌په کشمیر کی داوربند په کر ښه کی‌بدلون راشی۰ دغه‌راز سخته بریښی چه‌د ډیورنډ دکرښی په‌باب پوښتنه وشی‌سره ددی چه‌دغه‌سر حدی کرښه‌دافغانستان او پاکستان ترمنځ فوق‌العاده مصنوعی بلله کیږی حتی‌په بلوچستان کی هم‌احوال ډیر زیات‌ښه شوی‌دی زه داکتوبر په میاشت‌کی کوټی ته تللی وم او فکرکوم چه‌ښاغلی بوټو پدغه ځای‌کی ورځ په ورځ له‌کمو ستونزو سره مخامخ کیږی۰ښاغلی بوټو تاسی دسملی دتړون په‌شان دیوه تړون دلاس‌لیك کیدو پیشنهاد کړیدی چه‌دلاس‌لیك کوونکو په‌کورنیو چاروکښی دلاس‌نه وهلو

اوددواړوهیوادو ترمنځ دتولولانجو حل زړی وی اوکه نوی دخبروله لاری اتکل کوی .

آیاتاسی حاضر یاست دغه شان تـــړون لاسلیک کړی. په عمومی تو گه له پاکستـــان سره ستاسو دروابطو په باب په تیره بیامسکو ته دښاغلی بوتوله سفر اونیمی وچی ته دهنری کیسنجر لەسفرڅخه وروسته ستا سی نظـــر څه دی ؟

داسی بریښی چەدافغا نستان او پاکستان ترمنځ روابطوکی پەڅوورو ستیو اوو نیو کښی کراری پیداشوی ده. آیا داحقیقت لری او که محضی یوخیال دی ؟

ځواب ـ دا چه اعتراف کوی دپیوزنتونتش په نامه سرحدی کرښه فوق‌العاده مصنوعی ده په‌ځپله یو مسلم حقیقت څرگندوی یـــوا زی دکوټی دښارلیدل ددی دلیل نشی کیدی چه د بلوڅانو مجادله کمزوری شوی او یاپای‌ته رسیدلی دەتصور کوم ملی‌مجاد لی داسی شی ندی چه‌ویرژر او په آسانی سره پای تـــه ورسیږی ،دښاغلی بوتو له خولی څخه دغـــه شان تبلیغاتی پیشنهادونه او ویناوی‌ډیر ی اوریدل شوی او اوریدل کیږی خو حقا یـــق له‌تشو تبلیغاتو اودحقایقو له گډوډو لـــــو پرته‌نور څه ندی . تراوسه پوری داخبارو نو اوراډیو دتبلیغاتو لەلاری‌پرته رسما دغه شان پیشنهاد مونږته ندی رارسیدلی‌لکه څنگه چه بیابیا موویلی‌اوبیایی هم‌وایم چه‌مونږ لـــه پاکستان سره له هغی یوازنی سیاسی قضیی پر ته چه‌هغه دپښتنو اوبلوڅو خلکوسرنو شت دی‌بل اختلاف‌نه لرو دروغی جوړی لەلاری‌ددغی قضیی شرافتمندانه او عادلانه حل‌زمونږ دزړه

له‌کومی هیله ده امیدلرم دپاکستان صدراعظم په‌حقیقتونو او واقعیتونو باندی ستر گی پټـــی نه‌کړی .

**پوښتنه :**

آیا په مساعدو شرایطو کی حا ضــــــر یاست له پاکستان سره خپل اختلا فونـــه‌د خبروله لاری‌حل او فصل کړی ؟

ځواب ـ مونږ بیابیا ویلی دی‌چه‌د خبـرود پاره چمتویو‌یدی شرط چه‌په هغو کی‌د واقعیت په برخه‌کی ښه نیت موجودوی اوقیدو شرطونه وی افغانستان یوسوله دوست هیواد دی.فکر کوم چه‌دنړی ددغی سیمی دهوساینی او آرامی دپاره به‌لەسولی څخه بل‌ښه شی نه وی.زما په عقیده‌هغه پیسی‌چه دفقیروهیوادو دتسیلحاتو په‌لاره کی لگول کیږی که چیری دپر مختیـــا اوابادی په مقصد ولگولی شی دسیمی اودنړی دسولی پەخیربه وی .

**پوښتنه :**

د پښتونستان دپروبلم په باره کښـــــی څه‌فکر کوی آیا تصور کوی چه دغه قضیـــه دخبرو اومفاهمی لەلاری حل‌شی ؟

ځواب ـ پاکستانیان تل دپښتو نستـــــان مسئلەدواقعیت پەخلاف تبلیغ کوی. مونـــږ اساسا دپښتنو او بلوڅوخلکودپاره‌دسرنوشت دټاکلودحق پیژندل‌غواړو اوغواړو له‌پاکستان سره دهغوی‌مسئلی دهغوی د هیلی سره سم حل‌شی. ښه به داوی چه پاکستان دهغـــو ی مشرانو سره‌خبری اومفا همه وکړی مـــونږد شرافتمندانه حل‌لەلاری پرته‌چه‌دپښتنواوبلوڅو خلکودهیلو سره سم وی بله هیله نه لرو .

**دمرغومی لومړی :**

**دجامعة العلماء اسلامي عمومي منشي ښاغلي** مفتي محمود پدغه باره کی چه دپاکستان حکومت یی ومنی په بلوچستان اوپه شمال لویدیز ایالت کښی دی داکثریت او مقــو ن یوحکومت جوړشي شك او تردید څر گند کړی اود پاکستان دحکومت دغه خبره یی په کلکه رده کړی چه دسیاسی استقرارد تا مین په مقصد له مخالف گوند سره دخبرو بیا پیل کیدو دپاره په بلوچستان کی او سني مشکل حالت مناسب ندی .

ښاغلی مفتی محمود وویل د پاکستان دحکومت په وینا کی څرگند تناقض شته ځکه دی له یوی خوا په هغوی باندی د دښمنی تور لګوی او له بلی خواله هغوی څخه غوا ړی چه باثباته سیاسی حالت پیدا کړی .

دمتحدی دیمو کراتیکی جبهی عمومی منشی پروفیسور غفور احمد هم دپاکستان دحکو مت په پیشنهاد کی هر ډول صمیمیت رد کـړ ی او ویی ویل دپاکستان حکومت دسیا سی حـل یوی لاری ته درسیدو په لور ټولی لاری تړ لــی دی .

دغه راز ده وویل ، چه حکومت اجازه نه ورکوی دبلوچستان په باب د مخالفینو نظر یی او پیشنهادونه په اخبارونو رادیو اوتلویزیون کښی خپاره شی .

د بی بی سی نماینده تبصره کړی ده چه دغه شان وینا وی دامعنی لری چه دحکومت مخالفان دپاکستان له صدراعظم سره دبلو چستـــان په باره کښی زیات امید نه لری او یوا زی په هغه صورت کښی دیدغه کار دترسره کیدود پاره چمتودی له بندڅخه د مخا لفو سیا ســی مشرانو دخوشی کیدو دمطبوعاتو د آزا د ی او په بلوچستان او پښتونستان کښی داکثر یت دحکومتونو دبیرته راتګ په ګډون ددیمـو ـ کراسی داعاده کیدو په باب دهغوی پخوا نی پیشنهادونه اونظریات ومنی .

**دمرغومی ۲ :**

**دلوی اختر په مناسبت ددولت ښاغلـی رئیس او صدراعظم دنورو مطالبو په ضمن کی داسی وفرمایل:**

**« یو ځل بیا گرانو وطنوالو اودنړۍ ټو لـــو** مسلمانانو اوپښتنو او بلوڅو ورونو ته چه دخپلو حقه حقوقو دلاس ته راو ړلو په لاره کی په ایثار او فداکاری بوخت دی دزړه له کومی دغه نیکمر غه لوی اختر مبارکی وایم اوددوی دملی هیلو په سر ته رسیدو کی ددغو ورونو دبریالیتوب هیله لرم ».

**دمرغومی ۷ :**

د پښتنو او بلوڅو مشرانو ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم په نامه په پیغا مو نو کی دخپلو قومونو په نمایندگی دبختور لــــو ی اختر مبارکی ویلی ده .

د رارسیدلی خبر له مخی دپښتو نستان اودبلوچستان ټولو بلوڅو او پښتنومشرانو اوپه افغانستان کی د پښتونستان اوبلوچستان اوسیدونکو پښتنو او بلو څو مشرانود خپلو خلکو په نمایندگی په رالیږلو پیغا مونو کی دملی مشر ددولت رئیس اوصدر اعظم ښاغلی محمدداؤد دحضور د مرکزی کمیټی او کابینی غړو اوټولو افغان ولس ته د نیکمرغه لــوی

اختر په مناسبت مبارکی ویلی اودافغانستان دزیاتی‌تر قی او افغان ولس دزیا تی‌هوسا ینی هیلی یی څر گندی کړی دی .

**دمرغومی ۹ :**

د پښتونستان له پیښور نه را رسیدلی خبر وایی چه دملی عوامی گوند یو مشر دپښتو نستان دایالت‌پخوانی‌والی ښا غلی ارباب سکندر خان خلیل د پښتو نستان په ایالتی اسا مبله کی دمخالفو گوندو نو درئیس په حیث وویل دحکومت له خواد اسامبلی غونډی تر نامعلو می مودی پو ری ځنډول یو غیر جمهوری عمل دی چه‌دپاکستان دحکومت له خوا داولس په خلاف روا ندی .

ښاغلی ارباب سکندر خان په پښتنو محصلینو باندی دپاکستان دحکومت د جبر او تشدد دیادونی په ترڅ کی وویل هغه حکومت نشی کولی چه دظلم پدغولارو چارو باندی د حقایقو مقابله وکړی .

دپښتونستان په اسا مبله کی دپاکستان دمخالفو گوندونو رئیس وویل د پاکستان حکومت داسا مبلی غو نډی پدی غرض تر نامعلومی مودی پوری ځنډو لی دی چه تاکل شوی وه دتیری جمعی په ورځ په اسا مبله کی دپو هنتون‌په‌پښتنو محصلینو باندی دپاکستانی پو لیسو دکوتکو چلولو په موضوع بحث او خبری وشی.

هغه وویل دپاکستان‌د اسا سی قا نو ن ۱۵٤ او ۱٤۷ او ۱۲۷ ماده داخبره ضروری گڼی چه ایالتی اسا مبلی به په کال کښی‌لږ ترلږه اوباوریشی غونډی کوی او لد غه وخت نه اوس هم خوار لس ور ځی لا پا تی دی .

دجمعیت العلمای اسلام گو ند مشر د پښتونستان پخوانی وزیر اعلی ښا غلی مولانا مفتی محمود دیوی او لسی غونډی ته په‌خپله وینا کی وویل ، دبلوچستان مسا له یوه‌سیاسی مسئاله ده او کیدی شی چه‌د خبرو له‌لاری حل‌شی .

**دمرغومی ۱۰ :**

دملی عوامی گوند رئیس دپاکستان دټولو دمخالفو گو ندونو مشر خان عبدالو لی خا ن په ملتان کی دیوی لویی ولسی غونډی ته‌په خپله وینا کی ویلی دی چه دده گوند او ټول پښتانه او بلوڅ آزادی غو ښتونکی‌مشران د خپلو حقوقو دتر لاسه کولودپاره دپاکستا ن دحکومت په‌خلاف دجگړی میدان ته وتلی دی .

هغه وویل ـ مونږ دپاکستان سره‌دوزارتونو دچوکیو دپاره جگړه نه‌کوو بلکی یوازی خپل بشری حقوق غواړواو په دغه مبارزه کښی دهغه حکومت دهیڅ گواښ او تهدید نه نه ویریږو .

خان عبدالولی خان وویل، دپاکستا ن حکومت‌مونږ په دمرگ ژوبلی گواښ هم کوی خوزه مسلمان یم اوپه خپل خدای ټینگه عقیده لرم چه عزت ذلت او مر گ او ژو ند دلوی خدای په‌قدرت‌کښی دی نو ځکه‌دپاکستانی حکومت تهدیدونه زمونږ په وړاندی هیڅ اهمیت او حیثیت نه لری .

دپاکستان دحکومت د مخالفوگوندونو مشر په پښتونستان اوبلوچستان کی دهغه‌حکومت دمظالمو دیادونی په‌لړ کی وویل زمو نږ په محصلینو او متعلمینو او کاریگرو بـا ندی دحکومت د ماشیندارو ډزی هره ورځ روا نی دی اود بزگرو اقتصادی حالت مو بیخـی تباه شوی دی ۰

هغه‌وویل ،دعامه ابلاغ په ټولو وسیلـو باندی دپاکستان واکمن گوند کنترول لر ی اوپه ټولو سیمو کی هری خواته دپـاکستان دحکومت دبندیزونو جالو نه غو ړ یـد لی دی ۰

**خان عبدالولی خان** دخپلی وینا په پای کښی وویل متحده جمهوری محاذ او ټول مخا لف گوندونه به‌دخپل ولس په‌وړاند ی دخپل دریځ وروستی فیصله وکړی همدارنگه دپاکستا ن دسناد مجلس په غونډه کی دحکومتی‌گو ند اومخالفو گوندونو دسناتورانو تر منځ هغـه وخت یوه شخړه پیښه شوه چه په‌غونډه کښی دسنادحکومتی غړوله خوا په پښتو نستا ن او بلوچستان کی د آزادی غوښتونکو موضوع رامنځ ته شوه ۰

خبرزیاتوی سر بیره پردی چه مخا لفو سناتورانو په پیشنهاد باندی په بحث کښی برخه وانخسته د احتجاج په تو گه دغو نډی له تالارنه ووتل ۰

**دملی عوامی گوند** رئیس دمتحده جمهوری محاذمشرخان عبدالولی خان دپنجاب په‌خانپور کی یوی ولسی غونډی ته وویل ،دپاکستا ن حکومت چه تر څو پښتنو اوبلو څو تـه‌د هغوی ټول حقوق نه‌وی و رکـړی دهغـه حکومت هیڅ مسئله به حل نشی ۰

هغه وویل حکومت کوښښ کوی چه ولس نه وښیی چه‌په پاکستان کی مسایل حـل شوی دی خوپه حقیقت کی هغه حکومت تـه مشکلی مسلی‌تر پخوا زیاتی شوی دی ۰

دمخالفو گوندو نو مشر دپاکستان‌دحکومت دغه ادعارده کړه چه دبلو چستان آ ز ا د ی غوښتونکی دهغه‌حکومت‌په‌خلاف په غرو نـو کی‌دجگړی له سنگرونو نه راښکته شوید ی اوویی ویل دحکومت ددغو تبلیغاتو په‌وسیله داولس او حکومت ترمنځ شخړی او مسئلـی نشی حل‌کیدی ۰

هغه وویل متحده جمهوری محاذ په خپـل ټول سیاسی قوت سره د بلو چستـــان د ولس دحقوقو د اعادی دپاره خپله مبارزه‌جاری سا تـــی ۰

**د مرغومی ۱۱ :**

ددولت رئیس او صدراعظم ښا غلی محمد داؤد دجمهور رئیس ښاغلی چـو دری فضل‌ـ الهی صدراعظم ښاغلی بوټو اودملی عوامـی گوند مشر د ښاغلـی خان عبدا لولیخا ن‌په نامه دبیلوبیلو پیغا مونو په تر خ کښـی‌د پښتونستان دصوات په علاقه کښی‌دوروستی زلزلی دځانی تلفاتو او ما لی زیانونو له‌امله دخپل ځان د افغانستان دحکومت او خلکـو‌د ژوری خواخوږی او خواشینی مراتب څر گند کړی دی ۰

**دمرغومی ۱٤ :**

د باندنیو چارو دوزارت **نطاق** دپاکستان په مطبوعاتو کی دخپروشویو **اوازو** او **هغه** هیواد ته دیوه رسمی **سفر** **دپاره‌دافغانستان** ددولت د ښاغلی رئیس **او** صدر اعظم **ته‌د** بلنی په‌باب‌دهغه‌هیواد د صدر اعظم ښاغلی ذوالفقار علی بوټو دوروستی وینا په با ب

دباختر آژانس دنماینده د پو ښتنی **په‌ځواب** کښی وویل : تراوسه پوری دغه ډول **بلنه** په‌رسمی ډول نده‌رسیدلی او یوازی **پـــه** اسلام‌آباد کی دافغانی لوی سفارت **شارژدافیر** ته دپاکستان دباندنیو چارود وزارت **د پاره** ددولت دوزیر ښاغلی‌عزیز احمد **په‌واسطـه** یوه استشاره شوی **وه** ۰

نطاق څرگنده کړه افغا **نستان تـــــل‌د** دواړو هیوادونو تر منځ د یوا زنی‌سیا سی **اختلاف دحل دپاره دپاکستان سره دبی قیـدو** اوشرطه خبرو په غرض خپل تیاری **څر گند** کړی او څرگندوی یی پدی معنی **چه افغانستان** پراختیا غوښتونکی ندی‌خود مشرا نـــو **اود** پښتون او بلوڅو د ولسونو اود **پاکستا ن** دواکمن **حکومت** ترمنځه دداسی **حقیقی‌مفاهمی** ملاتړاوغوښتنه **کوی چه ددوی د قنا عت‌سبب** شی ۰

**لکه چه ددولت ښاغلی رئیس اوصدرا عـظم** تل په ویناؤاو مر کو کی دغه **ډول هیلـــه** څرگنده کړی ده خودبین‌المللی **طرز العمـل** او **معمو لو روشونو** سره سم رسمی **بلنه‌هغه** وخت اعلان کیدی شی چه **دواړو خواوو مخکی** له هغی سره موافقه کړی‌وی‌حال‌داچه تراوسه دافغانستان له خوا پدغه باب **په رسمی‌ډول** نظر یه نده‌څرگنده شوی ۰

دسیاسی پیچلو او باریکو **لانجو دحل له** پاره‌چه د هغو مثالونه **معمو لا لیدل کیږ ی** دافغانستان په عقیده **داسی** ستری **جر گــی** ایجابوی چه دبر یالیتوب دپوره **کولو پـــه** منظور دی‌مخکینی تر تیبات **او** تیا ر **ی‌ونیول** شی ۰

**دښاغلی بوټو دښه نیت دتقد یـــر پــــه** څرگندونه ددغه خبر خپرو نه **په یواړخیـــز** ډول اود افغانستان دحکومت د ځواب **ترمخه** **زمونږ دحیرانتیا سبب شو. نطاق زیاته کـړه** همدارنگه دحیرانتیاځای دی چه **له یوی خواد** پاکستان صدر اعظم ښاغلی **بوټو ددوی په** **خپل گمان ددولت ښاغلی** رئیس **اوصدرا عظم‌**ته بلنه ور کوی او له‌بلی خوا خپله **دی او د** **پاکستان ځینی‌مسوول‌وزیران‌دافغا نستان‌په‌باب** تورونه لگوی چه دحقیقت نه **بیخی لـــر ی** دی ۰

**ښاغلی بوټو له‌یوی خوا ددوستانه بلنـــی** **خبری کوی اوله‌بلی خواپه خپله هـــم هغو** ویناؤ کښی‌په افغانستان **باندی دگوریلا یانو** دروزنی‌چه تر اوسه پوری **یی څو ځله پــه** قاطع او کلک‌ډول دافغا نستان دباندنیو **چارو** دوزارت نطاق ردکړی دی تور **لگوی** ۰

**د مرغومی ۱۹ :**

د**باندنیو** چارود وزارت سیاسی **معیـــــن** ښاغلی وحید عبدالله د مر غو می **دمیاشتی** په نو لسمه نیټه دلندن دسندی **تایمـــــز** دخبریال‌ښا غلی انتونی مکار نهاس سره **یوه**

مرکه کړی ده چه دادی ددی مر کی هغه‌حصی چه دپښتنو او بلوڅو دمسئلی سره ار تباط لری وړاندی کیږی .

**پوښتنه :**

هیله لرم له گاونډیوهیوادو نو سره د افغانستان دسیاسی مو ضوع اوهغو تحولاتو په‌باب چه په افغانستان کی دنوی رژ یم دټینګیدونه وروسته پیښی شوی دی څه معلومات تر لاسه کړم . مهر بانی وکړی ددولت ښاغلی رئیس ته‌دښاغلی پو ټو بلنه چه ددواړو هیوادو نو د مشرا نو په‌یوه جرګه کی دګډون دپاره یی ور کړی ده‌توضیح کړی؟

خواب ـ لکه چه‌دباندنیو چارو وزارت نطاق‌دجنوری په څلورمه نیټه څرګنده کړه‌د ښاغلی بوټو ویناوی زمونږ له‌نظر ډیر ی دحیرانتیا وړوی څکه د مشرانو د جر ګی جوړیدل پوره مقدمات او تیاری غوا ړی په داسی حال کښی‌چه ښاغلی عزیز احمدیوازی ددولت دښاغلی رئیس ته‌دبلنی‌په‌باب دښاغلی بوټو هیله افغانی شارژ دافیر ته څرګنده‌کړی ده ۱۰ او غوښتل یی پدغه باب د افغا نستا ن عکس‌العمل معلوم کړی. له وخت‌نه مخکښی‌ددغه خبر خپریدل دافغانی مقاماتو دبدګو مانی پیدا کیدو سبب شو څکه د مشرانو جرګه سربیره پردی چه‌په بیلوبیلو سویو مخکښی تیاری او ایجابوی او یوبین‌المللی منل شوی پرنسیپ دی په یو اړخیز ډول دهغه اعلان پر ته لدی چه له‌مونږ سره‌شك‌اوتردید پیدا کړی بله معنی نه لری .

**پوښتنه :**

آیادافغانستان‌حکومت دا بلنه یوازی دپرو پاګنډ په‌غرض فکرکوی ؟

خواب ـ ګرانه ده چه پدی باره کښی په‌پوره ډاډ نظریه څرګنده کړم که چیر ی ښه نیت په منځ‌کښی وی مونږ یی ښه هرکلی کوو .

د افغا نستان حکومت په‌بیلو بلو بر خو کښی دپاکستان دحکومت سره د خبرو دپاره خپل تیاری‌څرګند کړی‌دی .

**پوښتنه :**

پرته له هیڅ ډول مخکنیو شر طونو ؟

خواب ـ هو، مو نږ دپاکستان دحکومت اود پښتنو او بلوڅو مشرانو تر مینځ‌د هغو خلکو انسانی کرامت اواحترام همدغه راز دحل‌دیوی لاری دمیند لو اودهغو ی دغوښتنو دپاره د مخا مخ خبرو ملاتړ کړی او کوو یی.

**پوښتنه :**

آیا افغانستان ددغو خلکو دپاره‌دسرنوشت دټاکلو دحق غوښتنه کړی ده؟

خواب ـ هو .

**پوښتنه :**

د هغو بی کوره خلکو شمیر څو مره د ی چه دبلوچستان نه یی افغا نستان ته‌مهاجرت کړی دی .

خواب ـ دغه شمیر او س ۳۴۴ تنو ته رسید لی دی چه‌که‌دپاکستان‌حکومت د دو ی دلاری دبندولو دپاره اقدام نه وای کړی نور به هم ډیر شوی‌وای. په زړه پوری ده چه افغانستان ته دبی کوره خلکو پناه وړل له

هغه وروسته پیل شول چه‌ښاغلی‌بوټـــو د بلوچستان دلانجی اوارول نږی والوته رســما اعلام کړی وو ۰

**پوښتنه :**

آیا اوس هم دپناه وړونکو د را تلوانتظار لری ؟

ځواب ــ بلی دژمی له تیریدو نه وروسته هیله کیږی چه یوځل‌بیادمهاجرینو بهیر راشی ځکه چه جګړه نده بنده شوی اولا تر اوسه روانه ده‌البته دژمی موسم دجګړی ستخوالـی کم کړی دی ۰

**پوښتنه :**

دډیورند دکرښی په‌باره کـــی څر نـــګه نظر ښکاره کوی؟

ځواب ــ د دیورند کر ښه په رسمیت نه پیژنو د افغانستان او پاکستان تر مینـــځ سرحدونه بیخی مصنو عی او غیر حقو قـــی دی ۰ باید زیاته‌کړو چه‌تحمیلی‌تړون د هغـه وخت د استعمار دیوه بیساری زور سره په افغانستان تحمیل شوی‌دی ۰

**پوښتنه :**

د پاکستان د راډیو پرو پاګند څر نګـــه ګڼبی ؟

ځواب ــ بیخی پوچ دی ښه داده چه دړغو پروپاګنډو په متڼیو ځل تیر شی او په‌هغه وخت کښی به تاسوخپله قضاوت وکړی چه‌تر کومی اندازی بی اساسه اود هیوادو پـــــه اړیکو کی له منل شوی ادب او نزاکتونوڅخه وتلی دی ۰

**پوښتنه:**

د دواړوهیوادو د مشرانو دجر ګی اجندا به‌له کومو مطالبو جوړه وی ؟

ځواب ــ د اجندا موضوع په منځ کښـی نشته یوازی‌هغه مو ضوع چه مونږ له‌هغوی سره دنظر اختلاف لرو او پخوا می څر ګنده کړه دپښتنو او بلوڅو راتلونکی سرنوشت دی ۰

**پوښتنه:**

د افغانستان حکومت ددریم ګړیو هیوادو منځګړیتوب پدی باب منی که نه ؟

ځواب ــ دهر دوست هیواد هلی ځلـــی منو ۰

**پوښتنه:**

آیا احتمال لری چه‌نور هیوادونه هم پدغه اختلاف کی مداخله وکړی ؟

ځوا ب ــ پدی موضوع کی مدا خله پـــه تیره بیا دسیمی سو له په خطر کی‌اچوی ۰

**پوښتنه:**

آیادپاکستان دنظامی پوځونو تمر کـــز صحت لری که نه ؟

ځواب ــ دغه حقیقت لری چه‌د پاکستا نی اردو ځو ډیویزونه‌اوس دبلوچستان په سیمه کښی په نظامی عملیاتو بوخت دی‌که څه‌هم، پاکستان ادعاکوی چه دغه‌تمر کز یوازی د اقتصادی انکشاف دپلانونو پراختیا او تطبیق دپاره کیږی خوددی په‌خلاف که په‌یادر اوړی دانګلیسانو دوجود په وخت کی‌په نیمه‌وچه کی دوی پدغه ډول پلمه خپلی سیا سی او نظامی هیلی پوره کولی ۰

پاکستان د همدغه تاکتیك نه کار اخلی او نړی شاهده ده‌چه څـومـــره اندازه زاړه او

ځوانان ،ښځی اوسړی په بمباریو واما شیګنړو ګړو مړه شول .

**پوښتنه:**

ښاغلی اجمل‌ختک په کابل کی له‌استوګنی څخه څه منظورلری. پاکستانی مقا ما ت‌ادعا کوی چه نوموړی د افغانستان‌په لمسون د پاکستان په‌خلاف دسیسو او سبو تاژ دپاره د اشخاصو په روزلو او لیږ لو بوخت دی .

ځواب ـ ښاغلی‌اجمل ختک دزور او ظلم نه دخلاصون دپاره خپل بلر نی هیوادته راغلی دی او موږ هغه بیخی‌طبیعی ګڼو .

د ښاغلی اجمل ختک له خواد ګریلایانو دلیږلو په‌باب دپاکستانی مقاماتو ادعا په‌مطلق او قاطع ډول ردوم .

دغه‌ادعا محض تور دی او له‌هغه څخه‌منظور په پاکستان کی د اوسنیو خړو بړو حالا تو څخه دعامه اذهانو اړول دی دوی تل عا د ت لری دخپلو کورنیوستونزو او شرایط علتونه دنورو په غاړه واچوی .

د مرغومی ۱۹ :

**د لوموند ورځپاڼی په خپله د ۱۹۷٤ کال ددسمبر دمیاشتی په پنځه ویشتمه ګڼه کی دپاکستان او بلوچستان د حالاتو په بـاب داسی لیکلی دی .**

پاکستانیانو د دسمبر په شلمه نیټه دپاکستان دخلکو دګوند د اقتدار در یم‌تلین په سړه توګه هرکلی وکړ ځکه پدغود ریو کالونو کښی دپاکستان زیاتی ستو نزی اواری شوی ندی .لکه څنګه‌چه د اقتصاد له پلوه دغه هیواد دیوه ستر بحران سره مخامخ دی اود هغو مرستو سره سره چه نفت لرونکی هیوادو نه‌ورسره کړی دی پد غه هیواد کی‌بیی‌په چټکتیا سره جګیږی د غه حالت دومره خـراب دی چه انسان فکر کوی د پاکستان حکومت په حقیقت کښی‌اصلا ټاکلی اقتصادی سیاست نه لر ی.

دآزادی اودیموکراسی په سا حه کښی هم حالات داقتصادی حالاتو نه ښه ند ی اساسی قانون بیخی ندی تطبیق شوی او ـ مخالف ګوندو نه او مطبوعات د حکو مت له خوا دورځ په ورځ مخ په زیاتیدو نکوځنډونو اوستونزو سره چه هره ورځ شخصی صبغـی اختیاروی مخامخ کیږ ی.

داکتوبر دمیاشتی په پای کښی‌دپاکستا ن حکومت وعده ورکړی‌وه چه‌بلوڅی سر تیری به وبخښی اونوموړی حـکومت ددغه تـر څنګ‌څوځلی هڅه وکړه چه دبلـو څـی بندیانو د مشرانو سره‌خبری‌وکړی خو دو ی هر ډول خبری تر هغه وخته‌پوری چه بندی‌ـ خانه کی وی ردی کړی خودغه مشران‌د ۱۹۷۳ کال د فبروری په میاشت کی پداسی حا ل کښی چه دقانونی‌انتخاباتواود اکثر یت دوړلو وروسته دبلوچستان دحکومت مشران ؤ د پاکستان دحکومت دحکم په اثر بر طرف او وروسته بی له تورد محاکمه او بند یان‌شوی وو لکه چه دګاردین ورځپاڼی هم تصدیـق کړیدی دمرکزی حکومت دهغو نظا می‌پوځونو شمیر چه دبلوڅو آزادی غو ښتوونکو پـه خلاف ایږدول شوی پنځه اویا زرو تنو تـه

رسمیږی .

دپاکستان دحکومت اودبلوڅو د آزا د ی غوښتونکو ترمنځ د خبرو او موا فقی لا ره اوس نشته ځکه بلوڅی مشرانو غو ښتی دی چه د هر ډول خبرونه مخکی باید پاکستا نی عسکر له بلوچستان نه ووزی ټول سیا سی بندیان خو شی کړی شی اوداکثریت هغـــــه حکومت بیرته منځ ته راشی چه په ۱۹۷۳ کال کی په زور گوښه کړی شوی ؤ . خو هغه لاره چه په خو وروستیو میاشتو کی دپاکستان حکومت ورته کار اخلی په هیڅ تو گه د جوړی او پخلاکیدو لار ورته نشو ویلی ځکه چه دشمال لویدیز دسر حد په ایالت کی د ملی عوا می گوند مشر خان عبدالو لی خان چه دحکومت ډیر ستر مخالف گڼل کیږی او تر اوسه پوری دخو ناوړو پیښو چه ده په خلاف شوی و ی بچ شوی دی خوددغو گوا ښو نو سره سره نوموړی غواړی چه دبشپړی خپلوا کی پـــه موضوع بانـدی خبری وشی د استقلال دتحریك په نامه ډیر بل مخالف گوند یو مشرد هوایی پوځونو پخوانی مارشال اصغر خان چه پـــدی وروستیو وختو کی په خپل کور کښی تـــر څارنی لاندی ونیول شو اصغرخان او دد ه دگوند یوتکړه غړی ښاغلی رضا قصور ی تر اوسه پوری دځو ناوړو بیلو بیلو پیښونه روغ رمټ خلاص شوی دی .

لوموړنی آخـــــر کی لیکـلـــی چه هیله ده د پاکستان حکومت خپل سلوك واړوی اودروغی اوجوړی لاره غوره کړی چه البته پدی لار ه کښی لمړی گام دبلوڅو د مشرانو خو شـــی کول دی .

**دمرغومی ۲۱ :**

**دښاغـــلی محمد داؤد ددولت رئیس او صدراعظـم او د افغانی سری میاشتی حامی دهدایت پـه اثـر د افغــانی سری میاشتــی پنځه لس زره ډالره دپښتونستان دصوات دعلاقی** دمصیبت ځپلو خلکو سره مرسته کړیده .

**د مرغومی ۲٤ :**

دباندنیو چارو دوزارت د اطلا عا تـــــو مدیریت خبر راکړ چه دبلوڅو د خلکو پـــه خلاف دپاکستان دحکومت د ظلم او تشـــدد دسیاست د دوام له امله اود پخوانیو دری سوه او څلورڅلویښت پناه وړو نکو نه وروسته بیکاه دوه سوه تنو نورو بلوڅو چه ښځـــــی او ماشومان هم پکی شامل دی د افغا نستان خاوری ته پناه راوړی ده .

دغو پناه وړونکو ته هم په هغو مخصوصو کمپونو کی ځای ور کړی شوی څو د هغـــو اسانتیاؤ او مرستو نه استفاده وکړی شی چه دافغانی سری میاشتی ټولنی دهغـو ی دپـاره برابری کړی دی .

**د مرغومی ۲٦:**

دپاکستان دلاهور نه په یوه خبر کښـــی ویل شوی دی چه دپښتو نستان ستر مشر خان عبدالغفار خان پدی اتهام چه غوا ړ ی دبلوچستان د ځینو سیمو دکتنی له پاره لا ړ شی په لاهور کی دپاکستان دحکومت له خوا وگرزول شو .

وروستی خبرو نه وایی چه دپنجاب ا و پښتونستان زیات شمیر سیاسی او اولســی

مشران لاهور ته دپښتو نستان دستر مشـــر سره دکتنی دپاره ورځی .

بل خبر وایی چه دپښتو نستـــان ستر مشر دپاکستان‌دحکومت نه مطالبه کړی ده چه دپښتنو او بلوڅو د احوال د کتنی په غرض دهغوی سیمی وګوری او که دغه‌مطالبه قبو له نشی نو محبس ته دی ولیږل شی .

دپښتونستان ستر مشر خان عبدالغفارخان په‌پښتو نستان کی د او لس په خلاف‌دپنجابی پولیسو او قوماندانانو د مظالمو اوزور زیاتی شخه شکایت کړیدی اودغه عمل یی دسیاسی فضادزیاتی خرابیدو ستر عا مل بللـــــی دی .

د مرغومی ۲۸ :

په پاکستان کی حـــالات ورځ په ورځ خرابیږی اودپاکستان په مقابل کی دپښتنـو او بلوڅو مجاد لی خپل نظم او شکل‌نیسی، دا مجادلی روانی دی او هـره ورځ مخ پـه زیاتیدو او پراخوا لی دی .

دسلواغی ٦:

د رویتر نماینده خبر ورکړی چه د لندن ګاردین ورځپانه لیکی چه د پارلمان له لاری دهر ډول ارتباط او خبر ودپوره پریکیدولـه امله په بلو چستان کی وسلی ته دخپلواکی غوښتو نکو دلاس اچول یوه داسی چاره ده‌چه دوه تری نشی کیدای دګاردین نماینده ویلی دی په بلوچستان کښی دسر تیرو سیمو ته د خپل سفرپه وخت کی ماوکړای شول خبر لاس ته راوړم چه‌پاکستا نیو سلو زرو عسکرو چه ملته اچول شویدی ددغه ایالت زیاته‌برخه کلابنده کړی اود خوراکی موادو دبرابر و لو لاره یی په قبایلی خلکو بنده کړیده .

پدغه ریوټ کښـی د پاکستان په ملـی اسامبله کښی دیو مخالف ګوند د غړی شیر بازله خولی ویلی شویدی اوس دیو کـــال زیاته موده وشوه چه دپاکستان نظامی پوځونو هغه ټول واټونو بند کړی چه غرنیو سیموته تیر شویدی او هغو خلکوته خوراکی مواد نه ورپریږدی چه دقحطی سره لاس او ګـریوان دی .

په ریوټ کښی زیاته شویده هغه چه‌پخوا دسترو ګوند ونو یعنی دخلکود ګوند او دملی عوامی ګوند تر منځه دمقابلی په ډول پیـل شوی ؤ اوس له دی امله چه په پارلمان کښی داعتراض او دنظر د ځرګند ونی امکان نشته هره شیبه کیدای شی چـه قوی تـه د لاس اچولو سبب شی .

ریوټ زیاتوی د هغه سپین کتاب دادعاپه خـلاف چه د پاکستان حکومت په ۱۹۷٤ کال کښی خپور کړی ؤ ددغه ایالت دسیمـو د بمباری کولو د پاره د پاکستان د هوایـــی پوځونو له الوتکو څخه کار اخیستل شوی او د پاکستان دنظامی قوا ؤ کوماند وګانو پـه ولسی خلکو ګولی دی او پویسی عملیا ت

په پاکستان کښی‌د سیاسی مخالفینو سره د مقابلی دپاره یوه معموله وسیله ګڼله کیږی لکه‌چه څو میاشتی پخوا په بلو چستان کښی د ملی عوامی ګوند د سر منشی دکفیل‌میرعلی احمد کرد کورته پولیس ننوتل اوکوښښ یی وکړ چه یو ساعتی بم پکښی کیږدی .

پەدغه رپوټ کښیهغه فشا رو نەپەتفصیل سره بیان شوی چه د پاکستان حکومت وزسره مخامخ دی .

**دسلواغی ۹ :**

د ملی عوامی گوندرئیس خان عبدالولیخان دپاکستان دټولو مخالفو گوندونو په نمایندگی دچارسدی په تنگی نومی ځای کښی یوی ولسی غونډی ته په خپله ویناکښی دپاکستان حکومت ته اخطار ورکړ چه که هغه حکو مت درزغی لەلاریدپښتنو او بلوڅو حقوق ورنکړی نوولس بەخپل حقوق قوت واخلی .

هغەوویل دپاکستانحکومتچه په پښتونستان او بلوچستان کښی دملیعوامی گوند اوجمعیت العلمای اسلام گوند ونو اکثریت نه منی نو ځکه پښتانه او بلوڅ هم د پاکستان دواکمن پیپلز گوند اکثریت او حکومت نشی منلی.

دملی عوامی گوند مشر وویل دپاکستان حکومت د ولس په خلاف په سیاسی جگړه کښی سخته ماتی خوړلی ده او اوس په پښتو نستان او بلوچستان کښییوازی دپوځ اونظامی قوت په زور حکومت کوی .

**دسلواغی ۹ :**

د بلوچستان له کوټی ځخه په را رسیدلی خبر کی ویل شویدی چه په بلوچستان کښی دوطن پالو ټکوبند یانو سره دحکومتد ظلم اوتیریلەامله دبلوچستان ولسسخت پاریدلی دیاو دولسی غونډو پەترځ کښی دکرکی او نفرت څرگندونی کوی .

د پاکستان له کراچی ځخه په یوبل خبر کښی ویل شویدی چەپه هغه ښار کښی د ملی عوامی گوند جنرال سکرترښاغلی ریاض‌الحسن پولیسو دپاکستان دساتنی دقانون لاندی نیولی دی .

**دسلواغی ۱۰:**

دباندنیو چارو دوزارت نطاق دپاکستان د صدراعظم ذوالفقار علی بوټو دوروستی وینا په باب چه دافغا نستان حکومت یی دوران کاری او دسر تیرو دروزنی او پاکستان ته دعوی په لیږ لو تورن کړی ؤ دباخترآژانس دخبریال دپوښتنی په ځواب کښی وویل دابی اساسه او غلط تو رونه چه پخوا څوځله د افغانستان د حکومت لخوا رد شویدی یوځل بیا پەکلکه رد وو .

نطاق زیاته کړه چه دهغو تورونو بیابیا لګول اصلا نشی کولی دنړیوالو لەسترگو نه حقایق پټ وساتی .

نطا قڅرگنده کړه چه په بلو چستان او پښتونستان کی چاودنی او وران کاری په حقیقت کښی په خپله دښاغلی بوټو دحکومت اعمالو او گومارل شویو کسانو لخوا ددی لپاره کیږی چه له یوی خوا دافغا نستان حکومت ته دهغو په نسبت کولو سره د پاکستان د خلکو سترگی دکورنیو اقتصادی او اجتماعی مشکلاتو او کړ کیچو نو ځخه دباندنیو لاس وهنو بی اساسه ادعاگانو په لورواړوی او له بلی خوا ملی عوامی گوندد افغا نستان سره دهمکاری په تورنوم بدی کړی لکه چه ترننه پوری یی پدغه تاکتیک په زرگونو پښتانه اوبلوڅ په زوره اوبی د جرم له اثباته پەبند یخانو کښی اچولیدی.

نطاق وویلچه څه وخت مخکی دانگلستا ن

گاردین ورځپاڼې دد غه رازنه پرده لری کړه او نماینده یی چه پدی نویو وختو کښی بلو چستان لیدلی په بلوچستان کی دملی عوامی گوند دسکرتر جنرال ښاغلی میرعلی احمد کرد په کورکښی لاسی بم دایښودلو موضوع ښکاره کړه چه پاکستان پولیسو دده دنیولودپلمی په غرض ایښی ؤ .

د باندنیو چارو د وزارت نطاق په داسی حال کښی چه له افغا نستان سره یی دنیکو روابطو دټینګیدو او ددواړو هیوادونو تر منځ د سیاسی اختلاف د حل په غرض د خبرود پاره دښاغلی بوټودتیاری ښه هرکلی کاوه وویل لکه چه دافغانستان حکومت بیابیا اعلان کړی دی یو ځل بیاوایی چه ددواړو هیوادونو ترمنځ دیوازنی سیاسی اختلاف د حل په غرض دبی قیده او شرطه خبرو دپاره تیاریو او با ید و پوهیږو چه دیوی قضیی حل له ټولونه مخکی یوه ښه اومناسبه فضا غواړی متاسفانه د پاکستان دصدراعظم څرګندونی او دده د حکومت دګومارل شویو اعمال دغه ډول فضاء خړه پړه کوی .

## دسلواغی ۲۱ :

له پیښور نه د فرانسپرس د آژانس د خبر سره سم دپاکستان دخلکو دګو ند یـو ستر غړی ښاغلی حیات محمد خان شیر پاو د پیښور په پوهنتون کښی دیوه بم دچاودنی په پیښه کښی ووژل شو .

لکه چه څرګنده شوی ده ــ ددغی چاودنی په پیښه کښی اتلس تنه محصلین ژو بـل شوی اود پوهنتون ودانی ته زیات تـا وا ن رسیدلی دی .

د حیات محمد خان شیر پاو دوژلو د پیښی پسی د پاکستان حکومت د ملی عوامی گوند مشرخان عبدالولیخان او ددغه گوند ځینی نور شخصیتونه نیولی دی .

همدارنګه د پاکستان حکومت ملی عوامی گوند غیرقانونی اعلام کړی او ددغه گوندټولی شتمنی یی ضبطی کړیدی .

د خبر رسولو بین المللی آژانسو نو او د بی بی سی راډیو پرون وویل دهغو کسا نو په لړ کښی چه نیول شوی دی په پښتونستان کښی دملی عوامی گوند مربوط پخوانی گورنر ارباب سکندر خان خلیل دایالتی اسامبلی د رئیس مرستیال ارباب سیف الرحمن د ملـی عوامی گوند مرستیال ښاغلی رشید احمد ــ دملی اسامبلی غړی میجر جنرال جیـلانی او په بلو چستان اوسند کی دملی عوامی گوند ایالتی مشران هم شامل دی .

د فرانسپرس آژانس د ملی عوامی گوندد نیول شویو کسانو شمیر شپیته تنه ښوولی دی .

## دسلواغی ۲۱ :

د باندنیو چارو دوزارت داطـلاعات مدیریت خبر راکړ چه دافغانستان دحکو مت لـه خـوا دا اعـلامیه صادره شویده .

د پاکستان حکومت په هغه هیواد کښی ملی عوامی گوند غیر قانونی اعلام کړاو همدغـه رازئی ددغه گوندمشر ښاغلی خان عبدالولیخان او دهغه یو شمیر نور مشران نیولی او د گوند شتمنی یی ضبط کړی ده دپاکستـان د حکومت دغه اقدامات دښاغلی حیـات محمـد خان شیرپا دوژول کیدونه وروسته شویدی .

د افغانستان حکومت په داسې حال کښې چه دغه راز قتلونه اوتشدد په کلکه غندی دملي عوامي گوند دړنگیدو اودهغه دمشرانو دنیول کیدواو دگوند شتمنی دضبطولو پهباره کښې چه په غیر قانوني توگهاوېر ته دهیڅ ډول جرمي اثبات د سیاسي ملا حظاتوله مخې شوېدی دپاکستان دحکومت په اقداماتو باندې خپله ژوره اندیښنه اونگراني څرگندوی دافغانستان حکومت په کلکه عقیده لری چه دلانجو او ارول یوازی د پښتنو او بلوڅو خلکو دملي هیلو دپوره کیدواو هغو ته په درنه سترگه دکتواو ددوی د ملي مشرانو سره دخبرو لهلاری امکان لری اوپه لویلاس دنویو لانجو راپیدا کول دحالاتو دزیات کړکیچن توب اودحلدلاری دلټولودخنډیدلونه پرته بله گټه نلری ۰

**د سلواغی ۲۳ :**

ښاغلي اجمل ختك دپښتنواو بلوڅوله مشرانو سره دپاکستان دحکومت دوروستیو نا وړ و اقداماتو پهباب وویل :

د روان کال دسلواغي د میاشتي د یو ویشتمي نیټې په سحر د پاکستان راډ یو داخبر نشر کړ چېددغه ملك دمتحده جمهوري محاذ څخه دیو جماعت نشنل عوامي پارټي د سرلیډران ونیول شول چه یکي دپاکستانقومي اسامبلي کښې د حزب اختلاف لیډر او د نشنل عوامي پارټي رئیس خان عبدالو لیخا ن قومي او ایالتي اسا مبلو کي دنشنل عوامي پارټي وکیلان ،دسند ،پنجاب ،پښتو نستا ن او بلوچستان د صوبو رئیسان اوټوللیډران شامل دی ۰

ددی خبرته پس دپاکستان راډیو یو بل خبر خپور کړ پههغی کښی وویل شو چه پهنشنل عوامي پارټي باندی بندیزو لگیدد ددی حزب ټول دفترونه وتړل شول او دحزب ټول جایداد اوشتمني یې حکو متضبط کړ ل دی رادیو وویل :چه دا اقدامات دحیات محمدخان شیرپاو دقتل نه پسپه ټول ملك کښی دحفاظتی کوښښو نو پهلړ کښی و شول دپاکستان ټول وگړی اود نیا هر باخبر ه سړی په دی پوه دی چی کلهد پیپلز پارټي دملك په سیاست کښی را ننوتي ده او بیاکله چهدا پارټي حکومت ته رسید لی دهلـه هغـه و خت نهد پاکستان پهسیاست کی تشدد او سیاسي قتلونه شروع شویدی ۰

چاته نده معلومه چه د پنجاب یو مشهور سیاسی لیډر خواجه رفیق پسی د جیل نه قیدیان قاتلان راوستل شول او دی یې په رڼا ورځ دلاهور په ډك بازار کښی قتلکړ۰ خان دجماعت اسلامي یو رهبر ډاکتر نظیرچه خان دجماعت اسلامي یو رهبر ډاکتر نظیر چه په عین حال کښی د قومي اسامبلي وکیل هم و، دکرایی په قاتلانو د هغه په خپلـه معاینه خانه کښی په رڼا ورځ ووژل شو ۰

څوك ندیخبر چه دپنجاب ددیر غاز یخا ن دجماعت اسلامي یورهبر ډاکتر نظیر چهپه عین حال کښی دقو می اسامبلي وکیل همودکرانی په قاتلانو دهغه پهخپله معاینه خانه کښی په رڼا ورځ ووژل شوخو ډند ی پو ه چه دلاهو ر پنجاب یوز لمی سیاسي کارکن جاوید نظیر او یوبل مزدور لیډرعبدالرحمن پهڅه ډولاوچاقتل کړ ل ۰

دبلوچستان د پښتنو رهبر محمد صـــادق خان کاسی دخپل کور سره نژدی چا اوځنګه قتل کړی دټولو پښتنو ممتازه رهبر او سپین ږیری مشر عبدالصمد خـان اڅکزی په خپل کور کښی په خپله بستره کښی د چاد لاسه په څه شهید کړی شو . دبلو چستان په اسامبله کښی د جمعیت العلمای اسلام غړی مولانا شمس الدین دکومی پلمی له مخه دچا په‌منصوبه ګورته ولیږل شو دکوټی پــــــه بازار کښی زلمی محسن کاسی او عبدا لمنان دچاپه ګولیو غلبیل شول او اوس دلاهــــور په‌ښار کښی داستقلال دپارټی دلیډر احمــــد رضاخان قصوری پـلار نـواب احمد خان په خپل موټر کښی دچا دلاسه په وینوو لمبیدلو.

دغه شان دنیشنل عوامی پارټی په‌لیډر خان عبدالولیخان څلورقاتلانه حملو د مسلم لیګ دلیډر جـــودری ظهور الهی دقتل منصبـود استقلال پارټی دلیډر اصغر خان اوبل لیډ ر احمد رضا قصوری له وژلو کوښښونو څخه په پاکستان کښی څوك ندی خبر او خپـلـه دحکمران جماعت دننه‌چه‌کوم‌خونړی ی‌اختلا فات شته دی او دهغی په نتیجه کښی څه چه‌شوی دی له هغی نه څوك انکار کولی نشی . د پښتو نستان دپیپلز پارټی دټولونه فــعا ل مقبول او اولسی رهبر د دیره اسمعیل خا ن دحق نوازخان ګندا پورد قتلولو منصوبه چـا جوړه کړی وه او ددی زلمی دقتل پــــــــه تحقیقاتو چا اود کومی ویری لپاره پرده واچوله

د چار صدی دپیپلز پارټی سکرتر او ددیرد پیپلز پارټی سکرتر چا ووژل .ددی واقعا تو په باب چه د پیپلز پارټی مشرانو خپله ددی حزب په مخالفو لیډرانو الزامونه لګولی دید هغی څخه دپاکستان اخبارو ته ډك دی .

دپیپلز پارټی دننه خپل منځنی اختلا فات دومره زیات شویدی چه دپاکستان هر بازاراو هرکلی ترینه خبردی، ددی حزب پخوا نــی سکرتر جنرال په کور ددی پارټی د مشرا نو په سلا مشور مسلــح خلـــك ورغلل او دی یی زخمی کړو . ددی حزب بانی لیدر یــو پخوانی وزیردکراچی اوسیدونکی‌جیل‌ته ولیږل شو .هم ددی ،حزب نامتو رهبر دلاثیل پور پنجاب، مختار را نا سره لګه ددی دښمنانو د ظلم زور سلوك وشو او دخپل حزب پیپلـز پارټی دلیډرانو له لاسه په جیل کښی پروت دی . دغه شان په پنجاب کښی د پیپلـــز پارټی اساسی غړی دپیپلز پارټی دحکو متد غړوله لاسه وهلی ،او ښتولی‌او وشرمولی شو .

دا ټول داسی واقعات دی‌چه خپله د پیپلز پارټی دزمه وار ومشرانو له خولی د پاکستان په اخباراتو کښی شهادت مو جود دی.

ښاغلی اجمل خټك وروسته له هغه چه د شیرپاو دوژلوپه باب دپاکستان د تاریـــــــخ او اوسنی حالت په رڼا کی تفصیـلات ورکوی او دهغه مخالفین سره ددلایلو معرفی کـوی او دا ثابته‌وی چه‌دشیر پاوقتل دچاپه دسیسو صورت موندلی او دهغه دوژلونـه چـا نایده اخیستی ده په پای کی وایی .

نو په دی پس منظر کښی چه د پیپلز پارټی خپل یو لیډر قتل شو دوی له دا پـه کار وو چی په سره سینه یی د دی قتل په سبب او په پس منظر غور کـړی وای او د قـوم ولس ملکستیمی او خپل حکومت او خپلی پارټی د محفوظو لو لپاره یی د ملک سیاسی فضا نه د تشدد او قتلونو د دی خونړی لوبی د ختمولو اراده کړی وی او یو جمهوری عمـل یی پیل کړی وی او په دی طریقه یی د زلمی شتیر پاو دوینی نه د اولس د مستقبل د خوشحالی امـن استحکام او تعمیر کار اخیستی وای دا به شیرپاو سره د دوی په رښتیا د مینی، اخـلاص او ملکرتیا ثبوت شوی وی او که چیری دوی د دی خپـل ملگری وینه هم د خپل اقتدار د پاره استعمال کړی او د ده د قتل په بهانه د خپـلو سیاسی مخالفینو وهلو او ختمو لو ته لاس وا چوی او د ده وینه هم لکه چی د دوی عادت دی خپل داخلی او خارجی سیاست د بازار گرمولـو د پاره استعمال کړی نو له دی نه به پښتانه او بلوڅ او راتلونکی تاریخ د اسبق واخلی چی شیـر پاو غـریب هم د پاکستان د حـکو مـت د سیاست نه د اسی قربان شو لکه بدی نه مخکی چی د دی ځای یو پښتون رورو ډاکتر خـان صاحب قربان شوی وو او د دی به دا مطلـب وی چی دوی داور وژل نه غواړ ی بلـکـه د اور لمبه کول غواړی .

نیشنل عوامی پارټی خپله د ملک یوه داسی مهمه سیاسی پارټی ده چی د نیا ته د دی کردار معلوم شویدی او هم دانن د پاکستان په دوه ؤ صوبو کښی سیاسی قدرت لری او د پاکستان د نورو جماعتو لو سره په متحده جمهوری محاذ کښی ټولی ده او د ټولو د شریکی رهبری لاند ی د ملک جمهوری خدمت کوی . د دی پرځای چه د پاکستان حکومت د دغه قتل د پس منظـــر د معلومولو او په ملک کښی د سیاسی تشدد او سیاسی قتلونو مخنیوی لپاره د متحد ه مـــحاذ سره جـــر گـــه او مشــوره کــــړی وای د نیشنل عوامی پارټی خـلاف اقدامات کوی او د جمهوری محاذمری ته لاس اچوی او دا د دی معنالری چی حکومت د ملک د سالمیت خـــای خرابول او گډوډ ول غواړی .

آیا د دی هر خـه شاته به دا پروگرام نوی چه د پاکستان د کشتی کپتانان په دی پـوه شویدی چی دا کشتی دوی داسی ځای ته په خپل لاس رواستی ده چه اوس ډوبیږی نـــو غواړی چی د دی ډوبولو دالزام نه ځان وساتی او تاریخ ته د دی عمل کوم بل ذمه وار پیدا کړی.

دا اوس د پاکستان د اولس کار دی چی په سره سینه په روانو پیښو غورو کړی او د خپلی ډوبیدونکی کشتی د ترخه تقد یر حقیقی ذمه واران وپیژنی .

زه په دی وخت کښی پښتنو او بلو څو او هغو ټولو ملگروته چی دولی ځان او هغه سره د پارټی د نورو مشرانو په نیولو به خپه او غوسه شوی وی دا ویل ضروری گنم چی مونږ او تا سو خپل ژوند کښی ډیری داسی نازکی او مهمی مرحلی لیدلی دی منم چی دا مرحله د دی ټولو مهمه او نازکه ده او مخالفین به په دی مرحله کښی زمونږ پښتنو ته ډیر داموته ږدی خو مونږ او تاسو به حوصله کوو زمونـږ یقین دی چه لکه د دی نورو ټولو مرحلونه چی

كامياب تيرشوي يوډدي نازكي اومهمي مرحلي نه به هم انشا الله تعالى كامياب تيريږو خو لكه دنورو دغه شان مرحله باندي چه مونږ نه خپله حوصله پريښي ده نه خپل سياست. دغه‌شان به‌پدي موقع هم‌نه خپله حو صلــــه پريږدواونه خپل سياست او زمونږ مخا لفين چي زمونږ مخي ته هر شومره سياسي دامونه پدي مونږ به دهغي پروانه كوو او خپــــل منزل ته‌به پوره تيار او بيدار روان يـــو او انشأالله تعالى ور رسوبه .

**د سلواغي ۲۳ :**

د پاكستان د حكومت له خوا د ملي‌عوامي گوند دغير قانوني اعــلامولونه وروسته ددغــه گوند دمشعرانو او غړيو ډله ايزنيول كيدل په كلكه روان دي .

درويتر آژانس ددغه خبر د خپرولو په‌ترڅ كښي زياته كړيده چه دملي عوامي گوند د مشرانو په گډون دگوند خه زيات و كم‌دري سوه تنه غړي په تيرو دوو ورځوكښي‌نيول شو يدي .

دغه راز په پيښور كښي د ملي عوامي‌گوند په‌مربوطو ادارو تيري شوي او اور وراچول شويدي .

دپيښور څخه درويترنماينده خبروركړي چه دملي عوامي گوند په ادا روبر سيره پد غه ښاركي دنورومخالفو گوندونوپه مربوطو ادارو هم تيري شوي اوړنگي شويدي .

دغه حمله دپاكستان دحكومــت د هغـــو شرگندونو څخه وروسته شويده چه‌په هغوكښي يي مخالف گوندونه په تخريبي فعاليتونو تورن كړل .

**د سلواغي ۲۳ :**

دملي عوامي گوند د مشرانو په نيولو او هغه گوندپه‌غير قانوني اعــلامولو او سرمايه‌په ضبطولو سره دنړۍ ټول آزادي خو ښوو نكي او مبارزو ولسونه په زياته بيا بين الملـــلي منابع ډيراخواشين شوي دي اوبيله دجرم د ثبوت څخه ددوي بندي‌كول يي پر انساني او بين المللي حقوقواومقرراتو دپاكستاني حكومت يو بل تيري بللى دى .

**د سلواغي ۲٤ :**

دمسكو راډيو دايزو ستيا ورځپاڼي پــــه حواله خبروركړچه دتاس آژانس خبريال لـــه اسلام آبادڅخه ليكلي دي چه :

دپاكستان حكومت مخالف گوند يعني ملي عوامي گوند غير قانوني اعــلام كړي او دهغه ټوله شتمني‌يي ضبط كړي ده .

د مسكو راډيو زياته كړه چه دپاكستان حكومت دشيرپاو دوژلو دپيښي څخه دملـــي عوامي گوند د غير قانوني اعلامولو دپاره د پلمي په توگه كار اخيستى دى .

دغي راډيو دملي عوامي گوند دغړيود نيولو د خبر په ترڅ كښي وويل چه د ملي د مجلس درئيس مرستيال او دمجلس ځيني غـــړي نيول شوي او بنديان شوي دي او تر اوسه دنيول شويو كسانو په خــــلاف رسمي تورونه ندي وړاندي شوي .

دمسكو راډيو وويل :

كتونكي عقيده ښكاره كوي چه د شير پاو

له وژنې څخه به دپاکستان داوسنۍ رژیـــم دهر ډول مخالفت دنهایي ټکولود پاره کا ر واخیستل شي ۰

**دسلواغې ۲٤ :**

د پاکستان حکومت د حیات محمد خان شیرپاو دوژل کیدو اود ملي عوامي گوند دغیر قانونی اعلام کولو څخه وروسته دپښتو نستان ټو ل ښتونخې اوپو هنتو نونه تړلی دي.

دفرانسپر سس نماینده خبر ورکوی‌چه د پښتو نستان په ښاروناو کلیو کښــــی د پاکستان دحکومت طرفدارانو مظاهری پیـــل کړی دي ۰

درویټر دخبر سره سم تر بیگا پوری لږتر لږه دملي عوامي‌گوندځلور سوه ته غړی نیول شوی دي ۰

په اسلام آباد کښی مؤثقو منابعو ویلی‌دی چه دپاکستان دحکومت مخالفینو د ادعا سره سم تر اوسه پوری دملي عوامي گوند څه د پاسه زرتنه غړی او مـلاتړ کوونکی بندیان شوي دي ۰

رویټر خبر ورکوی چه‌د شیرپاو دوژل کیدونه وروسته دملي عوامي گوند دغړیو ډلهایزنیول دوام لری او ورمه ورځ ددغه گوند یو زیات شمیر نورغړی نیول شویدی۰

د بی‌بی‌سی راډیو دسلواغې د دوه ویشتمې نیټې په ماښام خبر ورکړی دی چه دشیرپاو دوژل کیدو په تورد پاکستان‌د حکومت له‌خوا دمجلس وکیـلان او د ملي عوامي گـوند نور مشران نیول شوی دی ۰

بی‌بی‌سی زیاته کړه چه په تیرو دریو کالو کښی حالات هیڅکله دو مره سخت شوی نه وو ۰دحکومت دگوند طرفدارانو په زیاتـــو ښارونو کښی مظاهری پیل کړی دی ۰

**په پیښور کښی پنځه زرو کسانو دملــی عوامی گوند په اداره حمله وکړه او هغه یی ونیوه اوړنگ یی‌کړه.**

د بی‌بی‌سی راډیو وویل چه د خلکو دگوند ملاتړ کوونکوهمدغه رازدنورو مخالفو گوندونو په ادارو هم‌حمله کړی اوځو مغازو ته یی‌اور اچولی دی ۰

بی‌بی سی زیاته کړه چه په مشرانو جرگه کښی دملي عوامي گوند د نمایند گانو مشــــر ښاغلی هاشم غلزایي او څه د پاسه دری سوه‌تنه نور نیول شوی دی ۰

د پاکستان حکومتي مامورین اوس د ملي عوامي گوند د مهمو دریو تنو مشرانو ډاکتر عبدالحی بلوڅ سناتور عبـــدالوحید کر داود ښاغلی زمرد حسین دنیولو په لټه کښی دی۰

د بی‌بی‌سی دخبرسره سم‌یو شمیر کتونکی عقیده لری چه د پاکستان دحکومت دغه چال چلند به ددی سبب شي چه یوزیات شمیرخلك به د دولت په ضد په وسله واله مبارزه‌لاس پوری کړی ۰

**دسواغلی ۲٦ :**

داســلام آباد نه درویټر نماینده خبر ورکړ چه د پاکستان حکومت دهغه هیواد د ملـــی اسامبلی دنامعلو می مودی دځنډ ولو وروسته‌د پاکستان دسنا مجلس‌هم دنا معلومی مود ی پوری وځنډ اؤ ۰

**دپاکستان دحکومت دغه اقدام دهغه هیواد** د پارلمان سره دمخالفو گوند ونوله پریکړی وروسته شویدی ٠

زویتر زیاتوی چه مخالفوگوند ونو د ملی عوامی گوند د مشر خان عبدا لولیخان او د هغه گوند دیو شمیر نورو مشرانو دنیولو په خلاف د اعتراض په‌نامه دغه پریکړه کړیده٠

دروېتر نماینده زیاته کړه چه دپاکستان د ملی اسامبلی سره دمخالفو گوند ونو دپریکړی نه‌وروسته دپاکستان حکومت دری لایحی په ملی مجلس باندی چه یوازی دخلکو دگوند غړی پکښی حاضروو تصویب کړی ٠

دلومړی دوولایحو سره سم دملی اسامبلی اوایالتی اسامبلو غړی ددغی اسامبلی د غونډونه دوه اوونی دمخه اود وه اوونی په وروسته موده کی دتوقیف کیدلو د مصئونیت دحق نه بی‌برخی شوی اوپه‌دی ډول دپاکستان حکومت کولی شی ترنورو دولسو ورځو پوری دملی اسامبلی اویاد ایالتی اسامبلی هر غړی چه وغواړی توقیف کړی ٠

ددریمی لایحی‌سره‌سم دپاکستان‌حکومت له دی وروسته مکلف نه دی چه د اضطراری حالت اوږ دوالی لکه څنگه چه دمخه دهغه هیواد اساسی قانون حکم کاوه دهرو شپږو میاشتو څخه وروسته ملی اسامبلی ته وړاندی کړی٠

دغه لایحه څرگند وی چه اضطراری حالت به‌ترتله په‌پاکستان کښی ټینگ وی اوهغه وخت به له مینځه ولاړشی چه دپارلمان دواړه مجلسونه هغه په یو گډه غونډه کښی په یو واحد فیصله لیك کی‌تصویب‌کړی‌همدارنگه‌دغی لا یحی دپاکستا ن حکو مت ته واك ورکړ یدی چه دپاکستا ن د خاوری دتمامیت او د ملی حاکمیت په ضد په فعالیت تورن کسان دیو نا معلوم وخت پوری‌په بند کی وساتی ٠

د پاکستان په حالاتو تبصره کوونکو ویلی دی چه دمخالف سترگونددړنگیدو دا ولسی جرگی او دمشرانو جرگی دنا محدوده څنډیدل دټولو اختیار اتو په لاس کښی نیولو او په هغه هیواد کښی د اضطراری حالت‌د دایمی اوږد والی څخه وروسته د پاکستان حکو مت یو مطلق العنان حکومت شوی دی ٠

**دسلواغی ٢٦:**

پېښو ر نـه بـا ور ی‌منا بعود ښاغلی حیات محمدخان شیر پاو دوژلو په علتونو باندی تبصری په ترڅ کښی وویل : لکه چه معلومه شویده ښاغلی شیر پاو د پېښور دپوهنتون د تاریخ دڅانگی دنوی امر په‌بلنه ددی څانگی غونډ ی ته‌چه‌په هغی کښی یوازی دخلکو دگوند غړیو گډون درلود تللی ؤ دغه شخص چه عبدالحمید نومیده او دپاکستان دخلکو گوند یو فعال غړی ؤ نوی دتاریخ دڅانگی دآمر په حیث ټاکل شوی ؤ.

دشیر پاو له وینا او د مکروفون له مخ نه دده دلری کیدو وروسته دده نه یو ښتنه وکړه گله چه شیرپاو مکروفون ته‌نږدی شو او د پوښتنی ځواب ئی ووایه بم وچاودید بدی پیښه کښی عبدا لحمید هم ژوبل‌شوی‌ؤ٠

د پاکستان حکومت لومړی ژوبل کسان ملکی روغتون ته بوتلل خو وروسته عسکری روغتون ته بوتلل شول ٠

دنوای وقت ورځپاڼی دفبروری په لســمه ورځ خبر ورکړ چه عبدا لحمید اوپرو فیسر جان محــمــد لهخطر نه وتلی دی او حا لت ئــــی بنــه دی هـــمدغه راز دمشـــر ق او پاکستان ټایمز ورځپاڼو په همغه نیټهخبر ورکړ چه ټپیان د خطر نه خــلاص شوی او وحالت یی ښه دی اود پاکستان رسمیمقاماتو وړمه ورځ په ناڅاپی ډول اعــلان وکړ چه د ټولو ټپیانو دډلی څخه دپیښور دپو هنتو ند تاریخ دځانگی امر همغه عبدا لحمید او همغه ځوك چه شیرپاو ئی غونډی ته دمکرو فونتر څنگ په وروستی، گړی اوبم تهنژدی بللــــی ؤ مړه شول .

منابعو وویل :چهدا پیښه دپاکستان دپخوانی صدراعظم لیاقت علیخان دوژلـــو داستان او د همغه دقاتل دمینځه تلل په یادوی لکه څنگه چه دلیاقت علی خان قاتل له ځان سره ډیر معلومات او رازونه قبرته یووړل دعبدا لحمید له اسرار وډكله مینځه تلل هم ښیئی چهښایی همغه هم دشیر پاو دوژل کیدو دخر نگوالی په باب زیات معلومات اواسرار دتلدپارهلهځان سره وړی وی .

دیو بل خبر له مخی دتاس نماینده داسلام آبادنه خبرور کړی دی دملی عوامی گوند د فعالو غړیو نیول کیدل چه پدی وروستیــــــو وختونو کښی منع اعلامشوی پهپاکستانکښی دوام لری کهڅه هم ددغو نیولو په بارهکښی کوم رسمی رپوټ نشته سره له دی هــــم خارجی خبر لیکونکو وویل: نژدی څلور سوه تنه او دڅینو رپوټونو له مخی ترزروتنوپوری دملی عوامی گوند څخه نیول شویدی .

دغه نیول کیدل د حیات محمد خان شیرپاو په وژلو کښی دملی عوامی گوند دلاسلرلوپه پلمهشویدی مظاهرهکوونکو دملی عوامی گوند مربوطه دشهبازورځپاڼی اداره وسیځله .

د بیبیسی راډیو دپاکستان په اوسنیـــو حالاتو دتبصری په ترځ کښی وویل چه دملی عوامی گوند دمنع کولو په باب دپاکستان د حکومت وروستی اقدامات او دهغه دمشرانو بندیانولو پههغه هیواد کښیحالات ډیر زیات گیوډ کړیدی .

دغه اقدامات بهپه پاکستان کښی دیولړ نورو ناراميواو زیاتو گیوډ یوپیل وی .

بیبیسی زیاته کړه چه پاکستان یوډیـــر خطر ناك بحران ته رسیدلی او د ملی عوامی گوند دړنگیدلو او دپاکستان د حکومتلخـــوا دهغه دمشرانو د نیول کیدلود خلکو دگونداو دمخالفو گوندونو ترمنځ یوهډیره زیاته لانجه پیدا کړیده د حکومت او دخان عبدالو لیخان ترمنځ دلانجی مسئله پاکستان ته سترهمعضله ده .

**دسلواغی ۲٦ :**

دهغو کړ کیچنو او د تشدد نه ډکو حالاتو لهمخی چهپه پښتونستان کښی روان دی اود افغانستان دخلکو دزیاتی اندیښنی اوخواشینی سبب شویدی دافغا نستان جمهوری دولتد پنجشنبی په ورځ دغه اعــلامیه نشر تــــــه وسپارله .

د افغانستان جمهوري دولت سره له دی چه له یوی خواهر ډول وژنی او تشدد غندلی او غندی یی له بلـی خـوا دپښتنو اوبلوڅو خلکو په مقابل کښی دپاکستان دحکـومت د ظلم نه ډکغیر عادلانه او غیر دیمو کراتیك حرکتونه په تیره بیا په پښتو نستان کښی د هغه حکومت سخت او نا عاقبت اندیشانـــه حالت هم په کلکه غندی او دهغو دهر ډو ل خطر ناکو عواقبو مسئول یوازی او یوازی د پاکستان حکومت بولی او څرگند وی‌چه باید د پاکستان واکمن پوره پوره پوه وی چه نه یواځی دپښتنو او بلوڅو حقه حقوق پدغه‌ډول دسیسو او ساخته کاریو او له ظلم اوتشدد نه ډکو حرکتو نو له منځه نشی تـلای بلکه دغه حرکتونه به ورځ په‌ورځ دخلکو دکرکی حس لاپسی زیات کړی ددوی‌قدرت او تصمیم ملی مقاومت او مجادله به زیاته او پیاوړی کړی ·

لکـه چـه په واروار څرگنده شویـده بیا اعـلام کیږی چه افغا نستان دپخواپه شـــان دپښتنو او بلوڅو ورونو دحقه حقوقو تائیداو مـلاتړ کړی او کوی یی او ددغو پیښو په مقابل کښی چه په‌هغو سیمو کښی کیږ ی محض‌بی تفاوته نشی پاتی کیدای ·

**دسلواغی ۲٦ :**

دلا هور نه دروبتر نماینده دخبر له مخی‌د پاکستان ستری محکمی وړمه ورځ موافقـــه وکړه چه‌دملی عوامی گوندد‌مشر خان عبدالولی خان عبدالولیخان تیره اوونۍ دملی عوامی

خان عبدالولیخان تیره اوونی دملـی عـوامی

گوند دځه پاسه څلور سوه نورو مشرانو او غړیوسره دحیات محمد خـــان شیرپاو دوژل کیدونه وروسته د پاکستان حکومت نیولـی دی ·

رویټر خبر ورکوی چه دملی عوامی گوندد مشر دخوشی کولو غوښتنه د مخالف گوندیوه سیاست مدار ملـك غلام جیلانی وړاندی‌کړی ده ·

محکمی ددغی غوښتنی داوریدلو د پاره د راتلونکی دو شنبی ورځ ټاکلی ده·

**دسلواغی ۲٦ :**

دباندنیو چارو دوزارت‌نطاق دبا ختر آژانس دخبر یال دیوی پوښتنی په ځواب کښی د امریکا دای ــبی‌سی دتلویزیون ســـره د پاکستان دصدراعظم ذوالفقار علـی بوټـو د وروستی مرکی‌په باره کښی چه په هغه کښی یی ادعا کړی ده چه دافغا نستان پـــــه پاکستان کښی پـه دهشـــت اچـولو لاس لری وویل لکه چه څوڅو ځله موویلی دی یوځل بیا دغه بی اساسه اوله حقیقتـــه لری تورونه په کلکه ردوو ·

ښاغلی بوټو نه شی کولای د پاکستان د حالاتو دگډوی‌اوخرابی مسئولیت ددی‌دجابرانه حکومت داعمالو او دده دگوند د همکار انو او اعمالو د خرابکاری او فتنی اچول دنورو په غاړه واچوی نطاق په پای کښی زیاته کړه‌چه په تیره بیادافغانستان په باب دښاغلی بوټو د حیرا نوونکو اوبی ربطه وینا او حرکا تـــو ځخه دا نتیجه په‌لاس راځی چه له‌بده مرغـــه ښاغلی بوټو‌په خپلو اعصابو کنترول له لاسه ورکړی دی ·

## دسلواغی ۲٦ :

داسلام آباد نه دپراودا خبریال خبر ورکړی دی چه دپاکستان دټولو مخالفو ګوند ونو نمایندګانو تصمیم نیولی دی چه دملی عوامی ګوند دړنګیدلو اوددغه ګوند د مشرانو د نیولو په خلاف داحتجاج په نامه دملی اسامبلی په کار کښی ګډون ونکړی ۰

همدغه راز د غوګوند ونوپه اساسی قانون کښی دهغه بدلون دتصویب په خلاف چه د ملی اسامبلی لخوا شوی احتجاج کړیدی ۰

دغه بدلون حکومت ته واك ورکوی چه په هغه هیواد کښی اضطراری حالت دپالمان له اجازی پرته په خپله خوښه اوږد کړی ۰

پدی مناسبت دپارلمان اجلاسیه دوره دیوی نامعلومی مودی دپاره ځنډول شوی ده ۰

دپراو دا نمایندهلیکلی دیچهدیمو کراتیکی متحدیجبهی دلاربښودنیجرګهګیچهاووه مخالف غړی یکی شامل دی دخپلو سیاسی مخالفینو دټکولو دپاره یی دپیښور دوروستی پیښی نه داستفادی دپاره دحکومت کوښښ وغانده ۰

دی جرګهګی وویل حکومتی مقامات غواړی چهمخالفین په زوره غلی کړیاو وا کمن ګوندیی په پیښور او نورو ښارونو کښی د مظاهرو په لمسو ن تورن کړ۰

ددی جرګهګی په قول دا مظاهری نهیوازی دملی عوامیګوند په ضد دی بلکه دټولومخالفو ګوندو پهضد دی۰

دپراو داد نماینده دخبر له مخیدپاکستان په بیلوبیلو ښارونو کښی دمخالفو ګو ندونو پهمربوطو مغازو کورونو او ادارو حمله شویده۰

## دسلواغی ۲۷ :

دروییټر نماینده له لاهور نهخبر ورکړی دیچهدپنجاب پهمقننه اوایالتی مجلس کښی دمخالفو ګوندو نو غړ یو څرګنده کړه چهدملی عوامیګوندلهړنګیدلواودهغه دمشرانوپه توقیف کیدوسره داعتراض پهنامه به ددغهمجلس په غونډو کښی ګډون ونه کړی۰

دمخالف ګوند مشر علامه رحمت الله ارشد وروسته لههغه چه دمخالفو ګوندونو غړیود پنجاب دمقننه مجلس غونډه پری ښوده وویل: ددوی دااقدام دپاکستان دملی اسامبلی او سنا دغونډو سره دمخالفو ګوندو نو د پر یکړی دهمدردی پهنامه شوید ی۰

ده وویل چه حکومت دمخالفینو او دآزادی دنظریو څرګندولو په ضد په یولړ غیرقانونی اقداماتو لاس پوری کړی او د حکو مت مقصد دبیان دآزادی پوره محوه کول دی ۰

پیښور نهباور ی رارسیدلی خبرونه وایی چه پرون په پیښورکښی دګوایی ددروازی نه د باندی دسر حد ددارالعلو م زده کوونکوستره غونډه وکړه اوغوښتل یی چه دملی عوا می ګوند دړنګیدو اودهغه دمشرانو د توقیف په ضد داعتراض پهنامه پراخی مظاهری په د غه ښارکښی وکړی وسله والو امنیتی قو اوو د مظاهرو مخهونیو له اوپه زیاتره ا خو ډب کښیچه وشو څوتنه ټپیان او دپو لیسولهخوا پهدینی آثار وباند ی‌تیری وشو ۰

دغو منابعو زیاته کړهچه دملی عوا مـی ګوندله. ړنګو لو اودهغه دمشرانو له بندی کولووروسته ددوی کورونه د پاکستان پهره

برخه‌کښې امنیتي قواوو کلابند کړی او دکلکي څارنې لاندې يې نيولی دی.

له دې امله دپښتنو اوبلو څو دځینـــو مشرانو او دهغو په جمله‌کښې د خـــان عبدالغفار خان دسرنو شت په باره کښې باوري معلو مات لاس ته‌ندی راغلي اوځرګنده شوې‌نه ده‌چه ایا هغوی هم نیول شویدي‌که‌په خپلو کورونو کښې‌نظر بند دي.

دمسکو درادیوخبر ور کړ چه دمسکو د پراوداور ځپاني په هغه مقاله کښې چه پـــه پاکستان کښې دتو قیفو نو په‌نامه پرون‌خپره کړی لیکلي دي‌چه دملي عوا مي ګونددمشرانو دنیول‌کیدو وروسته ددغه ګوند دپیر اوانو د تعجیز دپاره په ټول پاکستان کښـــــې مصنوعي مظاهري ترتیب شوی ملکه چه خلکو دګوندپیروانو دملي‌عو امي ګوند داور ګا ن شهبازوور ځپاني‌اداره او دهغه ځیني نو ر ی اداري خرابي کړیدي- همدارنګه په پښتونستان کښې‌يې تعلیمي موسسې‌تړلې دي چه‌په ۱۹۷۰ کال کښې ملي عوامي ګوند دهغه دقانو ن جوړولو په مجلس کښې اکثریت لاس تـــه وروړی وواو په ۱۹۷۳ کال یې دهغه حکومت‌په لاس‌کښې وو.

پراوداليکلي دي چه‌د تقنينيه مجلسو نو وکيلانو‌په هغو لايحوسخت اعترا ض‌کړیدي چه دخلکو دبندي کـولو او داضطراري حالت د اوږدولـــو د پــاره پـــه دې وروستيـــو وختونو کښې حکـومت تصو يب کـړي دي اومرکزي حکو مت يي دديمو کراسي‌په‌کار کښې دتقلب درسمي کو لو په لار کښې‌په‌هلو ځلو تورن کړی دی.

پراو دا زیاته کړیده چه د پاکستان‌په‌ملي مجلس کښې ددغو لایحو دتصویب‌په وخت کښې وسله والونظامي پوځونو دمجلس ودانۍ محاصره کړې وه.

**دسلواغې ۲۸ :**

لکه‌چه درويتر اوبي‌بي سي نمايند ګانود اسلام‌آبادنه‌خبر ور کړی او دپاکستان راډیو هم‌هغه تایید کړیدی دهغومصنو عي مظاهرو په‌لړکښې چه‌د څو ورځو څخه راهیسې د ـ پاکستان حکو مت اودخلکو دګوندکارکوونکو دهغه هیوادپه‌بیلو بیلو ښارونو کښې پیل کړیدي وړمه ور ځ‌په اسلام آباد کښې‌د ـ افغانستان دجمهوریت لوی سفار ت نه نژدې څه زیات اوکم دوه سوه تنو غونډه وکړه او دافغانستان په‌ضد شعارونو دورکو لووروسته يې ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلي محمـد داوداودهغه دصدرا عظمي میر من‌اندراګاندي لوی‌عکسونه وسیزل.

دغوخلکو هڅه وکړه ـدملي عوامي ګونداو دهغه دمشرانو څخه دافغانستان دملاتړ‌په‌ضد داعتراض په باب یو لیك دافغانستان لـوی سفارت ته ورو سپاري خو دافغانستان‌دسفارت شارژ دافیر دلیك داخستلو نه ډډه‌وکړه.

دبانیدنو چارو دوزار ت نطا ق دبا ختـــر آژانس دنماینده دیوی پوښتني په ځواب‌کښې پدغه باب‌وویل : دباندنیوچارو دوزارت سیاسي لوی‌مدیرښاغلي عبدالصمد غو ث پرو نډغرمې نه‌وروسته په دري نیمو بجو په‌کابل کښې‌د پاکستان لوی‌سفیر ښا غلي علي ارشددباندنیو چارو وزارت ته‌وغو ښت ددې پیښې پـــه

نسبت یی دافغانستان دحکو مت سخــــت احتجاجیه لیك وروسپاره.

همدارنګه نطاق زیا ته کړه چه دافر مایشی مظاهری په هیڅ ډول نشی کو لی د پښتنواو بلوڅو ورونو دحقه حقوقو دمـــلاتړ په باب د افغانستان په دریځ کښی کو مخلل پیښی کړی.

**دسلواغی ۲۸ :**

دکورنیو چارو دوزارت اعلامیه : په اسلام آباد کښی د افغانستان دجمهوری دولـــت د لوی سفارت په مقابل کښی دفرمایشی مظاهری دخبــرو دخپــریـــدو وروستــــه د پــــرون ورځی راهیسی دهیواد په بیلو بیلوښارونو کښی دافغانستان وطن پالو نکو خلکو غوښتل چه د پاکستان دحکو مت په خلاف په پراخو مظاهرو لاس پوری کړی چه حکو مت دهغو مخــــــه ونیوله.

دکورنیو چارو وزار ت دخو ښی پــــه څرګندولو سره دګرانو وطنوالو ددغو ژوروا و پاکو احساساتو څخه تشکر کو ی اودغــــه ډول عکس العمل چه زمونږ دخلکو درښتینی درك څخه سرچینه اخلی چه دګران افغانستان په ملی مسالو اوپرمختګ کښی دیووالی او ملاتړ دا ثبات یوه بله ښه بولی.

**دسلواغی ۲۸ :**

لندن ډیلی میل ورځپاڼی لیکلی دی چه د ملی عوامی ګوند دړنګولو او دهغه دمشرانو توقیف کولو په با ب دپاکستان د حکو مت تصمیم دپاکستان دزیا تی تجز یی و یره پیداکړیده ورځپاڼه وایی چه په ۱۹۷۱ کــال کښی د بنګله دیش بیلید ل هم دشیخ مجیب الرحمن دعوامی لیك دړنګیدلو او دهــغه د ــ مشرانو دتو قیف کید لو نه وروسته شوی ؤ.

دډیلی میل ورځپاڼی زیاتــه کــړیده چه د پاکستان حکو مت دوینا په خلاف چه و یلی یی دیدملی عوامی ګوند دړنګولو مقصد د ــ پاکستان دخاوری دتمامیت ټینګښت دی .

خان عبدالولیخان تل ویلی وو چه دملــی عوامی ګوند دمنځه وړلو دپاره به هر ډو ل هلی ځلی دپاکستان دتجز یی سبب شی نه دا چه دهغه موجودیت ته به دوا م ورکړی .

**دسلواغی ۲۸ :**

دپیښور خیبرمیل انګلیسی ور ځپاڼی خبر ورکړی دی چه دپیښور دپوهنـــتون رئیس ښاغلی عبدالعلی خان دملی عوامی ګو ندد ړنګیدو اودهغه دمشرانو دنیول کیدو پــــه خلاف داعتراض په نامه دخپلی و ظیفی نه استعفا ورکړیده.

دغی ورځپاڼی همدارنګه لیکلی دی چه د پاکستان حکو مت ددغه پوهنتو ن پښتانه پروفیسران او اداری امران بندیان کړیدی چه په هغوی کښی درياضياتو د پو هنځــی رئیس ډاکټرنذیر چه پخوا دپیښور دپو هنتو ن ــ کنترولرو دپیښور دښاتګی رئیس ښـــا غلی پریشان خټك اداری لوی امر ښا غلی اعظـم خان او دپوهنتون درئیس مرستیال ښاغلــی فقیر محمد خان شا مل دی.

ددغو شخصیتو نو په نیو لو سره چه هیڅ یویــی هــم د ملی عوامی ګـوند غــړی ندی

د پاکستان حکومت ښودلی چه برسیره بـر پښتنو،میا ستمدارانو اوز لمیانو اومحصلینو یی‌فیصله کړیده چه پښتانه‌پوهان‌اوپروفیسران هم بیخی له‌صحنی وباسی ۰

**دسلواغی ۲۸ :**

دباندنیو چارو دوزار ت نطا ق دپاکستان دباندنیوچارودوزارت دنطاق دپرونی دغی وینا په‌باب‌چه‌په هغی کښی دافغانستان په‌حکومت باندی دسرتیرو دروز نی اولیږلواو دهغــــه هیوادپه‌کور نیو چارو کښی دلاس وهنی تور لګولی دی دباختر آژانس دنماینده دپوښتنی په‌ځواب‌کښی وویل :دپاکستان حکو مت ددغو بی اساسو اوله حقیقت نه لری تورونو پــه وړاندی کواو سره غوا ړی دیوی خواد ملی عوامی ګوند او دهغه دمشرانو په‌خلاف دخپلو غیرقانونی اقداماتو دپاره پلمه جوړه کړی او دبلی‌خوادحیا ت محمد خان شیرپاو دو ژلـــو حقایق دنوروز سیاسی قتلونو دحقایقو په‌شان چه‌تراوسه شویدی دپاکستان او دنړی دخلکو له سترګونه پټ وساتی اوهغه د خـــارجی خیالی‌خطر ونو لور ته واړوی۰

نطاق‌زیاته کړه څرنګه چه‌په پاکستان‌اود نړی په مطبوعاتو کښی دذوالفقار علی بوټو دحکومت دغیر دیمو کرا تیکواقداماتو په‌خلاف دوینبو اوبیداروټوتونو اودخلکو عکس العمل ښودلی دی نو هیڅوك ددغه حکو مت پـــه فریبونو اودسیسونه غولیږی ۰

دغه‌راز دشیر پاو دوژلو حقایق اودهغه علتونه اوعاملین به هم چه تریـوی انـدازی پیژندل شویدی داوږدی مودی دپاره دنړی دخلکو دسترګونه به پټ پاتی نشی ۰

**دسلواغی ۲۹ :**

دلندن ټایمز ورځپاڼی پـه هغـو وروستیـو جریاناتو باندی دتبصر ی په تر څ کښی‌چه په‌پاکستان کښی پیدا شوی لیکی چه‌په ـ راتلونکو میاشتو کښی به‌په پاکستان کښی ډیرسخت اولاپیچلی بحرانونه پیدا شی۰

لندن ټایمز دملی عـوامی ګوند ړنګیـــدو اودهغه دمشرانوبندی کیدو ته په اشاره‌سره لیکلی دی‌لکه چه معلو میږی دپاکستان حکومت له‌خپلو سترو‌سیاسی مخا لفینو سره پدی‌امید دپخلاکیدوله پالیسی څخه لاس اخیستی‌دی‌چه دمخالفو ګوند ونواو دهغودلیډرانو په‌خـــلاف کلك اقدامات په پښتو نستا ن او‌بلوچستان کښی دسیاسی کراری سبب شی په‌یقین‌سره به‌په راتلونکو میاشتو کښی اختلا فونواو کړکیچونو ته لمن وهل دهغه څه په خـــلاف نتیجه ورکړی چه دپاکستان حکو مت یی تصور کوی او بحرانونه به لاپسی سخـــت شی۰

دغه‌راز له‌کراچی څخه دراسیدلی خبرله‌مخی دبلوچستان دکوزنیو چارو پخوانی و زیراود ملی‌عوامی ړنګ‌شوی ګوندغړی ښا غلی‌میرګل خان نصیردپاکستان‌دیوی محکمی لخوا پـــه یوولس کاله‌بند محکوم شوید ی ۰

دده په‌خلاف‌لګول شوی تور داووچه پــه ۱۹۷۳ کال کښی دپاکستان دیوی بندیخانی بندیان الی‌کو لی ته لمسو لی دی۰

خبر زیاتو ی چه له دغی نیټی څخه‌ترنن پوری هغه تور چه دهغه په اساس ښاغلی

میرگل خان نصیر په زندان کښی اچول‌شوی وندی معلوم شوی.

**دسلواغی ۲۹ :**

دبین المللی آژ انسونو نمایندگانو لـه راولپنډۍ څخه خبر ورکړیدی چه دپاکستان راډیوپرو ن سهار وویل چه‌په پښتو نستان کښی محلی حکو مت ړنګ شوی‌اودهغه‌ټول صلاحیتونه او وظیفی فیدرالی حکومت‌مستقیما په‌لاس کښی نیولی‌دی .

ددغه ایالت‌گورنرته هدایت ورکړشویدی چه‌دمرکزی حکومت‌په‌نمایندگی دټولوچارو واگی په‌لاس کښی و نیسی ددغی‌اعلا میی له مخی دایالتی حکو مت‌صدرا عظم او وزیران‌سرله پرون‌څخه دحکومتی وظیفواوصلاحیتونو له‌اجرا کولوڅخه گوښه کړای شوید ی .

اعلامیه وایی دهغوحالا تو کنترو ل چه‌پیدا شوی دایالتی حکومت له‌صلاحیت او قدر ت څخه وتلی کاردی اوپه خوتیرو میاشتو کښی دپاکستان خلك دپښتونستان دحالاتو په‌نسبت له‌اندیښنی اوپریشا نی سره مخا مخ‌وو.

**دسلواغی ۳۰ :**

ایکا نومیست نومی انگلیسی نامتـو مجلی پخپله وروستیۍ گڼه‌کښی دپاکستان په‌حالاتر دتبصری په ترڅ کښی لیکلی دی چه دپاکستان حکومت دملی عوامی گوند دړنگولو او دهغه دمشرانو دنیولو دپاره هیڅ‌ډول مستند دلیل وړاندی نکړای شوکه څه هم دپاکستان‌حکومت وویل هغه‌وخت رارسیدلی دی چه دپاکستان دښمنان له منځه یوړل شی خو حقیقت‌دادی‌چه هغه‌کسان چه حکومت یی دپاکستان دښمنان بولی په‌حقیقت کښی دخلکو دگوند ستـــر رقیبان دی چه دغه دی ټول یی زندان ته‌لیږلی شوی دی.

مجله لیکی‌حکومت‌حیات محمدخان شیرپاوددی دپاره دپښتونستان دایالت په وزارت ټاکلی ؤچه‌دغه ایالت دخلکو دگوند دعملیاتوډ گـــر وگرځوی اوهغه زیات نفوذ چه ملی عوامی‌گوند هلته درلود اوپه‌پښتونستا ن کښی د خلکود گوند دکنترو ل خنډ وله‌منځه یوسی او کهڅه هم‌شیرپاو ددغه مقصد دپاره له سخت‌زوراو سخت چلندنه کار اخیست خوخرگندیږی هغه چه‌ده په‌ژوند کښی‌سر ته ونه رسولای شول‌په خپل‌مرگ سره یی پوره‌کړل .

لکه چه دپاکستان حکو مت دده دوژل‌کیدو په‌پلمه ملی‌عوامی گوند ړنګ کړ اودهغه‌ټول مشران یی‌بندیان کړل.

دایکانومیست مجلی تبصره کړیده چــه له هغه‌وخته‌چه دپاکستان موجوده‌حکو مت اقتدار ته‌رسیدلی دی دمخالف گونددلسو څخه زیات مشران وژل شویدی اوتردی چه په خپله په خان عبدالولی خان خوځله ناوړه قصد وشو .

دپاکستان حکومت‌نه‌یواځی داچه ددغووژنواو ناوړه قصدونو په مقابل کښی‌هیڅ ډول عکس العمل ندی ښودلی بلکه یوتن یی‌هم دهغوی دمسوولیت په‌جرم نیولی نه دی .

مجله وایی چه دشیر پا ووژل کید ل پـه پښتونستان او بلوچستان کښی د حکومـــت اودملی عوامی گوند تر منځه درو غی جوړی هرډول امکان په راتلونکی نژدی وخت کښی له‌منځه وړی دی.

په بلوچستان کښی دپاکستان نظامی پوځونو په‌وروستیو دوو کلونو کښی دسر تیرو سره

پەمبارزه بوخت دی اوهلتەدملی عوامی گوند مشران له ۱۹۷۲ کال نه راپدی خوابندیا ن دی.

دایکانومیست مجله په پای‌کښی دی‌نتیجی تەرسیدلی ده چه دملی عوامی گوندپاتی‌غړی بەټول‌دځمکی لاندی‌فعا لیتو نەپیل کړی اوپه پاکستان کښی بەسیاسی زور زیاتی ډ یــر زیات شی اوپەپیښو ر کښی دیوبم پەچاودنه پەپاکستان کښی ددیمو کراسی وروستی‌نښی نښانی له، منځەلاړی.

**دکب لوړی :**

لومونډ نومی فرانسوی نامتو ورځپا ڼـی پەخپله یوه وروستی‌ گڼه کښی دپاکستان په حالاتو باندی دتبصری په تر څ کښی‌لیکلی دی‌چه ددیموکراسی د وروستیو نښو لمنەله پاکستان نه ټوله شوی ده ځکه چه پەهغه هیواد کی‌دایمی اضطراری حالت اعلام شوی‌حکومت دبی‌شمیره خلکو دبندی‌کولو وا ك لاس تــه وروړی او دفدرالی او ایالتی اسا مبلی‌غونډی یی‌دنامعلو مەوخته پور ی ځنډولی دی .

ورځپاڼه لیکی چه ددغه حالت دحیات محمد خان‌شیر پاوله وژل کیدووروسته منځ‌تەراغلی اودهغه لەامله دپیاوړی‌ملی عوامی گوندپەخلاف پراخ‌عملیات پیل شو ل دغه گوند ړنگ‌شو اونژدی‌ځلور سوەتنه مشران یی‌بندیا ن شول.

لومونډ ورځپاڼه لیکلی چەملی عوامی گــوند د پښتونستان اوبلو چستا ن پەایالتو کی ډیر سترقدر ت اونفو ذ لری اوله ډیرو کلوراهیسی یی‌دغو دوو ایالتونو دپاره داخلی خپلوا کی غوښتله.

دغه گوند همدار نگه په فیدرا لی پارلمان کښی دخلکو دگــوند دحکــومت ستر مخا لف قوت او خان عبدالولی خــان داوو مخالفوگوند ونود ایتلاف مشرؤ .

لومونډ لیکلی دی‌که څه هم‌دبنگله دیش د خونړ یو پیښو نه وروسته یحیی‌خان‌ملی‌عوامی گوند ړنگ کړی وخو بیا بیرته منځ‌تەراغی خو په ۱۹۷۳ کال‌کی‌دپاکستان حکومت پــەــ بلوچستان کښی ددغه گوندسر ه د مقابلی توان په خپل ځان‌کښی‌ونه لید ځکەیی هغه حکومت‌بر طر ف‌کړچه ملی‌عوامی گوند جوړ کړیؤاو دهغه دری‌تنه ستر مشران یی پەجیل کښی‌واچول خو له هغەو خته تر اوسه پوری پەبلوجستان کښی وسله وا ل قیا م روان دی.

افغانستان چەخلك یی دپښتنو او بلو څــو سره تاریخی لر غونی اړیکی لری د خپلــو پښتنو اوبلوڅو ورونو دسر نوشت ټاکلودحق ملاتړکړی دی.

لومونډ لیکلی دی‌کــه څــه هـــم دمرکــزی حکومت ملی‌عوامی گوند دشیرپاؤپه وژلــو تورن کړی‌دی خوحقیقت‌دادی‌چه دحکو مت‌هدف دمخالفو گوندونو ټکول دی لەدغه ځایه اټکل کیدای‌شی چه اوسنی حالت هم مر کزی‌حکومت پەلوی‌لاس پیداکړی‌دی اودپاکستان حکومت بی لدی‌چه دشیرپاؤدوژلود تحقیقا تو نتیجــــو تەانتظاروباسی دهغه گوند پەخلاف یی‌پەسختو اقداماتو لاس پوری کړ چه ورځ په ورځ ــ پیاوړی‌شوی اودمر کزی قدر ت دخپل سری اوناوړه استفادی اوپه ورو ورو دآزادیو ا و حقوقو له منځه تلل یی غنــدل او هغــه یـــی

دپاکستان دټوټې ټوټې کولودپاره دفعالیت په تور رنګک کړ. په داسې حال کښې چه په همدغو څو تیرو ورځو کې دپاکستان حکومت ویلي ؤچه په بلوچستان کښې دتجزیه غوښتنې کوم حرکت نشته.

لوموړۍ دی نتیجې ته رسیدلی ده چه په اوسني وخت کښې دهر ډول روغې جوړې امکانات له منځه تللي او دمخالفینو سره زور ازمایل پیل شوي اوهغه کورني جنګک چه ترننه پورې په بلوچستان پورې محدودولمن به یې دپښتونستان سیمې ته هم خپره شي په ښکاره ډول مرکزي حکومت هغه عوامل هیر کړي دي چه دبنګله دیش دبیلیدو په مخنیوي کې یې دماتې سبب شول څو لاتر اوسه هم ددې وخت شته چه دکورنۍ خپلواکۍ دطرافدار انو سره دسیاسي حل دلاې په لټولو کښې دیوه نوي آفت دمنځ ته راتلو مخه ونیول شي.

**دکب ۳ :**

دنیویارک ټایمز ورځپاڼې په یوه مقالــه کښې دپاکستان دحالاتو په باب تبصره کړې ده چه دهغه هیواد حکومت مخالفي قوا په تیره بیاملي عوامي پیاوړې ګوند پدې پلمــه لــه منځه لرې کړ چه ددهشت اچو لو په عملیات بې لاس پورې کړیدي خودا چه ملي عوا مي ګوندشیر پاو په وژلو کښې لاس و لري نه ده ثابته شوي او دحکو مت اقدامو ښو دله چه په دیمو کراتیکو روشونو باندې عقیده نلري اوحاضر ندی دمخالف ګوندیعنی ملي عوا مي ګوندسره سیاسي رقابت وکړي.

نیویارک ټایمزلیکلي دي چه که څه هم له شپاړس کاله نظامي حکو مت وروسته په پاې کښــــې پاکستان یواساسي قانو ن پیداکړ چه پیاوړې مرکزي حکو مت اوداسې پارلمان یې اټکل کاوه چه دخلکو په رایو او په دیمو کرا تیک ډو ل وټاکل شي خو دموجوده حکومت دزمامداري په وخت کښې اضطراري حالت پرله پسې نوي شو اوآزاد مطبوعات بیخي له منځه یوړل شول اودحکومت دغو اعمالو اساسي قانون او پــه هغه هیواد کښې دیمو کراتیکي روحیې ته کوم ارزښت او اعتبار ندی پریښی .

دنیویارک ټایمز ورځپاڼې په یوه بله مقاله کښې دپښتو نستان دحکو مت له منځه وړل اود مرکزي حکومت تر کنترول لاند ی ددغــه ایالت راوستل په تفصیل سره بیان کړ ی او وایي چه که څه هم دپاکستان حکومت ددغــه اقدام داعلام په وخت کښې وویل چه دپاکستان یوګاونډې هیواد په دغه هیواد کښې نظــم او کراري ګډوډه کوي خو حقیقت دادی چــــه افغانستان تل ددېیورند دکرښې دهغې خــواد پښتنو ژبو خلکو دسر نوشت دټاکلو دحــق ملاتړ کړیدی اودغه خلك دافغانستان دملاتړ مننه کوي اودهغوی سره دوستانه چال چلند کوي.

**دکب ۳ :**

متحده جمهوري محاذ په پاکستان پښتونستان او بلو چستان کښې دپــــاکستان دحکــو مت دټولنه مخالف ګوند دی پخپله یوه اعلا میه کښې ویلي دي ترڅوچه دپاکستان حـکو مت یوه سیاسي سازګاره فضاجوړه نکړي مخالف

گوند دهغه حکومت سره هیڅ ډول خبرو نه چمتوی‌نه دی .

دپاکستان مرکزی اسما مبلی اوسنا سره دټولو مخالفو گوند ونوله پریکړی ی وروسته دمتحده جمهوری محاذ مشرانو دچو دری ظهور الهی پهاستو گنځی کښی دور خپا نــو نمایند گانو ته دغه اعلامیه ورکړیده.

داخبار لیکونکو سره دمرکی په ترڅ کښی دمحاذلوی سکرتر شاغلی پروفیسور غفوراحمد وویل هغه‌گوند تصمیم نیولی چه‌دپښتو نستان اوبلوچستان او همدغه شان دپاکستان دسیمو دخلکو سره دکتنی دیوستر پروگرام سره‌سم هغو سیموته ورشی او اولس پهدی خبر کړی چه‌دپاکستان حکومت پهدی وختو کښی پــه سختو غیرقانونی او غیر جمهوری اقداما تــو لاس پوری کړی دی.

هغه وویل دپاکستان حکومت دری لــو ی اشتباه گانی اوغلطی وکړی ا ودهغو لهامــله دحکومت په خلاف داولس تاوتر پخو الازیات شوی دی.

پهداسی حال کښی چه‌دمخالفو گوند ونواو حکومت ترمینځ دفبروری په شپږمه نیتهیوځه خبری وشوی چه‌په هغو پسی سمد ستی‌یی ملی عوامی گوند چه‌دمتحده جمهور ی مــحاذ مهم گوند دی غیر قانونی اعلان کړ. دگونــد مشران اوزیات شمیر غړی یی نیولی دگوند ټوله شتمنی یی مصادره کړیده اوپه‌هیـــواد کښی‌د بی موجبه گرفتار یوسلسله روانه ده دمخالفو گوند ونو غړی په داسی حالاتو کښی ونیول شول چه داسامبلی غونډی‌روانی وی.

دوهمه غلطی دادهچه دپاکستان حکـــومت دمرحوم حیات‌محمد خان شیرپاو قتل دسیاسی حربی په توگه استعمالوی اودسیاسی مخالفینو دتعجیز ولود پاره تری استفاده کوی اود ملی عوامی گوند نه‌علاوه دجمعیت العلما ی‌اسلا م جماعت اسلامی او تحریك استقلال گوند ونو په ادارو باندی دپاکستانی پولیسو اود مرکزی قواؤ دعسکرو حملی روانی دی‌چه دگوندونو په ادارو برسیره یی دگوندونودمشرانو کتابخانی اوکورونه هم سوځولی دی او دمذهبی کتا بو سخته بی حرمتی یی هم‌کړی دهاوکوی‌یی.

پروفیسور غفور احمد دپاکستان دحکومت ددریمی سختی غلطی د بیانولو په ترڅ‌کښی وویل دپاکستان حکو مت دشیرپاؤ د سیاسی قتل نه‌داستفادی په غرض ټول غیــرجمــهوری صلاحیتونه اوواك ترلاسه کړی اودپاکستان‌په اساسی قانون کښی دغیرجمهوری بد لون‌او ترمیم‌ناوړه غرضونه ترسره کوی •

هغه اخطار ور کړ چه که‌چیری دملی‌عوامی گوندمشران اوغړی ژر ترژره خوشی نکړای‌شی نودپاکستان حالات به لاپسی زیات وخیم شی اوپاکستان به‌دیوه لوی خطر سره مخامخ‌شی چه‌البته مسولیت‌به‌یی یواځی دپاکستان د ــ حکومت پهغاړه وی•

دغه رازدتحریك استقلال گوند مشرانود پاکستان دحکو مت لخوا دملی‌عوامی گوند غیر قانونی اعلامول غیر جمهوری عمل بلل او د حکومت دغه اقدام یی دخپلو سیاسی مخالفانو دتعجیــز ولود پار ه د هغـــه حکـــو مت یوه بله پلمه بللی ده •

دهغه ګوند مشر ښاغلی اصغر خان په لاهور کښې پخپله وینا کښې وویل پداسې حـــال کښې چه دحیات محمدخان شیرپاو دقتل غند نه کوم باید ووایم چه ددغه افسو سناك قتل تر شاه حکومت لخوا دسیاسي قتلو نـــود سلسلې ارتباط شته دی او دقتل مسؤلیت دپاکستان حکومت په غاړه لری ۰

هغه وویل ډیر خله می ویلی دی چـه د پاکستان دحکومت سیاسی مخالفانو دتعجیز د پاره دقوی لهاستعمال نهکار اخلی اودحکومت دغه عمل به سخت رد عمل او عکس العمـــل وښيي ۰

ښاغلی اصغرخان وویلد پاکستان حکومت باید دخپلو دغه ډول اقداماتو په ناوړونتیجو باندی ژور غورو کړی او تر کومه ځایه چـه د تحریك استـقلال تعلق دی تل به پخپـــل دریغ ټینګ وی ۰

ښاغلی اصغر خان زیاته کړه د پاکستان د حکومت لخوا دقتل دپیښې تر شیرنی پخوا ګرفتار یو داخبره ثابته کړیده چه حکومت د خپلو سیاسی اغراضو دترسره کولو د پاره پلمه جوړه کړی ده ۰

د تحریك استقـلال ګوند مشر وویـــل د بمونو ډیری پیښې شویدی خود پاکستان هیڅ کومې محکمی ملی عوامی ګوند د چاود نـــو مسؤول ندی ښودلی اوترټولو لوړی چـه د مخالف ګوند مشران ووژل شول په دغه لـړ کښې حکومت هیڅ کوم په زړه پـــوری اود کتنی وړ اقدام ندی کړی ۰

د کب ۳ :

درویتر نماینده دپیښور نه خبر ورکوی چه پرون پولیسو دسند دایالت په بیلو بیلو ښارونو کی لږترلږه شل‌تنه محصلین توقیف کړیدی او دسند اونورو ښارونو له یو شمیر پوهنتونو نو او عالی ښوونځیونه وسله لاس ته راغلی ده ۰

د پیښور په پوهنتون کښې دوسلو یوستر مخزن لاس ته راغلی دی ۰

پولیسو وویل : د وسلی په مخزن کښې نهه ماشینګڼ ـ دری سوه اتیاتمانچی ـ دوه لاسی بمونه اویوه اندازه مهمات شته۰

د پیښور په پوهنتون باندی نژدی ددری سوه تنو پولیسوله خوابرید شویدی دپیښور پوهنتون د حیات محمد خان شیر پاو دوژ ل کیدوله وخته چه دیوبم دچاودنی په اثر ووژل شو تړلی دی ۰

هغه خبریالان چه د پیښور په پوهنتو ن باندی دپولیسو دبرید دننداری دپاره بلـــل شویؤ وی ویل :زیاتره وسله دپیښـــور د پوهنتون دلیلیله یوی قفل شوی کوټی نـــه لاس ته راغلیدی ۰

نوره وسله دلیلی دانګړ په یوه‌بر خـــه کښې پیدا شویده ۰

د پوهنتون په انګړ کښې د پولیسو دبرید په وخت کښې دهغو پنځوزرو تنو محصلینو شخه چه‌په هغه پوهنتون کښې شـــامـل دی یوازی ددوه سوه تنوپه شاو خوا کښـــې حاضر ؤ ۰

درویټر نماینده زیاته کړیده ـدسند د بیلوبیلو ښارونو په پوهنتو نونو باندی د پولیسو بریدچه پرون ګهیځ پیل شوی ؤتر

پرون شپې پورې دوام درلود ۰

په حیدر آباد کښې څه دپاسه دوو زرو پولیسو دسند په پو هنتون ـدطب اوانجنیری په پوهنځیو او لیلیو برید کړیدی۰

لکه څرنګه چه د حیدر آباد دپولیسویو ی منبع وویل : ددغوموسسو څخه یی تمانجی ـ باریزی تمانجی اویو شمیر نور مهمات ترلاسه کړیدی ۰

دکراچی په پوهنتون او ددغه ښار په یو شمیرنورو علمی موسسو باندی پولیسوبرید کړیدی ۰

دراډیو بی‌بی‌سی د خبر سره سم ددغو پیښو اوپه علمی موسسو باندی د پاکستان د پولیسو دبریدونوله امله څلور سونه زیات کسان نیول شویدی ۰

د د۰پ۰۱۰ دخبر رسولو آژانس له کراچی نه ددغه خبر تائید ولو په ترڅ کښی خبر ورکړی دی چه په سلونو کسان توقیف شوی دی اودغه آژانس زیاته‌کړیده چه دراولپنډی او لاهور په‌پوهنتو نونو او علمی موسسوهم دپولیسو له خوا برید شویدی ۰

**دکب ٤ :**

په کابل کښی دامریکا سفارت شارژدافیر د ملاقات په طرز کښی پاکستان ته دامریکا دوسلو دصادر ولو دبندیز دلیری کیدو په مناسبت دامریکا دنژدی راتلو نکی اعلامیه په باره کښی یوه اطلاعیه سیاسی معین ښاغلی وحید عبدالله ته وسپارله ۰

دغه اطلا عیه دافغانستان د جمهوری دولت تر ژوری کتنی لاندی ونیول شوه او په هغه باره‌کښی دافغانستان‌نظردکب په۷په‌یوه‌اعلامیکی نشر کړی شوه .

**دکب ۷ :**

دکب ـ۷ـ دباندنیو چارو وزارت پرون دغه اعلامیه نشر ته سپارلی ده ۰

پاکستان ته دوسلو دصا درولو دبندیزد لری کولو‌په باب‌د امریکا دمتحد وایالاتو د حکومت تصمیم دافغانستان د حکومت او خلکو دژوری اندیښنی او تشویش سبب شویدی داتصمیم په سیمه کښی دسولی او آرامی دتشویش دادعا سره پوره توپیر لری او دافغا نستان حکومت نشی کولی دا ومنی چه پاکستان ته دوسلی دلیږلو بیا پیل کیدل به د آسیاپه‌دی سیمه کښی د قواو دانډول د مینځه تللو او تسلیحاتی مسابقو سبب نشی ۰

دافغانستان حکومت په نزد پاکستان ته دوسلی دصادرو لو دبندیز لری کول په‌تیره بیادغه وخت کښی چه دپاکستان نظامی پوځو نودپښتنو او بلوڅو خلکو په مقا بل کښی په عملی ډول‌په ډیربی رحمه او په جابرانه اقدام لاس پوری کړیدی دافغا نستان د خلکو اود پښتنو او بلوڅو دزیاتی‌خوا شینی سبب‌شوی دی چه دهغه عواقب به دنړۍ په دغه سیمه کښی د سولی اوآرامی دټینګښت‌د پاره په هیڅ ډول ګټور نه وی ۰

همدا رنګه دحیر انتیا ځای دی چه دامریکا دمتحدو ایالاتو غوندی هیواد چه تل دنړۍ د سولی اوآرامی دساتنی خبری کوی په عمل

کښې دهغه ادعاسره پوره بل ډول چال چلند کوی لکه چه دافغانستان حکومت په وار وار ویلی دی دپرمختیا پهحال کښې هیـوادونـه یواځې دسولې اوکراری لاندې کولی شی د خپلو ټولنو داجتماعی حالت انکشاف اولوړتیا او داقتصادی سطحې لوړولو ته ورسیږی اود وسلودصادرولو بندیزلری کول نه یواځې ددغو ستروهدفونو دخوراقیمتی منابعودانحراف سبب کیږی ، بلکه دیوی کړکیچنی اوخطرناکی فضاد پیدا کولو نه بهپرته بله نتیجه ورنه کـیږی

**دکب ۷ :**

**په کـراچـی کښـی د رارسیـد لـی** خبر سره سم پهدغه ښارکښې دمسلم لیګ دګوند دکار کمیټی دملی عوامی ګوند ړنګیدل او دخان عبدالو لیخان او ددغه ګوندد نورو مشرانو نیول کیدل په کلکه غندلی دی ۰ ددغه ګوند سکرترجنرال‌ښاغلی ملک‌محمدقاسم وویل چه مسلم لیګ ګوند دپاکستان دحکومت شخه‌غوښتی دی‌چه دملی عوامی‌ګوند مشران د توقیف نه خوشی او ددوی ګوند بیاقا نونـی کړی ۰

**ده وویل : دمسلم لیګ دکـار کمیټـی** تصمیم نیولی دی تر هغه وخته پوری چـه غوښتنی یی‌د پاکستان دحکومت لخوا‌ونه منل شی دسند اوبلوچستان دایالتی اسامبلی له غونډو سره بهپریکړه وکړی ۰

دیوبل خبر سره‌سم تراوسه دسند دایالت په پوهنتونونو کښې ۲۱۳تنه محصلین دوسلی دزیرمه کولو پهتور دپاکستان پولیسونیولی دی ۰

په دغه ترتیب‌دهغو ټولو کسانو شمیـر ۷۱۵ تنوته رسیږی چه‌دپښتو نستان ،سند ، اوپنجاب پهبیلوبیلو شارونـو کښې په اوو پوهنتونونو او ډیرشو پوهنځیو اولیلیوباندی دپاکستان دپولیسو دبرید ونو څخه وروسته نیول شویدی ۰

ویل کیږی چه د نیولو سلسله لاتراوسه روانه ده۰

ددغه خبر دخپریدو پسی چه په بیلوبیلو موسسو کښې دپاکستان حکومتی مقاماتووسله ایښې وه چه‌دهغی‌دپیداکولو پهپلمه هغه‌روشن فکران اوځوانان ونیسی‌چه دملی‌عوامی ګوندد ړنګولو اودهغه دمشرانو نیولو اودملی‌اسامبلی اوسناد غونـډو څنډولـو سـره مخالف وو دغه آوازه خپـره شویـده چـه د پـاکستان حکومت بهډیرژرد پاکستان دمحصلینو اتحادیه اود پښتو نستان‌دمحصلینو اتحادیه ړنګه کړی دبین‌المللی خبر رسولو دآژانسو نود خپرونو سره سم پرون په کراچی کښې دښوونځیـو دمحصلینو او شاګرد انوله خواد محصلینو د توقیف اوپه پوهنتو نونو باندی دپولیسو د حملوپه ضد ډیری سختی‌مظاهری وشو ی۰

وسله والو امنیتی پوځو نوچه غوښتل یی‌د مظاهرو مخه ونیسی اوښکی بهوو نکی ګازیی استعمال کړ اوپه وهلو ټکولویی لاس پـوری کړ ۰

دهغو ښتو له امله چه دمظاهره کوونکو اود امنیتی پوځو نو ترمینځ وشوی یو شمیر محصلین او پولیس وژل شـوی او ټپیـان شویدی ۰

**د کب ۸ :**

**په کراچی کښې دحکومت احتجاج په نامه**

ډیوهنتونو او ښوونځیود محصلینو اوز ده کوونکو پرون هم دپو هنځیو اوښو ونځیود زرګونو زده کوونکو په ګډون ډیرو خلکو پراخه مظاهری وکړی .

پولیسو دمظاهره کوونکو دتیتو پرك کولو دپاره په دوو ورځو کښی دویم ځل داوښکی بهوونکی ګاز نه کار واخیست .اود خلکو په وهلو ټکولویی لاس پوری کړی .

په هغو ښتو کښی چه دپولیسو او مظاهره کوونکو تر مینځه وشوی شل تنه پولیسان ژوبل شوی دی .

ویل کیږی چه د ۱۲۷تنو پهشاو خواکښی مظاهره کوونکی چه دسند د ایالت یو شمیر روښنفکران پوهان هم پکښی شامل دی‌نیول شویدی .

مظاهره کوونکو واټونو کښی لسو موټروته اور واچاره او په کراچی کښی یی د خلکود ګوند په یوه دفتر برید وکړ او تاوان یی ور واړاوه .

د کب ۱۰ :

په یوبس کښی دیوبم د چاودنی په اثـــر پینبور کښی دری تنه مړه شوی او ۲٦ تنه ژوبل شویدی .

درویتر دآژانس دخبرله مخی دغه دوهمـه چاودنه ده چه شیرپاوله قتل نه‌وروسته‌شویده.

دکب ۱۱ :

ددولت درئیس او صدراعظم ښاغلی محمد داود دپیغام هغه متن چی د۱۳۵۳ کال دکب دمیاشتی په‌یوولسمه نیټه‌دپاکستان صدراعظم د۱۳۵۳ کال دجدی دمیاشتی ددیرشمی نیټی دلیك په ځواب کی دملګروملتو دموسسـی دعمومی منشی دکتور کورت والد هایم پـه عنوان استول شوی دی .

کابل د۱۹۷۵ کال دمارچ ۲

د ۱۳۵۳ کال دکب ۱۱

محترم جلالتمآب !

ستاسو دجلالتمآب په عنوان د۱۹۷٤کال دنوامبر دمیاشتی د۲۷ نیټی زمادلیك په ځواب کی دپاکستان صدراعظم ښاغلی ذوالفقار علی بوټو پەدی وروستیو وختوکی د۱۹۷۵ کال دجنوری دمیاشتی دشلمی نیټی یوخپل لیك تاسو جلالتمآب ته استولی دی چی دغه لیك دملګروملتو دموسسی ددارالانشاء له خوا د هغی‌موسسی غړوهیوادونوته ویشل شویدی .

دښاغلی بوټودوروستی لیك په باب غواړم یاده‌کړم چی ټول هغه مطلبونه چه می دخپلو دووتیرو لیکونوپه واسطه د۱۹۷٤کال دسپتمبر په اوومه اود ۱۹۷٤کال دنوامبر په ۲۷ستاسو په توجه رسولی یوځل بیاتائیدوم ، ښاغلی بوټو په خپل دغه مکتوب کښی یوځل‌بیاویلی دی چـــه افغـــانستان (د احساساتی اړیکو) او (له سیاسی حقوقو ځخه دفاع) تر پـردی لاندی (دپاکستان په دا خل کـــی) تخریبـــی فعالیتونه اوددهشت اوډار اچولو اعـــمال او سبوتاژ مساعدت او تشویق کوی .

برسیره پردی ده دبلوچستان دخلکو دقیام په باره کښی یوځل بیاتکراری وینااوی کړی دی اودخپل زړه دغوښتنی سره سم په هغه ځـــا ی کـــی د قبـا یلـی سـر دارانـــو مقاومت د (مدنیه اداری دپراختیا اوداقتصادی اواجتماعی ریفورمونو دمنځ ته راوړولو) پـــه مقابل‌کی دجنګ دموجبی اسباب یادکړیدی .

ځرنګه‌چې په‌دې باره‌کې دافغانستان دنقش په باب دښاغلي بوټونه منونکي ثبوب اوبې اساسه تورونه دافغانستان دحکومت له خوا ځوځوځلي دروغ بلل شويدي .

زه يوځل بياهغه په‌کلکه سره ردوم ددغې موضوع تکرارچې دهغه مقصدپه ښکاره توګه دپاکستان دخلکو غافله کول دي دهغه‌هيواد حکومت له هغه ستر مسئوليت څخه په هيڅ وجه ځان نه شي خلاصولي چې دحالاتو د وخامت اوخرابيدوله کبله ورسره مخامخ دی.

غواړم ځرګنده‌کړم چې‌افغانستان دهیوادونو په‌کورنيو چاروکي مداخلي او دتاکتيکــونو استعمال ته چې ښاغلي بوټو هغه ته اشاره کړې ده عقيده نلري .

دغه ټول اعمال دپاکستان داوسني حکومت خاصه ده . لکه چې د افغانستان حکومـــت ځرنګه چې تاسو جلالتمآب ته مويخوا خبر درکړی ودپوره مدارکو اواسنادوپه ترلوسره حاضر دی ثابت کړی چې په هيواد کــــې دجمهوری رژيم له‌ټينګيدوڅخه‌وروسته‌دپاکستان حکومت ترکومې اندازې پورې دبين المللـــی نورمونو اوپرنسيبونو په خلاف دافغانستان کورنيو چاروکی پراخه مداخلي تر لاس‌لاندی ونيولي .

دبلوڅو دخلکو دقيام دماهيت په بـا ب دښاغلي بوټودځرګندونو په باره کې بايـــد ياده کړم چې په‌دې باره‌کې دده ويناد‌کلاسيك استعمارله شعارونو سره زيات شباهت لري چې لکه(دفيوډاليزم‌سره دمقابلې) او(داجتماعي اواقتصادي پرمختګونواوتمدن دمنځ ته‌راوړلو) په ځيردتش په نامه شعارونوته په رجـوع سره دځپلې سلطې دپراختيااوساتنې په‌منظور ددغو سيمو دخلکوپه چاروکي په ځپلومداخلو باندې پردې اچوي .

زماپه عقيده هغه وخت رارسيدلی دی چې ښاغلي بوټودغه حقيقت چې انکارترې نه‌شي کيدلای ومني اوپه هغه اعتراف وکړی چې دبلوڅودخلکو قيام يوملي قيام اود پاکستان دحکومت اواعمالوپه واسطه ددوی دحقه‌حقوقو ترپښولاندې کولو په اساس منځ ته راغلی دی .

لکه چه دمخه مې پيشنهاد کړی و يوځل بياپيشنهاد کوم چې په بلوچستان کې ددغه کاردحقايقو دمعلومولو له پاره لازمه ده چــې دتحقيق يوبې طرفه هيات په‌دې شرط چــې وکولای شي په آزادانه توګه له خلکو سره په تماس کې شي حقايق واوری اوويې‌ګوری وټاکل شي اوهغه ځای ته و استول شـــی داوسنيو شرايطو لاندې په‌دغه اقدام دحقايقو دلاسته‌راوړلواونړۍ والوته دهغه دښکاره‌کولو له پاره يوه ډيره ښه وسيله وی .

ښاغلي بوټو په ځپل وروستي ليك کـــې دهغو مهاجرو بلوڅو په باب چې افغانستـــان ته‌يې پناه راوړی ده ليکلي د ی چې (داچې دغه‌خلك څوك دی يوازی دافغانستان حکومت ته معلوم دی دافغانستان حکومت چې پدې باره‌کې زمادحکومت پوښتنوته‌دمسئولي ځواب په ورکولوسره قادرنه شودايي مناسبه‌وګڼله چې ووايي چې نورنوموړی تش په نامه پناه راوړنکي افغانستان ته نه داخليږی ټولو ته

معلومه ده چی دهغو مجرمینو او غارت ګرانو له پاره چی دپاکستان له ګاونډی سیمی څخه دقانون او عدالت له منګو لو څخه تښتـــی دافغانستان خپنی سختی برخی په عنعنوی توګه دپناه مصئون ځایونه دی .)

زه دښاغلی بوټو ددغو یادونو پـه ځواب کی یوازی دومره یادوم چی دتحقیق هیات دی چی پورته اشاره ورته وشوه دبلوڅـو دهغوپناه راوړونکو کمپونه هم لیدلی شـی چی افغانستان ته‌راغلی ځو تحقیق اوتشخیص وکړی چی دغه خلك چی‌دبوټوپه عقیده ددوی هویت یوازی دافغانستان حکومت ته معلـوم دی څوك دی اوافغانستان ته‌یی ولی پنـــاه راوړی ده دیادونی له پاره یی لازمه ګـــڼم له‌هغه وخت څخه راهیسی چی خپل دوهم لیك می تاسو جلالتمآب ته وړاندی کـــړی دی له دوه سوه درویشتوتنو څخه زیـات بلوڅان هم په‌دی وروستیو وختوکی‌افغانستان ته‌راغلی دی چی دغه‌کار په بلوچستان کـی دپاکستان دنظامی قواوو دظلمونو اوعسکری عملیاتو ددوام خپله ښه اوځرګنددلیل دی .

دافغانستان حکومت فکرکوی چی دژمـی دموسم په‌پای ته رسیـــدوســـره به چـــی دپاکستان نظامی عملیات سخت شوی اولاری به خلاصی شی افغانستان ته دبلوڅو پناه راوړونکو راتګ زیات شی .

دافغانستان دحکومت دغه اندیښنه سرلـه اوس ستاسو دجلالتمآب پاملرنی ته ورسوله شوه چی بین المللی مربوط مقامات ددغسی حالت له پاره پیشبین وی ځکه چی ښایی دپناه راوړونکو شمیر داسی زیات شی چی افغانستان په یوازینی توګه ونشـی کـړای له دوی سره دمرستی له عهدی څخه ووځی.

دافسوس ځای‌دی چی‌ښاغلی بوټودذهنیتونو دګډوډولوله پاره کوښښ کوی هغه څه چی اصلازماپه لیکونو کی نه ووحتمی پیدا کړی اودغه لیکنی چی‌دحقایقوښکارندوی‌دی او خاص دبلوڅو پرخلکو باندی دپاکستان دحکومت دظلمونو دپای ته رسولو له‌کبله دبین المللی مرستی دجلبولو په منظور لیکلی شو ی دی دپاکستان په باره‌کښی دافغانستان حکو مـت دناوړه نیتونو دثبوت په توګه په‌غلطه معرفی کړی .

دبلوڅو دتاریخ په‌دغو سختو دقایقوکښی دبلوڅو خلکودحقه حقوقوڅخه دافغانستان دحکومت بشپړملاتړچی هغوی د پاکستان له نظامیانو سره دخپلو اساسی حقوقو څخـه ددفاع په غرض په‌مبارزه لګیادی دپاکستان په‌کورنیو چاروکښی په‌هیڅ وجه مداخله نه‌ده اوښاغلی بوټوله دی سره سره اودخپلوټولو کوښښونو اوسفسطی سره نه شی‌کولای چی هغه دپاکستان پر ضد دافغــانستان دنـاوړه نیت په‌توګه په چاومنی . ښاغلی بوټو مونږ له دیموکراسی اوقانونی طرزالعملونو څخـه بی خبره ګڼلی یو .

دهغه‌دعقایدوسره زمونږدیموکراسی دنه‌آشنایی په‌باب زماکارنشته خو دپاکستان صدراعـظم دبلوچستان‌اوسنی‌حکومتونه اوهغه‌حکومت چی‌په پښتونستان (شمال لویدیځ سرحد) کښـی د۱۳۵۳ کال ددلوی دمیاشتی تراته ویشتمی نیټی پوری واك پرلاس‌کښی درلود د یـوی

دیموکراتیکی عملیې محصول‌ګڼي . په‌څرګنده توګه له دیموکراسی څخه دده مقصد پوره نوی دی چې ښاغلی بوټویې نه باید دهغــــه دقبلولو انتظار دچانه ولري .

ټولوته معلومه ده چې په بلوچستان کـــــې اوسنیو حکومتونو اوهغه حکومت چې پـــــه پښتونستان (شمال لویدیځ سر حد) کښې د۱۳۵۳ کال ددلوی دمیاشتې تراته ویشتمې نیټې پورې حکومت کاوه دښاغلی بوټوله‌خوا دناجایزو وسایلو څخه په‌استفادې اوبیلوبیلو دسیسوته په رجوع سره وروسته له هغې څنګه منځ ته‌راغې چې دبلوچستان پخوانی حکومت یې په بشپړه جابرانه توګه برطرف اومنتخب مشران یې زندان ته ورواچول اود پښتونستان (دشمال لویدیځ سرحد) پخوانی منتخب حکومت یې استعفاته مجبورکړ .

څوورځې دمخه ښاغلی بوټو وروستې تش په نامه حکومت چې پخپله‌یې په پښتونستان (شمال لویدیځ سرحد) کښې مقرر کړی وو هم له‌منځه یووړملی عوامی ګوند یې ړنګ کړ اودهغه ګوندرئیس اوغړی یې‌چې د خلکـــو منتخب نمایندګان وو زندان ته پوری وهل دایالتی اسامبلو غونډې وځنډیدلی او دغــه رازپه پښتونستان کښــې ټول ښوونځی او پوهنتونونه یې وتړل .

دپاکستان دواکدار حکومت دغو څپه‌کوونکو اقداماتو چې دنړۍ دنشراتی وسایلو په‌واسطه نړۍ وال خبر شول ټولوته ثابته کــړه چـــې ددیموکراسی څخه دښاغلی بوټودفهم طرزخه دی !

دهیڅ ډول جرم له‌اثبات څخه پرته چـــې دپاکستان داوسنی رژیم دمطلق العنــــانـــی خاصیت ښکارندوی دی دملی عوامی ګوند له منځه وړل اوزندان ته دهغه ګوند درئیس او غړوپوری وهل دافغانستان دحکومت دژوری خواشینی اواندیښنی موجب ګرزیدلی دی .

دغلطو تورونو په لګولو سره له مدنـــی اوسیاسی حقوقوڅخه دخلکودمنتخبونمایندګانو محرومول اوپه ډله ایزه توګه یې بی له‌کومې محاکمې څخه زندان ته دهغوی پوری وهل یوناوړه اوډیرزیات وخیم عمل دی چې دهغی څرګندونه یوازی باید دښاغلی بوټوپه منحصر منطق‌کی وپلټل شی .

دپاکستان حکومت یو ځل بیاپه دغو غیرو دیموکراتیکوحرکاتو سره اودبشر دحقوقو د ټولو اساساتو څخه لری هغه څه چې ښاغلی بوټوتاسو جلالتمآب ته‌په خپلولیکونو کی په پاکستان کی دعادی حالاتو اوپه هغه هیواد کښې دیموکراسی په باب ادعاکړی ده، بیخی ردوی دافغانی‌کوچیانو په باب دښاغلی بوټو په ځوابیه لیک‌کی یادونی په ربښتیاچی دخنداوړ دی .

ددغی موضوع په ارتباط سره یوځل بیـــا غواړم هغو مطالبوته ستاسو دجلالتمآب پام راواړوم چې په دی باره‌کی می په‌خپـــــل پخوانی لیک کی لیکلی دی زیاتوم چې که چیری بوټووغواړی چې دافغانی کوچیانو د عنعنوی مهاجرت له پاره چې له پیړیو څخه راهیسی هرکال دیخنی دموسم دتیرولوله‌پاره تودوناووته ځی بی اساسه اوجعلی انګیزی اختراع کړی مشکل به‌وی چې دده دتخیلاتو مخه ونیوله شی، ولی هغه شی‌چی په‌وضاحت

سره کولای شووایو دادی چی ښاغلی بوټو به پەخپلوټولوکوښښونو او هلو ځلو سره به قادرنەشی هغه حقیقت چیدپاکستان دخلکو پەګڼون ټولوته معلوم دی اوددغو سیمودخلکو دعنعنوی ژوندانه جزء دی دخلکو په نظر په بل شکل وښیی .

(په پاکستان کی دیوزیات شمیر افغانی اتباعوموجودیت) ته دښاغلی بوټو د اشاری په ارتباط سره کولای شوپوښتنه وکړوچی که چیری دهغوافغانی کوچیانو څخه پرته نوروی چی هرکال دیخنی دموسم په رانژدی کیدوسره تودو سیمو ته مهاجرت کوی نوپس ځرنګه تراوسه پوری دخلکو ددغی ستری کتلی موجودیت دنړی والو اوپه تیره بیادهغو له نظر څخه چی په پاکستان کی سیاسی نمایندګی لریاودغه رازدملګروملتو دنمایندګی له سترګوڅخه پټ پاتی شوی دی اودښاغلی بوټوڅخه پرته دهغوله موجودیت څخه نور څوك خبرنه دی ؟

دپاکستان اقتصادی خرابه حالت اوپەهغه هیوادکی دخوراکی موادوکموالی ولی ددغه ستر مهاجرت سره نورهم خراب نەشو اود پاکستان حکومت دغی وخیمی موضوع ته دبین المللی بیلوبیلو موسسو اود خپلو دوستو هیوادوپام راوانه ړاوه ؟

ټولوته معلومه ده چی دغه خلك افغانی کوچیان دی چی دخپلوپخوانیو عنعنو څخه پیروی کوی . لکه چی تاسو جلالتمآب ته موپخواخبردرکړی دی چی دهغوځورونو په اساس چی پەدی بارەکی دپاکستان دحکومت له خواافغانی کوچیانو ته پیدا شوی دی او هغه محدودیتونه چیپه دی باره کی دهغه هیواد دحکومت له خوا وضع شوی دی اودغه رازپه هغی خاورەکی دداسی شرایطوپەاساس چی دتحمل وړنەدی دنوموړو افغانی کوچیانو شمیر پەهغه کالکی چی تیرشودنورو کلونو په نسبت ډیرکم واودوی پەدی وروستیو وختوکی له خپلوعنعنوی او تاریخی حقوقو څخه بیخی استفاده نەده کړی .

محترم جلالتمآب !

افغانستان چی دهغه خلك دپښتنو اوبلوڅو خلکو سره نه شلیدونکی تاریخی، کلتوری اونژادی زیات علایق اوریښی لری دخپلو پښتنو اوبلوڅوورونودحقوقو دله منځەوړلو اودهغه زوراوظلم په مقابل کی چی په دغو خلکوباندی کیږی په هیڅ ډول بی علاقی نه شی پاتی کیدلی .

لکه چی ټولوخلکوته معلومه ده اود ۱۹ او۲۰ پیړی تاریخ په ربښتیاپه هغه باندی شاهد دی له هغه وخت څخه راهیسی چی بریتانیا د۱۹ پیړی په وروستیو وختو کی پەخپل زوراوجبرسره زمونږ دخاوری یوه برخه ونیوله اوزمونږ ملتیی دوه ټوټی کړ اوپه خپلی امپراتوری کی یی داخل کړترڼنه افغانستان ددوی دحقه حقوقو څخه ملاترکړی اوکویی اوددوی دحقه حقوقوڅخه دخپل پوره ملاترڅخه چی دافغانستان وجدانی او اخلاقی وظیفه ده تیربه نه شی .

زما هیله ده چی دپاکستان صدراعظم اودهغه هیواد حکومت بالاخره واقعیتونەدرك

کړی اوله خپلو هغو اعمالو څخه چېدسیمې سوله یې په خطر کې اچولې ده اودخلکو د یوې ستری کتلې بشری اوسیاسی حقــو ق سخت زیانمن کوی دسولی اودانسانی‌کرامت دتامین په‌ګټه بیخی ډېره وکړی .

زه هیله لرم چې تاسوجلالتماب زمونــــږ احترامات ومنی .

محمد داود

ددولت رئیس اوصدراعظم

د کب ۱۱:

دمخالفو پارټیو ممبرانو دسند پـــه ایالتی اسامبله کښې فیصله وکړه چه دنشنلی عوامی دپارټۍ دانحلال اود هغه د مشــــرانو دتوقیف سره د اعتراض په عنوان داسا مبلی په جلسو کښی چه‌د کب په۱۹ شروع کیږی اشتــراك ونکړی .

دسند دحقوق دانانوانجمن هم‌په‌یوه پریکړه کښې دخان عبدالولیخان اونور عوامی لیډرانو محصلینو او استادانو بندی کیــدل غندلی او هغه ئې‌د خلکو په ضد یواقدام بللی دی .

مظاهری په ټول پاکستان کښې دوام لری.

په پیښور او راولپنډۍ کښی هم مظاهری جاری دی اوخلك حکومت پەخــلاف پاریدلی دی.

د کب ۱٤ :

دمتحدی دیموکراتیکی جبهی سکرتر جنرال پروفیسور غفوراحمد په کراچی کښی وویل چه دپاکستان حکومت دنشنل عوامی پارټی د انحلال اودهغه حزب لیډرانو دبند یکولو نه وروسته اوس دجماعت اســلامی د حزب د منحلولو په لټه کښی دی ،هغه وویل چه د پاکستان حکومت دجماعت اسلامی دانحلال د پاره دبهانی په لټه کښی دی اوپه دسیسو اوتهمت تراشیو مشغول دی .پروفیسور غفور احمد اخطار ورکړ چه دجمیعت اسلامی دحزب انحلال به وخیم عواقب منځ ته راوړی .

د کب ۱۲ :

دمتحده جمهوری محاذ لوی سکرتر ښاغلی پروفیسور غفور احمد په خپله یوه وینا کښی دپاکستان اوسنی حالات‌دسخت‌خطر سره‌مخامخ بللی دی اواولس ته‌یی دخپلو حقوقو دتــــړ لاسه کولودپاره دبیداری اورا پورته کیــدو توصیه کړیده .

دپاکستان د حکومت دټولونه دلوی مخالف ګوند متحده جمهوری محاذ سکرتر جنرا ل وویل دپاکستان حکومت دخپلومخالفینو دآواز کرار ولوپه غرض‌دابلاغ ټولی وسیلی سانسور کړی او غواړی داولس د آزادی رای د څرګند ولو مخه ونیسی .

هغه وویل په اسامبله اوسنا کی دمخالفو ګوندونو رایو څرګندولومخه نیول شوی او په پښتونستان ، بلوچستان او پاکستان کښی هری خوانه د حکومت لخوا دګرفتار یوسلسله روانه ده .

پرو فیسور غفور احمد په داسی حال‌کښی چه‌دملی عوامی ګوند بندول اوددغه ګوند د مشرانو او غړو ګرفتاری یی دپاکستان د حکومت یو بل غیر قا نونی عمل بللی زیاته‌یی کړه حکومت دغه کار یوازی اویوازی دخپـل مهم مخالف ګوند دله مینځه وړلو دپاره کړی دی اومرحوم حیات محمد خان شیر پاوسیاسی

قتل‌یی دپلمی په توگه استعمال‌کړ ۰

دمتحده جمهوری محاذ لوی سکرتر دپاکستان داساسی قانون په باب وویل دپـا کسـتـا ن حکومت ویاړکاؤ چه په پاکستان کښی یـــی پنځه ویشت کاله وروسته یو اساسی قانون تدوین کړیدی اوس یی دغه قانون هم دخپلو سیاسی اغراضو اود مخالفو گوندونو دزیانمن کولو دپاره بدل کړی او په قانون باندی د اولس اعتبار له مینځه لاړه ۰

هغه در مرحوم شیرپاو دسیاسی قتـــــل ترځنگ دمحصلانو داتحادیی دمشر مرحو م عبدالحمید مړینه دحکومت لخوا یوبل سیاسی قتل وباله‌او غوښتنه‌یی وکړه‌چه ددواړو قتلونو په‌باب کښی دی مشترکه څیړنه او محاکماتی تحقیق وشی ۰

پروفیسور غفور احـمد پـــــه پاکستا ن پښتو نستان او بلوچستان کښی دامنیت‌دله مینځه تللو خبره تائید کړه اووی ویل د پاکستان حکومت دناوړه‌پالیسیو د تطبیق په نتیجه ‌کښی په هغو سیمو کښی امنیت بیخی له مینځه تللی دی ۰

**دکب ۱٤ :**

دحیدرآباد دنساجی دفابریکو کارگرانو کـه څه هم هلته ۱٤٤ ماده چه دپنځو تنو څخه زیاته اجتماع منع کوی نافذه وه بیا هم‌دنیشنل عوامی پارتی دانحلال او دهغه دلیډرانو دبندی کیدو اود هغه حزب دارائی گانو دضبطو لو په مناسبت لوئی مظاهری وکړی ۰او کله چه دامنیتی قواو دهغو مانع کیدو کوښښ وکـړ مظاهره کوونکو له خواړ هغوی ډزی وشوی چه دهغه په اثر دوصاحب منصبه اواته تنه‌د امنیتی قواو څخه زخمی شول ـامنیتی قواوو ښکی بهونکی گاز استعمال کړ او ۹۱نفرئی د مظاهره کونکو څخه بندیان کړل ۰

**د کب ۱۷ :**

د دولت رئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد په هغه مرکه کښی ئی چه دښاغلـــی کرنجیا دهندوستان دبلتیز جریدی دمدیرسره وکړه دپښتنو اوبلوڅو په خـلاف د پاکستان دحکومت د اوسنی حرکتونو په باره کښـــی داسی وفرمایل :

**پوښتنه :**

په تیره مرکه کښی تاسی جلالتماب امید څرگند کړچه دپاکستان سره به‌د پښتونستان په باب دافغانستان اختـلاف دروغی جوړی د خبروله لاری حل شی ۰

تاسی دغه راز وویل :دی‌ته چمتو یاست چه پدغه باره کښی دهرڅه په‌باب اوپه هر ځای کښی دپاکستان له مشرانو سره خبری وکړی نن حالت څنگه دی ؟

**ځواب :**

له هغه څـه نه چه ویلی مودی زمـونـږ په دریـغ کښـی بدلون ندی راغلی خو هغه واقعات چه‌پدی وروستیو وختو کښی پـیـښی شوی داندیښنی وړدی ،اوس اوس هغـــــه حرکت چه پاکستان د پښتنو او بلوڅو پـــه مقابل کښی غوره کړی د خواشینی اوتا لر وړدی ۰او هیڅ نشو پوهیدای چه دهغه دلیل څه شی دی ۰

پداسی حال‌کښی چه‌له دغو واقعاتود مخـه حاضر ؤ زمونږ تر منځ داختـلاف په بـاب خبری وکړو خو واقعات اودسیسی پداسی ډول

را پیدا شوی چه فضائی نامساعده کړه لکه خنګه چه لیدل کیږی دغه ټولی دسیسی ددی دپاره جوړی شوی وی‌چه‌بایدمخالف ګوندونه له‌مینځه لاړشی دهغوی لیډران بندی‌شی. اود افغانستان په نسبت زهنتیونه ګډوډ کړی . اوس دپاکستان په‌هرګوت کښی چه‌یوه پیښه یاناکراری پیدا شی افغانستان پکـــی دخیل بولی . غواړم تاسی خبرکړم چه بیګا بیا هـــم څه دپاسه سل تنه بلوڅانو دافغا نستـــــان خاوری ته پناه راوړیده اودغه کار دپښتنو او بلوڅو خلکو په خــلاف د پاکستان د حکومت دتشدد نه ډك سیاست په اثر شویدی .

له‌دی ټولو دسیسو سره سره بیا هم تاسی ته وایم چه زمونږ په دریځ کښی بدلون ندی راغلی خو په اوسنی حالت‌سره ترڅو چــــه اصلاح نشی دخبرو او مفاهمی امکان نـــــه بریښی .

**پوښتنه :**

صدراعظم بوټو په کابل باندی تور لګوی چه‌له سرحدنه اخواد پښتنو سوتیرو په روزنه اودوران کاری اودسبو تاژدپاره دهغوی پــــه لیږلو سره دپاکستان په کورنیو چارو کښی لاس وهی ـ آیا ددولت ښاغلی رئیس غواړ ی دغو تورونوته ځواب ورکړی .

**ځواب :**

مونږ دتل په شان د ښاغلی بوټو تورو نه رد وو .

ښاغلی بوټو پدغوبی اساسه تورونو سره غواړی په حقیقت باندی پرده واچوی او هغه ناکراری پټی کړی چه په پاکستان کښی دننه شته دبلوڅو او پښتنو په سیمو کښی تشدد دپښتنو او بلوڅو آزادی غوښتنی نهضتونود خپه کولو به مقصد طرحه شویدی .خوکه‌چیری د پاکستان دواکدارانو تصور داوی چه پــه فشار او دقوی په استعمال سره کولی شی‌د پښتنو اوبلوڅو ملی نهضت له مینځه یوسی ستره خطا ده .

**پوښتنه :**

لیدل کیږی چه‌په کابل کښی مسؤول‌کسان فکرکوی چه پاکستان دانقـلاب اوپه خپله د تاسو په‌خـــلاف په‌دریو اوله دریونه په زیاتو بی نتیجی کودتا ؤ کښی لاس‌درلود آیا ممکنه ده چه پدی‌موضوع کښی معلومات ترلاسه کړم آیاتاسوله پاکستان سره په مخامخ پوځی‌ښــه دزیات سر خوړی انتظار لری .

**جواب :**

دهغه څه‌په باب چه‌په افغانستان کښی په کشف شویود سیسو کښی پاکــــستان لاس درلود هیڅ شك نشته البته په هغوټولوباندی دکودتا نوم نشوا یښودلی دغه دسیسی چه د جاسوسی ــدوسلی د قاچاق‌او په‌نورو ښــــو کشف شوی‌په هغوکښی پاکستان په‌مستقیمه توګه لاس درلود . پاکستان په سرحدونـــــو کښی دانګلیس پخوانی استحکا مات او تیاڼی پیاوړی کوی دغه ټول حرکتونه ددی دپاره‌دی چه افغانستان په غصه کړی او متقابلی رویی ته ئی اړباسی خو مونږ په سړه سینه‌ددغو ټولو څارنه کوواوله حوصلی نه کار اخلو دا چه ښاغلی بوټو اودپاکستان جنرالان وغواړی تیری وکړی په خپله دوی ته معلومه ده خو په

اوسنيوخت کښې په‌هغی فضاءکي‌چه په‌نړی‌کښې شته پوځي‌حرکتونه په‌دهيځ‌اړخ‌به‌گټه‌نه‌وی البته دفکر دغه‌طرز په‌هغو کسانو پوری اړه لری‌چه پدغه شان ماجرا غوښتنو کولـــی شی لاسس پوری کړی ۰

اوکه نه‌هغه حرکتونه چه دنيشنل عوامـــی پارټی اود پښتنو اوبلوڅومشرانو په مقابـــل کښې شوی منطقی نه‌ؤ اونه‌دی ۰له دغو ټولو دسيسو سره سره مونږ غواړو چه له ټـولو کسانو سره دخبرو او له‌شرافتمندانه لاری نه خپلی ستونزی حل کړو ۰

**پوښتنه :**

ښاغلی بوټو وايی چه تاسو جلالتماب ته يی ددواړو هيوادو ترمنځ دمشکـلا تو په‌باب دخبروپه مقصد اسـلام آبادته‌د تگ بلنه در کړی وه خوله کابل‌نه هيڅ ځواب ونه‌رسيد۰

**ځواب :**

دښاغلی بوټو دڅرگند ونويوه برخه رښتيا ده حقيقتاً چه زمونږ شارژ دافيرته‌يی ويلـــی ؤ غواړی چه‌ماته بلنه راکړی ددغه خبر پـــه اخستلو سره موضوع تر کتنی لاندی و خو مخکی تردی چه مثبت يامنفی ځواب ورکړی شی ښاغلی بوټو په‌خپله دغه مسألـه افشاء کړه‌که چيری ښاغلی بوټو پدغه موضوع‌کښې ښه نيت درلودلای او دزړه له‌کومی وای پـــه يقين چه زمونږ ځواب به‌مثبت وای او ښه داوه چه دغه مساله په لومړی سرکښې په ټيټـــه ســـويـــه پيـل شـــو ی و ا ی ترڅو چه په لوړه سويه لاره آواره شوی وای خومخکی تردی چه زمونږ څخه ځواب تر لاسه کړی موضوع ئی افشاء کړه اودا چه‌وائی دکابل له خوا ځواب ونه‌رسيد سمه نده‌ځکه هغه پړاونه ونه رسيدو ۰

**پوښتنه :**

له هغه وخت نه چه‌په‌پيښور کښې د يوه بم‌چاودنه دحيات محمد خان شيرپاؤد وژ لو سبب شوه دسرحد او بلوچستان ولايات تـر عمومی ظلم او زور زياتی لاندی نيول شويدی دملی عوامی گوندړنگ شواود ولی‌خان غوندی مشران بی‌بنديان شوی اوحتی په عجولانـــه حالت يی قوانين سلب کړکابل دغه شـــان پيښی څه ډول بولی ۰

**ځواب :**

پدی برخه کښې دافغا نستان د حکو مت نظر دخپرونو او اعلاميو په وسيله څـرگنـد شوی، دغه ټولی پيښی دپاکستان لخواجوړی شوی دسيسی دی ،اود هغو هدف دادی چـــه افغا نستان په هغو کښې ورگډ کـړی ۰ د شيرپاؤ وژل په پاکستان کښې د ديموکراسی پای دی ۰چه‌ښاغلی بوټو په هغه افتخار کاؤ

**پوښتنه :**

آيادددولت‌ښاغلی رئيس‌اوصدراعظم فکـرکوی د پښتنواوبلوڅودنهضت اودافغانستان‌سره‌دبوټو دحکومت دورځ په‌ورځ زياتدو نکی دښمنی تر مينځ او پاکستان‌ته دوسلی دصادرولو دبنديز دلری کولو تر منځ رابطه شته ۰

هيله لرم دنيمی وچی دسولی اوثبات د پاره دامريکا ددغه اقدام دعواقبو په بـــاب ستاسو په نظريو باندی خبرشم ؟

خواب :

پدغه برخه‌کښی زمونږ اوستاسی نظر ورته دی پاکستان ته‌دامریکا دوسلی‌دبندیزلری کول لکه‌څنګه‌چه ستاسی‌دپاره‌بنه‌ده‌دی زمونږدپاره‌هم ښه‌نه ښکاری کیږی‌په‌تیره بیاپدغه‌وخت کښی‌چه‌د پښتنو اوبلوڅو آزادی غوښتنی دنهضت دله مینځه وړلو دپاره تری کار اخیستل کیږی سره ددی چه امریکائیان وایی چه پاکستا ن وسله په نغدو پیسو پیری خو ټول پوهیږی چه پدغه سیمه کښی کوم هیواد کولای شی وسله وپیری ۰

نو فکر کوم پاکستان‌ته دوسلو دبندیزلری کول اواستول پدغه سیمه‌کښی به دقوی انډول ګډوډ اوددی سیمی دنارامی او تشویش چــه مونږ ټول پکی ژوند کوو سبب شی .

پوښتنه :

تاسی فکر کوی چه پاکستان به وکـولای شی وسله وپیریء ؟

ځواب :

زه یقین‌نلرم پاکستان‌وکولای‌شی دوسلی‌پیسی ورکاندی خو ښائی پاکستان دغه پیسی لــه بلی لاری ترلاسه کړی او دوسلی بیه ورکړی۰

پوښتنه :

دپاکستان عسکری اقداماتو په نتیجه کښی سرګرد انو پښتنو همدا اوس افغا نستان ته پناه وړیده مونږ په هندو ستان کښی په‌ختیځ پاکستان کښی دهمدغه شان یوی پلیــــدی پیښی په عواقبو خبر یوتاســو دغه کشاله چه دافغا نستان په څنګ کښی پراخیږی څنګه ارزیابی کوی ؟

ځواب :

پښتنانه پناه رواوړ ونکی لاتراوسه پوری دبلوڅانو په شان افغا نستان ته زیات ندی راغلی خوله هغه حالت څخه چه پاکستان‌غوره کړی دا احتمال شته چه پښتانه هم‌افغانستان ته پناه راوړی .

پوښتنه :

افغانستان دبلوڅو پناه راوړونکو دپاره‌څه ترتیب نیولی اوپه راتلونکی وخت کښی به که چیری دهغوی شمیر زیات شی څه‌تدبیرونه ونیول شی ؟

ځواب :

یواځنی کار چه افغانستان ئی کولی شی دادی چه دغو خلکو ته ځای ورکړی او هغوی اعاشه کړی اوکــه په آینده‌کښی ددوی شمیر زیات شوپه هغه صورت کښی مجبور یــــو بین‌المللی موسسو ته مراجعه او مرسته تری وغواړو ۰

پوښتنه :

پدی وروستیو وختو کښی دایران شاهنشاه دبوتو سره دخصوصــی خبــرو دپاره لړکانی ته سفر کړی ؤ . ددولـــت ښاغلی رئیس او صدراعظم دحالاتودښه ګیدواو دافغانستان او پاکستان د اختــلافو نودحل سره دمرستی د پاره دتهران رول څنګه ارزیابی کوی ۰ دلته باید ددی حقیقت یادونه وکړم چه اعلیحضرت ماته وویل که چیری کابل او اسلام آبــاد دواړه هیله مندوی غواړی دوستان رول په غاړه واخلی ۰

**ځواب :**

پدی چه دایران باچا پاکستان ته سفر کوی خبریو ـخوداچه څهٔ ئی ویلی تراوسه پوری کوم رپوټ ندی رارسیدلی ۰

هغه څه چهٔ باندنیو جریدو پری تبصره کړی دخبرو داجندایوه موضوع دافغانستان او پاکستان داختلاف موضوع وه۰ تراوسه پوری دخبرو تفصیل ندی څرگند شوی ۰

پدی باره کښی چه دایران شاهنشاه د افغانستان اوپاکستان تر مینځ داختلاف د حل دپاره ښه نظر لری . اوسنی خبره نه بلکه دشپاړ سوکالود مخه خبره ده ۰فکر کوم چه دغه هیله بهٔ نن هم ولری ۰دافغانستان دریغ دوی ته څرگند دی که ایران هغه ښه هیله چه لری ئی غوښتی وی زمونږ داختلاف د حل دپاره شرافت نه ډکه لاره پیدا کړی افغانستان دهغه هرکلی کوی او په درنــــده سترگو ورته گوی ۰

**پوښتنه :**

پدی صورت کښی تاسو دهغه په خوښــی سره هرکلی کوی ؟

**ځواب :**

طبعاً دواقعبینانه هڅو ، نه یواځی دایران بلکه دهر هیواد چه وی پهٔخوښی سره هـر کلی کوو ۰

**دکب ۱۸ :**

دباندنیو چارو دوزارت نطاق وویل چـــه دکــب دمیاشتی په شپاړسمه یو سل و شل بلوڅــو پناه راوړونکــو سره دماشومانــو او ښځو دپاکستان د حکومت دنظامی قواوو د بی رحمانه حملوله اثره د افغانستان خاوری ته پناه راوړی ده ۰

نطاق زیاته کړه چه دافغانستان دحکومت مربوط مقاماتواودافغانیدسری میاشتی موسسی دهغوی داعاشی او اباتی لپاره مخصوص ترتیبات نیولی دی ۰

**د کب ۱۹ :**

دباندنیو چارو دوزارت نطاق وویل چه د بلوڅوپناه راوړونکو دنژدی یوسلو درویشتو تنو دراتللو له امله چه د پاکستان دنظامی پوځو نودظلم او تیری نه دخلاصی د پاره د بلوڅو دپخوانیو پناه راوړونکو ډلو پــه لـړ کښی دافغانستان خاوری ته پناه راوړی ده .

ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمد داؤد ملگرو ملتود عمومیسر منشی گورتهایم په نامه پهٔدی وروستیو وختو کښی په یوپیغام کښــی د پــاکستـان د حکــو مت دغیـــر انسانی ظلم په باره کښی ددغو پناراوړونکو حالت ته دده اودبین المللی موسسو پاماړولی دی ۰

نطاق زیاته کړه ددولت دښاغلی رئیس او صدرا عظم پهٔپیغام کښی څرگنده شویده که څه هم ترننه پوری دافغانستان حکومت دغو پناه راوړونکو سره دمرستی دپاره د هیـــڅ ډول کوښښ نه ډډه ندی کړی خوڅرنگه چهٔ هغوی شمیر هم مـخ په زیاتیدو دی نو له دی امله دملگروملتو دعمومی منشی له خوااو د افغانستان په نامه دهلال احمر اودبین المللی سر صلیب موسسی او دپناه وړونکو له پاره دملگرو ملتو دمخصوصی اداری پاملرنه دغو پناه وړونکو ته مرستی دپاره غوښتنی ده ۰

د کب ۲۱:

د افغانستان ملی مشر ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤددښاغلی فخرالدین علی احمددهنددجمهوررئیس په بلنه دکب د۱۹ تر۲۳ پوری هند ته رسمی سفر وکړ ۰

دافغانستان ملی مشر ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمد داؤد په هغه میلمستیا کښی چه ددوی په ویاړ دهند د جمهور رئیس ښاغلی فخرالدین علی احمد له خوا تـرتیب شوی وه ۰په خپله وینا کښی کله چه افغانستان دخارجی سیاست سره تماس وکړ داسـی وفرمایل :

دافغانستان خارجی سیاست همیشه د فعالی بیطرفی ـ اودنړی پرمسایلو د آزاد قضاوت پراصل متکی دی ۰ او دا سیاست ئی دآرامی دساتلو او دصلحی داستقرار د پاره په سیمه او نړی کښی دیره ښه وسیله تشخیص کړیده هر هغه عمل چه دغی ماحول دبر هم ولو سبب وگرزی دافغانستان دجدی غند نی موجب گرزی ۰لیکن ددغی نیکی عقیدی سره سره بیاهم گورو چه زمونږ په سیمه کښی داسی یو حکومت شته دی چه دخلکو ملی آرزو گانو ته اهمیت ورکوی او په غلطه اوخطا سره غواړی چه دقوی داستعمال په ذریعه دهغوی ملـی احساسات او بشری کـرامت تر خپـو لاندی کړی ۰

څرنگه چه پوهیږی دافغانستـــان او د پاکستان تر منځ یوازنی سیاسی اختـلاف په غیر دپښتنو او بلوڅو ورونو دحقه حقوقو د تامین څخه بل شی ندی ۰ مونږ ددغه یوازنی اختـلاف دحل لپاره همیشه خپله آماده گـی اظهار کړیده لیکن گورو چه پاکستان حاضر ندی زمونږ دغه علاقه مندی ته مثبت ځواب ورکړی ۰

محترم جلالتماب ـ گرانو دوستـانــو! د پاکستان مختلفه حکومتونو همیشه دسیمی د نورو هیوادو څخه ایره دداخلی استقرار اود سلاح دحاصلولو وسیله گرزولی ده ـ حـال داچه داپخپله پاکستان دی چه دمختلفه نظامی تړونونو په شاملیدو سره اودمختلفی اسلحی په انبار ولوسره دسیمی دهیوادو اندیښنی ئی منځ ته راوړی او دسیمی آرامی او استقرار ئی له منځه وړیدی ۰دامریکا داسلحی دصادرولو بندیز چه په دی اواخرو کښی د پاکستان دپاره دمنځ ته راوړ په داسی حال کښی چه پاکستان په بلوچستان او پښتونستان کښی په وینو تویلولو مشغول دی دافغانستان دحکومت او خلکو د ژوری اندیښنی موجب گرځیدلی او په منطقه کښی به دموازنی د منځه وړلو سبب اود تسلیحاتی مسابقو دمنځ ته راتلو امکانات برابر کړی۰او دسیمی دصلحی دلازیاد تهدید سبب به وگرځی ۰افغانستان توقع لری دامریکـــا حکومت په رښتیانی توگه هغه رنگه چه ئـی اعلام کړیدی ۰دصلح جویانه کوښښونو پــه ملاتړ سره په جنوب آسیا کښی دصـــلح د استقرار موجبات فراهم کړی ۰تر څوددی سیمی خلك پر تسلیحیا تو باندی دخپلو محدود و منابعو دخرځلا په عوض هغه دانکشافی پروژو خواته متوجه کړی ۰

دافغانستان او هند دوستی دصلح دوستی دصلح خواهی پراساس ولاړه ده ،دواړه ،

هیوادونه په سیمه کښی صلحه غــــواړی ۰ افغا نستان اوهند دتفاهم او دوستی داصــل ـ په رعایت سره اوذات البینی مسائـــلو د مسالمت آمیزحل هڅوته د عدالت او واقع بینی په اساس کامله عقیده لری ۰او نظامی‌عملیات او بیمورده تسلیحات یو ناوړه عمل بو لی او هغه دمنطقی اود جهانی صلحی د پاره‌مفید نه ګڼی داپاکستان وو اودی چه‌په سیمه‌کښی دتشویش او اضطراب سبب ګرځی ۰

**د کب ۲۱ :**

سیاسی معین ښاغلی وحید عبدالـــــله د ددولت ښاغلی رئیس او صدراعظم او دهنــد د خارجه وزیر ښاغلی چاوان دمذاکرو پــــه باره کښی خبرنګارانوته وویل چه د ښاغلــی محمد داؤد او ښاغلی چاوان مذاکری دسیمی پر اوضاعو تمرکز درلود سیاسی ښاغلی معین وویل چه‌د افغانستان او پاکستان روابط د پاکستان دحکــومت داخرینیو اقــداماتو نــــه پس چه دنشنل عوامی پارټی اودهغه درهبرانو بمقابل کښی کړیدی خراب شوی دی ۰

هغه زیاته کړه باید ووایم چه متاسفانه پاکستان هغه تفاهم او مذاکره چه په نظـــر کښی وه له منځه وړی ده ۰

ښاغلی وحید عبدالله یاده کړه چه فیصله شوی وه چه‌ښاغلی آغاشاهی د پاکستان د خارجه چارو معین ددلوپه میاشت کښـــی د کابل نه لیدنه وکړی ترڅو دداړو هیوادو د لیډرانو دمذاکری دپاره زمینه برابره شی اما د پاکستان دحکومت اقدامات دنیشنل عوامی پارټی په مقابل کښی دغه تفاهم لــه منځــه یوړی ۰ افغانستان دمذاکری څخه استقبال کوی اواوس داکار په بشپړه توګه په ښاغلی بوټو پوری تعلق لری چه خپل دریغ لکه څنګه چه دسلواغی دمیاشتی دیوویشتمی نیټی څخه د مخه وو یوځل بیا تجدید کړی ۰

**دکب ۲۳ :**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دښاغلی شیخ مجیب الرحمن د بنګلــه دیش د جمهور رئیس په بلنه د کب ۲۳ څـخه د کب تر ۲۵ ـ پوری بنګله دیش ته رسمی‌سفر وکړ ۰

دافغا نستان ملی مشر په هغه میلمستیـــا کښی چه ددوی په ویاړ دبنګله دیش دجمهور رئیس له خواشوی وه دنورو تذکراتو په‌ضمن کښی داسی وفرمایل :

افغا نستان امیدلری ـچه زمونږ په سیمه کښی دواقعیتونو منل مینځ ته راشی او ددی سیمی دټولو خلکو دحقه حقوقو او فیصلـــی احترام وشی ۰

مونږ پدی عقیده یوچه په سیمه کښی‌سوله یوازی دټولو ذیعلاقه اړخونو دهلو ځلــو او تیاری له لاری تامینیدی شی له بده مرغه‌لیدل کیږی چه‌مونږله‌ښو نتیونو سره‌سره دپاکستان حکومت دسولی پدغو هلوځلو کښی برخه نه اخلی ۰

لکه چه تاسی جلالتماب په خپله خبریاست دافغانستان خلك له پښتنو او بلوڅانو سره تاریخی اوعنعنوی اړیکی لری ۰

زمونږ خلك دخپلو پښتنواو بلوڅو وروڼو په مقابل کښی دپاکستان دظلمونو په وړاندی

بی علاقی نشی پاتی کیدی .

پاکستان ته دوسلی دبرابر ولود بندیزونو لری کیدل چه پدی وروستیو وختو کښی د امریکا دمتحدو ایالاتو لخوا اعلان شول د افغانستان او دسیمی دځینو هیوادو د زیاتی اندیښنی سبب شویدی .

**دکب ۲۵ :**

دباند نیوچارو دوزارت سیاسی معین ښاغلی وحید عبدالله دکب په۲۵ نیټه دبنګله دیش په مرکز ډاکه کښی په یوه مطبو عاتی مرکه کی وویل افغا نستان ټینګه عقیده لری چه د افغا نستان او پاکستان تر منځ اختلاف دوستانه لاری ځخه حل کیدی شی .

ده وویل چه اوس داخبره د پاکستان په صدرا عظم بوټو پوری اړه لری چه دد غه اختلاف دحل دپاره په لازم اقدام لاس پوری کړی .

ښاغلی وحید عبدالله وویل افغانستان د خبرو دپاره چمتو دی .

ښاغلی وحید عبدالله دپاکستان دغه ادعاچه په پښتونستان او بلوچستان کښی پیښی دپاکستان دکورنیو چاروجزء دی رده کړه اووی ویل چه ددغو سیمو پښتانه او بلوڅا ن زمونږ وروڼه دی نودد غود واړو سیمو حالات زمونږ د ژوری اندیښنی سبب شویدی .

ده زیاته کړه چه پدغو سیموکی دحالا تو دلاکړ کیچن کیدو پهاثر ددغه ځای یوزیا ت شمیر خلکو دافغا نستان خاوری ته پنا ه راوړی ده ځکه چه دغه خلك زمونږ وروڼه دی نونه شو کولای چه دحالاتو په مقابل کښی بی علاقی پاتی شو .

ښاغلی وحید عبدالله ددواړو هیوادوترمنځ داوسنی سیاسی اختلاف دلـه منځه وړلـو د پاره دپاکستان سره دافغا نستان دخبرو په باب دمرکی په ترځ کښی وویل تاکل شویو چه دپاکستان باندنیو چارو دوزارت خارجـه سکرتر ښاغلی آغاشاهی دسلواغی دمیاشتی په ۲٦ نیټه کابل ته راغلی وای او دهغـه سره می خبری کړی وای خو ښاغلی آغاشاهی له دی کبله کابل ته رانه غی چه دسلواغی دمیاشتی په ۲۱ نیټه دپاکستان حکومت دملی عوامی گوند ړنګ کړاودهغه مشران یـــی بندی کړل .

پدی ډول ددی دپاره چه ددواړو هیواد و تر منځ خبری وشی بایدد پاکستان صدراعظم ښاغلی بوټود سلواغی دمیاشتی د۲۱ نیټـــی ځخه دمخه شرایطو سرهسمه فضا برابره کړی .

ښاغلی وحید عبدالله وویل باید دپښتنو اوبلوڅو خلکو حقه حقوقو اعاده شی .

افغانستان غواړی چه ددغی موضوع دپاره دحل لاره پیدا شی او داپه پاکستان پوری اړهلری چهپه سوله ایزو وسایلو سره پـه مشکلاتوبر یالی شی .

**دکب ۲٦ :**

دبـــانـدنیـو چـارو دوزارت نطـــا ق د افغانستان په باب دپاکستان باندنیوچارودوزارت د نطاق دوروستیو خرگند ونو په ځواب کښیوویل: که څه هم دپاکستان حکومت هڅهکوی نړی والوته وښیی چه افغانستان ددواړو هیوادونو

ترمنځ دخبرو په باب مخکینی شرایط وړاندې کوی خو حقیقت دادی ـچه دپاکستان حکومت په لوی لاس دحالاتو په بدلولو ـیعنی د ملی عوامی ګوند په ړنګولو اود پښتنو او بلوڅو دخلکود منتخبو مشرانو په بندی کولــو ــ د افغا نستان او پاکستان دخبرو پیل کــړوړ کــړ .

نوله دی امله دخبرو دپیل په غرض پــه ملی عوامی ګوند دبندیز دلری کولو په باب دافغا نستان نظر دپاکستان په چارو کښی لاس وهل ندی ـځکه پاکستان پو هیږی چه افغا نستان ددغه راز خپه کوونکو اقداما تو په مقابل‌کښی‌چه په‌لوی لاس له‌خپلوحقوقو نه د پښتنو او بلوڅو خلکو دمحرو مولو دپاره شویدی ،بی علاقی نشی پاتی کیدی .

هیڅ سلیم عقل به داونه شی منلی ، په داسی حال کښی چه‌دپا کستان حکومت دخبرو له پاره دښی فضا دبرابر ولوپه غــرض د کوښښ په ځای دپښتنو او بلوڅو د خلکوپه ضد دزور زیاتی تدابیر زیاتوی افغا نستان له پاکستان سره دخبرو لار خـلاصه کړی ددغــه راز شرایطو لاندی چه د پاکستان له‌خوا پیدا شویدی دپښتنو او بلوڅو خلکو دحقه حقوقو دثابتولو دپاره ، به خبری‌کومه نتیجه‌ورنکړی.

نطاق دافغا نستان په باب دپاکستان د باندنیو چارو دوزارت د نطاق دتبصری پــه باب وویل :چه دپاکستان د حکومت مربو ط مقامات چه تشدد او مطلق العنانی د هغــه حکومت داداری دځرنګوالی له ممیزاتو څخه‌دی او دهغه دڅو ورځو مخکی سختو او غیــر دیموکر اتیکــو تــد ا بیــر و یــو ځــل بیاثابته کړ، چه دغه حکومت دخلکو اصلی او اساسی حقوقو اوفردی آزاد یوته اهمت ندی قایل باید دپاکستان دخلکو دغو لولوو دپاره دنورو هیوادونو په باب حقایق داسی وانه‌ـ ړوی چه پخپله ددوی مرام ترسره شی .

نطاق دپا کستان دباندنیو چارو دوزارتد نطاق دغه ادعارده کړه چه دپاکستان دباندنیو چارو دوزارت دخارجه سکرتر ښاغلی آغاشاهی سره دباندنیو چارو دوزارت دسیاسی معیــن ښاغلی وحید عبدالله دکتلو دمــوضــوع پــه یادونی سره ،دافغانستان حکومت ددیپلوماسی خبرود پټوالی بنسټ نړولی دی اووی ویل: پاکستانی مقاماتو په خپله دمخه په هغه سر خــلاصی (اید میمو ارکښی) چه‌دسلواغی په ۲٦ نیټی یی په اسلام آباد کښی زیاتــرو اوسیدونکو سفیرانو ته‌وویشه اوپه هغه کښی دحقایقو په اړولو سره دحالاتو انکشا فات هم په غلط ډول وړاندی شویدی ،په خپله‌د دی موضوع محرمیت له مینځه وړی ؤ .

د پاکستان دباندنیو چارو دوزارت نطــاق ددغه بی‌ځایه لګولوسره غواړی پړه دافغانستان په غاړه واچوی نطاق څرګنده کړه دالو مړی ځل ندی چه پاکستانی مقاماتو په دغه شا ن عمل لاس پوری کړیدی .

نطاق یوځل بیاتائید کړه څنګه چــــه د افغا نستان ددولت ښاغلی رئیس او صدراعظم څوڅوځله ویلی دی . افغانستان دپښتنو او بلوڅو خلکو دحقه حقوقو دور کولو دموضوع

دحل په باب دپاکستان دحکومت سره دخبرو دپاره چمتو دی ــخو لازمه ده چه دپاکستان حکومت ددغو خبرو دکامیابی د تامین په مقصد چه اوسنی حالت مسؤولیت دهغه په غــاړه دی سمه لاره او فضا پیدا کړی ٠

**د کب ۲٦ :**

د افغانستان رهبر او ملی مشر ښاغلی‌محمد داؤد دخپل رسمی مسافرت په باره کښی د بنګله دیش نه کندهار ته راستون شو ٠ د افغانستان ملی مشر او ددولت رئیس دکندهار دښاریانو په محفل کښی پخپل بیان کښی‌هغه وخت چه ددښمنانو پروپاګند او بــی ځـا یه او بی اثره اتهاماتو ته اشاره کوله وفرمایــل٠

تر هغه ورځی چه په دغه خاوره او ددغی زړ ورو په مځکه کښی یوفرد هم موجود وی په هیڅ صورت سره دپښتنواو بلوڅو ورونو دحقوقو دمطالبی څخه‌صرف نظر نشی کولای٠

**د کب ۲۷ :**

له‌کراچی نه درارسیدلو رپوټونو سره سم دسند په ایالتی اسامبله کښــی د مخالفــو ګوندونو نمایندګانو وړمه ورځ دکراچی پــــه ښار کښی مظاهره وکړه ٠

په هغو لایحو کښی‌چه مظاهره کوونکو له ځانه سره وړل دخان عبدا لولیخان او ملــی عوامی ګوند دنورو مشرانو دبندی کیدو او د پاکستان د حکومت په خــلاف شعارونه ورــ کول ٠

پرون دسندپه ټول ایالت کښی دمخالفــو ګوند ونود نمایندګانو په غوښتنه یوزیـــات شمیر خلکو په پراخی مظاهری لاس پوری‌کړ اودمخالفو ګوندونودنمایندګانو ددریغ ملاتړیی وکړ ٠

همدغه راز دتیری جمعی په ورځ د جمعی د لمانځه نه وروسته په زیاتر وجوماتونو کښی د پاکستان د حکومت په خـــلاف وینا ګانی وشوی ٠

**دکب ۲۹ :**

دافغانستان دجمهوری‌دولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی‌محمدداؤدد۱۳۵۳کال د۲٦ نیټی څخه تر ۲۹نیټی پوری د عراق دجمهور رئیس ښاغلی احمد حسن البکرپه بلنه عراق ته رسمی‌سفر وکړ او ددغه سفر په باره کښی یوه ګډه اعــلامیه خپره شوه ، په دغه اعــلامیه کښی دسیمی دحالاتو په حلقه داسی ویل شوی‌دی:

دواړو خواوپه خپله سیمه کښی د حالاتو او له هغوڅخه دپیدا شویو خطرونو پـــــه باب چه سوله او امنیت تهدید وی غوروکړ٠

دواړو خواؤ په دغه برخه کښی خپله عقیده څرګنده کړه چه دغه بحرانی حالات داستعمار دطرحو او دسیسو محصول دی او په سیمه کښی امنیت اوسوله په خطر کښی اچولی او دهغی دخلکو داجتماعی پر مختیا او پرمختګ ځنډ ګیږی

دواړو خواؤ پدغی خبری عقیده څرګنده کړه چه دسیمی دهیواد ونو ترمنځ داختــلا فونود حل ډیره ښه وسیله خبری او دعدالـــت د اصولو سره سم تفاهم دی ٠

**دوری لومړی ۱۳۵٤ :**

دنوی کال درارسیدوپه‌مناسبت‌ددولت ښاغلی رئیس او صدراعظم بــه خبــل پیغـام کښی

خپلو پښتنو نستانی او بلوڅوخوینـــدو او وروڼه ته داسی فرمایلی دی :

د پوره برې په امید دافغا نستان د خلکو دخپلو ملګرو او ځان ژوری مبارکی ددغه نوی کال په مناسبت خپلو پښتو نستانی او بلوڅو خویند و او وروڼو ته څرګند وم .

**دوری ۳ :**

دپښتنو اوبلوڅو دبیلوبیلو قومونو مشرانو اوپه افغا نستان کښی دپښتو نستـــان او بلوچستان داوسیدونکو پښتنو او بلو څـو مشرانو په خپلو پیغامو نوکښی د ۱۳۵۴کال درابرید وله امله ددولت رئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد ، دمرکزی کمیټی او کابینی غړیو او افغانستان ټولو خلکـــو ته دزړه د کومی مبارکی ویلی او دافغا نستان دزیاتی لوړ تیـــا او د افـــغان ملت دزیـا تی هوساینی هیله ئی کړیده .

**دوری ۱۳ :**

له کراچی څخه درارسیدلی خبر له مخـې د پاکستان دسند دایالت په اسامبله کښی د مخالفو ګوند ونو نماینډ ګانو چه داسامبلی له پسر لنیو غونډ وسره یی دملی عوامـــی ګوند دړنګیدو اودهغه دمشرانو دبندی کیدوپه خـلاف داعتراض په نامه پریکړه کړی ده ، پدغه ایالت کښی د حکومت له خوا دیو سلو څلور څلویښتمی غیر دیمو کراتیکی مادی‌نافذ یدل سخت غندلی دی .

دغه ماده چه له څو اونیو راهیسی دسندپه ایالت کښی نافذه شوی له پنځو تنو څـخه دزیاتو کسانو ټولنی منع کوی .

دمخالفو ګوند ونو نمایند ګانو ویلی ـ څرنګه چه دغه ماده یوازی دمخالفو ګوند ونود ټولنو په باب اجرا شوی اوکله چه دخلکو د ګوند غړی او حکومت ټولنه کوی پدغی مادی باندی سترګی پټیږی نومعلومیږی‌چه دپاکستان حکومت ددغی مادی په وسیله غواړی خپـــل اقتدار ته دوام ورکړی او دخپلو مخالفینو د وینا ؤ او فعالیتو نو خنډشی .

دهغو خبرو نوله مخی چه درویتر نماینده‌له کراچی څخه استولی وړمه ورځ ددغه ښاردډان دورځپانی په اداره کښی چاودنه شوی چــه ویل کیږی دیوه ساعتی بم څخه پیدا شویؤ.

ددغی پیښی په اثر دوه تنه ژوبل شو ی اوددغی ورځپانی ادا روته‌زیات تاوان رسیدلی دی .

**دوری ۱٤ :**

دباند نیو چارو دوزارت اطلاعا تو مدیریت خبرورکړچه‌دهغوبلوڅودزیاتیدونکی شمیرپه‌باب چه‌افغانستان ته‌یی پناه راوړی اودملګروملتو دمربوطو بین‌المللی موسسودهمکاری اومرستی د ضرورت په باب ددغی موسسی دعمومی‌منشی ډاکتر کورت والدهایم په نامه ددولت درئیس او صدراعظم ښاغلی محمد داؤد دلیکونـــو وروسته پدی‌وروستیو وختوکښی ښاغلی‌والدهایم ددولت دښاغلی رئیس او صدرا عظم په نامه دوری دپنځمی نیټی په خپل پیغام کښی‌ځواب ویلی دی .

له‌دی امله چه باید ملګری ملتونه ددغوپناه راوړونکو په باب خپل بشر غوښتو نکـــــی مسؤولیتونه پوره ترسره کړی دپناه وړونکو

دپاره یی دملګرو ملتوله عالي کمشنر شخصه غوښتې دي چه دبلوڅو پناه وړونکو اړتیاوې معلومې کړي او دافغا نستان دحکومت پــــه مشوره دوی ته دمرستې دور کولو دپـــــره ښه لاره مطالعه کړي ۰

دوری ۱٦ :

د کراچۍ څخه رارسیدلي خبرونه وایي چه دسند دایالتي اسامبلۍ دپسر لني غـونډو سره مخالفو ګوندونو دنمایند ګانو پریکړې د دغې اسامبلۍ کار درکود سره مخامخ کـــړې لکه چه په خپله دواکمن ګوند غړې هـــــم د مخالفو ګوند ونود نمایند ګانو دنه ګډون په نسبت داسامبلۍ دغونډو سره کومه مینه نه لري ۰

او ددغه کار په نتیجه کښې د هغې غونډې دنصاب نه پوره کیدو په نسبـــت فسخـــه کیږي ۰

دوری ۱۷ :

د رویټر نماینده خبر ورکړ یدی چــــه د پاکستان دسنا مجلس پدې وروستیو وختـو کښې د حکومت یوه پیشنهاد شوی لایحــــه تصویب کړی چه دهغې له مخې حکومت واک تر لاسه کوی چه په پښتو نستان کښې قبایلو ته په ډله ایز ډول جزاور کوی ۰

دسنا په مجلس کښې دلایحې دتصویب په وخت کښې د حکومت دګوند غړیو نه پرته نورو ګوندونو غړیو ګډون نه ووکړی ۰

مخالفو ګوند ونودملي عوامي ګوند دړنګیدو اودهغه دمشرانو دبند کیدو په ضد اعتراض په نامه دسنا مجلس غونډو سره پریکـــړه کړیده ۰

درویټر نماینده څرګند ه کړیده دقبایلو د ډله ایزو مجازاتو لایحه چه پخواهم دپاکستان په ملي اسامبله کښې له هغې سره دمخالفو ګوندونو د پریکړې په وخت کښې دپیپلز د ګوند دمربوطو غړیو لخوا تصویب شـــوی ؤ حکومت ته یی واك ورکړیدی کـــه چیری د پښتو نستان قبایل دخراب کاري دتورونو لـــه پیدا کولو یاپه پیدا کولو کښې له همکارۍنه ډډه وکړي مربوط قبایل دي په ډله ایز ډول ترسلو زرو روپو پورې نغدي جریمه کړي یاد په ډله ایز ډول دنامعلومې مودې د پـــا ره بندیان کړي ۰

په اسلام آباد کښې سیاسي کتونکو ویلي دي دهغه هیواد دپارلمان لخوا دحکـــومت د دغه پیشنهاد دتصویب نه یوازې دپښتونستان دقبائیلو په ضد دپاکستان د حکومت توپیري سیاست او چال چلند څرګند وي بلکه په ښکاره ډول ددغه عام الشمول حقوقي پرنسیپ مخالف همدي چه هیڅوك د کورنۍ یا قبایلي یاولسي خپلولۍ لهامله دیوتورن دجرم شریك نشي بلل کیدای ۰

دوری ۱۸ :

ددولت رئیس او صدرا عظم ښاغلي محمد داؤد په خپله مرکـه کښې دفنلند دیحتــــی نیت کوو الهدت دنشراتي موسسې دنماینده او دسومن کووا لهتي دخبري مجلې د خبریال ښاغلي یوکوها واسره د پښتونستان دقضیې په باب داسې وفرمایل :

**پوښتنه :**

تاسی جناب دپاکستان دصدرا عظم ښاغلی بوټو سره دخپل هیواد اوسنی علایق څه ډول څرګندوۍ ؟

**ځواب :**

له بده مرغه زموږ روابط ښه ندی .

په خوا شینی سره باید ووایم چی دخارجی سیاست په ټول چوکاټ کښی یوازنی هیواد چی موږ ونشو کړای مسالی دوستانه طرح کړو پاکستان دی ،هیله لروچی په پای کښی به پاکستان دغی موضوع ته ملتفت شی اویو ورځ به په دی بریالی شوچی خپله دغه ستونزه په دوستانه اوسولو ایزه توګه حل کړو .

**پوښتنه :**

تاسی دپښتنو او بلوڅو خلکو سره دخپلواکی په لاس ته راوړلو کښی د دوی د مبارزو سره څه جدی مرسته کړیده ؟

**ځواب :**

که چیری دغه قضیه په تفصیل سره وڅیړو لیدل کیږی چی دغه موضوع ډیره اوږده سابقه لری . په دغی څیړنی کښی موږ ته معلو میږی چه دغه مساله نه په ښاغلی بوټو پوری ارتباط لری اونه په پاکستان ،بلکه له بده مرغه او له بده مرغه دغه موضوع له هغو دردناکو بقا یا وڅخه ده چی داستعمار له دوری څخه په دغه خاوری کښی پاتی ده .

دپښتنو او بلوڅو خلکو حقه حقوقو څخه په سوله ایزډول ملاتړ خپله ملی او وجدانی وظیفه بولو .

**پوښتنه :**

تاسو جناب ددغه ستونزی حل څه ډو ل اټکل کوی ؟

**ځواب :**

دریځونه ډیرلری دی .ددی موضوع حل په راتلونکی وخت کښی ددواړو خواوو په ښه نیت اوښه تفاهم پوری اړه لری .

**پوښتنه :**

ستاسو جناب په نظر کښی د پاکستا ن راتلونکی حالات څه ډول بر یښی آیا په دوهم ویتنام به بدل شی .د جنګ دپیښید وپه صورت کښی به آیا افغانستان په هغه کی برخه واخلی ؟

**ځواب :**

په پاکستان کښی دننه حالات پخپله دوی ته معلوم دی .

موږ هیله نه لرو چی په پاکستان کښی جنګ اوبد بختی راشی اواټکل یی نشو کولای او که ددوی ترمنځ کورنی جنګ وشی دعا کوو چه دغه بدبختی له منځه لاړه شی .

**پوښتنه :**

د افغا نستان اردو دشوروی اتحاد لخوا تربیه او سمبال شویدی .دغه راز د آزاد ی غوښتنی نهضت په پاکستان کښی -تاسو جناب پدی برخو کښی دشوروی اتحاد علاقمندی څه ډول ارزیابی کوۍ ؟

**ځواب :**

په دی کی شك نشته چی دافغا نستان اردو په هغه وسله چی له شوروی اتحاد څخه مواخیستی ده سمبال شویدی او زموږ منصبداران هم هلته او په نورو هیواد وکښی روزل کیږی خود پښتنو او بلوڅو خلکو د

آزادي غوښتنې دمبارزو سره ددې موضوع په رابطه پوره پوه نه شوم ، دهغوی ملي مبارزه ددغې ورځې څخه نه دې ـ بلکه دیوې پیړۍ څخه مخکښې دغه مبارزه دهند په نیمه وچه کښې دانګلستان دحکمروايي په مقابل کښې موجوده وه . یعنې د پاکستان دجوړیدو نه مخکښې ناسو دافغانستان تاریخ مطالعه کړی وینۍچې دآزادي غوښتونکو زیات عمر په نیمه وچــــه کښې دانګلیس داستعمار په مقابل کښې په همدې مجادله تیر شويدې .

تاسو وینې تر هغه وخته پورې چــــې د انګلیس د پوځو نو وروستې افراد دهغه ځای څخه وتل بیا هم پښتانه او بلوڅ هغه خلــك ووچې تر وروستې شیبې دانګلیس په خــلاف مجادله کوله له دې امله دغه دواړه موضو ع ګانې هیڅ ارتباط سره نلري . باید وپوهیزو چې دخپلو حقه حقوقو دلاس ته وروړلو تروخته پورې به د پښتنو او بلوڅو مبارزه دوام وکړي او هیڅ ډول فشار او تجدید به دوی دخپلې ملي مبارزې څخه وانه ړوي .

**دوری ۱۹ :**

دکراچې نه درارسید لو خبرونو له مخې د هغه ځنډله امله چه دڅوورځو راهیسې دسند د ایالت داسامبلې غونډې وسره دمخالفو ګندونو دنمایند ګانو دپریکړې له امله پیښ شوی ؤد پاکستان حکومت ددغې اسامبلې غونډې تریوې نامعلومې نیټې پورې وځنډولې .

د پاکستان حکومت پخواد پاکستان دسنا او ملي اسامبلې غونډې او همدا رنګه د پښتو ـ نستان داسامبلې غونډې تریوې نا معلو مې نیټې پورې ځنډولې دی .

**دوری ۲۳ :**

د فرانسپرس او رویتر نمایندګـانو لـــه راولپنډۍ اولاهورنه خبرورکړیدی چه په ټول پاکستان کښې حالات بحراني دي .

دمظاهره کوونکو ـ خلکو او امنیتي قواؤ تر مینځ اړخ وډب همدغه راز روان دی .

د پښتونستان څخه رارسیدلې خبرونه وايي چه په دغه ځای کښې حالات نور هم خراب شوی پرون هم ټول دکانو نه تړل شوی وو او دښار دزرو نوکسانو په ملګرتیا دمحصلینو او کار ګرانو لخواپه واټو نوکښې سختې او پراخې مظاهرې رواني وی .

د پیښور پوهنتون دنظامي قواؤ لخوا نیول شوی ، محصلین دلیلیو او نور هغو ودانیــو څخه چه محصلین دپوهنتون دتړل کیدو پــه وخت کښې پکښې ژوند کوی ایستل شویدی .

دښار په سترو واټونو کښې نظامي وسله وال یونټو نه دحالاتو څارنه کوی مظاهـــره کوونکو دملي عوامي ګوندا و دهغه دمشرانو په مقابل کښې دپاکستان د حکومت او دهغه د اقداماتو په ضد شعار ورکاؤ .

**دوری ۲۳ :**

دراولپنډۍ نه د فرانسپرس نماینده خبــر ورکړیدی چه د پاکستان ستری محکمې وړمه ورځ دهغه هیواد دحکومت ددې ادعاپه با ب خپلې خبرې پیل کړې چه ملي عوامي ګونــد چه د تیرې فبرورۍ په میاشت کښې ړنګك شوی د پاکستان دخاورې دتمامیت په خــلاف فعالیت کاوه .

دپاکستان دستری محکمـــی وړمه ورځنــی غونډه داوریدلو دمراحلو د مربوطو مسالـه په باب‌شوی‌وه، پدی‌غونډه‌کښی‌دمحکمی‌سالون دیو شمیر زیاتو خلکو نه ډك ؤ چه دهغوی په‌مینځ کښی د پاکستان په ملی اسامبله کښی د متحدی دیمو کراتیکی جبهی مشر مولانا مفتی محمود هم حاضر ؤ.

دفرا نسپرس نماینده ،زیاته کړیده چه د محکمی پدی غونډه کښی پخوانی وزیر ښاغلی محمد علی قصوری ،دخان عبدا لولیخان پـــه نمایندګی محکمی ته پیشنهاد وکړدملی عوامی ګوند رئیس اود ګوند نهوتنو نورو غړ یوته دی اجازه ورکړای شی چه دخپلو مدافـــــع وکیلانو سره وګوری او مشوری ورسره وکړی محکمی د مدافع وکیل ددی غوښتنی ،ســـره موافقه وکړ ه

دغه راز په محکمه کښی پیشنهاد وشو چه دستری محکمی داوسنیو غونډو تر پایه پوری دی دملی عوامی ګوند رئیس او د هغه بندیان شوی غړی راولپنډی ته نژدی وساتل شـــی ټاکل شوی وه ستره محکمه په دی موضوع باندی پرون غور وکړی .

**دوری ۲۵ :**

دپښتونستان لەکوهاټ څخه‌په‌رارسیدلی یو خبر کښی ویل شوی دی چه د پښتو نستان ستر مشر خان عبدا لغفار خان پـــــه دی وروستیو وختو کښی یوی ستری غونډی ته‌په ویناکښی ، ویلی دی چه په پاکستان کښی دحاکم ګوند لخوا دديمو کراسی او ولس ته د خدمت کولو خبری یواځی خبری دی اوعمل ورباندی نه کیږی .

خان عبدالغفار خان پښتانه دظلم په خلاف جهادته رابللی اوویل یی دی هرهغه قام چه ظلم اوزیاتی ته تسلیم شو ظلم اوجبرپه د ټول عمردپاره‌ددوی په‌برخه شی .

پاچا خان له پښتنو څخه وغوښتل چه یو موټی شی اودخپلو حقوقو دلاس ته‌وړوړلو د دپاره دظلم په خـلاف جهاد وکړی.دغی ولسی غونډی ته په‌ملی اسامبله کښی دمخالف‌ګوند غړی مولانا مفتی محمود په خپله وینا کښی وویل دپاکستان دحکومت داخبـره منلـو وړ نده چه ګوندی پاکستان اوس ډیر قوی دی ځکه چه حکومت په خپله دپاکستان دورانولو اراده کړیده او بیا دملك د ورانولو الزام په مخالف ګوند لګوی .

د جماعت اسلامی ګوندایالتی رئیس ښاغلی ارباب سعید پدغه غونډه کښی وویل چه د حیات محمد خان شیر پاو دقاتـلانو دنیـــولو په باب دحکومت پروپاګند ددی دپـاره دی چه غواړی دی پیښی څخه زیاته سیاسی ګټه واخلی .

ارباب سعید وویل که دسیاسی ګټی سوال په منځ کښی نه‌وی نو حکومت د ډاکتر نذیر خواجه رفیق‌مولوی شمس‌الدین عبدالصمد خان اڅکزی اوصادق کاسی دقتلونو پوښتنه ولی ونکړه .

دکوهاټ ولسی غـونډی تـه په وینا کښی دمتحدی دیموکراتیکی جبهی یو بـل مشـــر چودری ظهور الهی وویـــل افغا نستان د پاکستان دښمن ندی او هر وخت یی لــــه پاکستان سره دروغی جوړی خبری کړیدی .

**دوری ۲۵ :**

دفرانسپرس نماینده **دراولپنډۍ** نه خبر راکړیدی چه دپاکستان ستری محکمی وړمه ورځ په راولپنډۍ کښی اعلام وکړ چه‌دهغه هیوادحکومت دملی‌عوامی‌گوندغیرقانونی‌اعلام‌شوی

دغه محکمه اوس ددغی موضوع په‌باب د تصمیم نیولو په‌باره کښی په‌غور کولو بوخته ده چه ایاپه دغه گوندبندیزلګول قانونی دی

او که نه دفرانسپرس نماینده زیاته کړید ه چه دپاکستان لوی څارونوال یحیی بختیاردغه دوه موضوعګانی هغه وخت په ډاکه کړی چه یوتن مدافع وکیل دحکومت نه‌د محاکمی‌لګښت وغوښت ستری محکمی همدارنګه د پاکستان حکومت ته لارښوونه کړیده چه د عوامی ملی ګوند دمشر ښاغلی ولیخان په‌ګډون ددغه ګوند دنیول شویو مشرانو تر مینځ دسلا مشوری دپاره اسانتیا وی برابری کړی .

ټاکل شویده چه تورن کسان له دغو اسانتیا و وروسته یوه لیکلی دفاعیه وینا محکمی ته وړاندی کړی .

محکمی په دغه‌باره کښی‌خپلی خبری د جون دمیاشتی تر نهمی نیټی یعنی تر هغه وخته‌چه مدافع وکیلان حکومتی شواهد وڅیړی ځنډولی دی .

**دوری ۲٦:**

دمرحوم حاجی‌شهزاده خان‌اړیدی فاتحه پرون ورځ دسرحد ونو چارو دوزارت‌او دهغه مرحوم دکورنی دغړیو لخوا دشاه دوشمشیره (ع) په جومات کی واخیستله شوه .

دغی فاتحی ته دعظمی صدارت مرستیال ډاکتر محمد حسن شرق ،دمرکزی کمیټی اود کابینی ځینی غړی یو شمیر جنرالان او عسکری منصبداران او د لوړی رتبی ملکی مامور ین ښاغلی اجمل خټك اودهغه مرحوم ګڼ شمیر، علاقمندان او په کابل کی اوسید ونکی پښتو نستا نیان ورغلی‌وو.

**دوری ۲٦ :**

دپښتو نستان ستر مشر خان عبدا لغفار خان دخپل وطن دآزادی غوښتلو په‌ګناه دانګریز اوپاکستان په جیلونو کی یی دخپل عمر زیاته برخه تیره کړی اوس دپاکستان حکومت یوځل بیاپه همدغه ګناه‌جیل ته‌لیږلی دی .

خان عبدا لغفارخان‌یا هغه څوك چی د پښتنو اوبلوڅو خلکو دغضب شوو حقوقو د لاس ته راوړلو او ملی خدمتو نوپه لاره کښی یی مبارزی کړی‌دی یو ځل بیاد پاکستان حکومت له خوابندی شوی دی .

له پیښور څخه رارسیدلی خبرونه وایی چه خان عبدا لغفار خان وړمه ورځ په پیښور کښی د پاکستان دامنیتی قوا ووله خوا نیول شوی او یونامعلوم ځای ته‌بیول شوی دی.

خبر زیاتوی چی پخوا ددغه ستر مجاهد پرګرزید وباندی دپاکستان د حکومت له‌خوا بندیزونه لګول شوی ؤ اووړمه ورځ دبرج هر سنګه په سیمه کښی هغه وخت ونیول شو چی دپښتنو او بلوڅو دغه ستر مبارز پیښور ته راغی .

پاکستانی مقاماتو د هغه ځای په‌باره کښی

چی خان عبدالغفار خان ورته نیول شوی دی څه نه‌دی خپاره کړی .

**دوری ۲۷ :**

د باندنیو چارو دوزارت نطاق دملگرو ملتو دسر منشی په‌نامه دپاکستان دصدرا عظم ذوالفقار علی بوټو دوروستی لیك په بــاب چه په هغه کښی ادعا کړی په افغا نستــان کښی بلوڅ پناه وړونکی افغانی عمال دی چه ددوی دفعالیتونو له ناکامی وروسته افغانستان نه ستانه شوی دباختر آژانس دخبر یال د پوښتنی په ځواب کښی وویل :لکه څنگه چه ددولت رئیس اوصدرا عظم ښاغلی محمدداؤد دډاکتر والدهایم په‌نامه د۱۳۵۳ کال د کب دمیاشتی دیوو لسمی نیټی په خپل پیــغام کښی پیشنهاد کړی وو ـدافغا نستان پــه خاوره کښی دننه او بهر دبلوڅی پنا گزینود احوال دڅیړنی اوددوی دپناه راوړلو دواقعی علتونو د تحقیق ډیره ښه وسیله دیوه بین المللی کمیسیون ټاکل دی چه مربوطی سیمی ووینی او پدغه برخه کښی یو رپوټ ترتیب کړی. تر کومه ځایه پوری چه دافغا نستا ن په حکومت پوری اړه‌لری ـدیته چمتو دی‌ددغه بین المللی کمیسیون دوظیفوتر سره کیدوپه لاره کښی هر ډول اسانتیا وی بـرا بــری‌او همکاری وکړ ی.

دباند نیو چارو دوزارت نطاق د ښاغلـــی بوټو دغی خبری چه چمتودی د افغانستا ن او پاکستان تر منځ اوسنی اختلافونه دروغی جوړی په وسایلو او دخبرو له‌لاری حل شی ښه هرکلی کړی اووی وویل :

لکه څنگه چه دافغا نستان حکو مت بیابیا ویلی دی دغه سلوك ددواړو هیوادو تر منځ دیواځینی سیاسی ستونزی دحل یواځینی لاره ده پدی شرط چه د هغو دپیل دپاره ښه‌قضا برابره شی .

دباندنیو چارو دوزارت نطاق دملگرو ملتود عمومی منشی‌ډاکتر والدهایم په‌نامه دپاکستان دباندنیو چارو دپاره ددولت دوزیر ښاغلـــی عزیز احمد دلیك په باب چه‌په هغه کښی‌یی دبلوڅو پناه راوړونکو دپاره دبین المللـــی مرستی دجلبولو په باب دافغانستان دحکومت په غوښتنه دملگرو ملتو د عمومی منبشی په مثبت ځواب باندی انتقاد کړیدی ـدباختـــر آژانس

آژانس دخبریال‌دیوی‌بلی‌پوښتنی په‌ځواب‌کښی وویل دحیرانتیا ځای دی چه دپاکستان ددولت وزیر دملگروملتو دعمومی منشی په بشـــر غوښتنونکو نیتونوا وفعالییتونو باندی اعتراض کوی ـپداسی حال‌کښی چه ښاغلی والد هایم په یوه داسی برخه کښی اقدام کړیدی چه د ملگرو ملتو دپناه وړونکو داداری د مسـؤول سړی په توگه دده له واك او وظیفوڅخه ده . او پخوایی هم په همدغی شان حالاتو کښـی دغه راز اقدامات کړیدی .

**دوری ۲۷ :**

ددولت ښاغلـــی رئیس او صدراعـــظم د ایران دملی رادیو تلویزیون دنماینده سر ه په خپله مرکه کښی دیو پوښتنی په ځـــواب کښی داسی وفرمایل :

پوښتنه :

دپا کستان او افغا نستان داختلا فونو په حل کښی مود تهران داغیزی په برخه کښی‌د دولت درئیس نظریه وغوښتله ؟

ځواب :

د تهران اغیزه البته پخپله تهران ته‌معلومه ده خو اعلیحضرت دایران شاهنشاه دبنځلسو او شپاړسو کالو راهیسی د پاکستان سره زمونږ دمناسباتو په باب پوره معلومات لری او دهغو حل په لاره کښی یی هڅه وکړه چه متاسفانه کومی نتیجی ته ونه رسیده ځکه‌زمونږ دریځونه یوله بل‌نه لری‌وو ۰نن له پاکستان سره زمونږ روابط ښه ندی او دغه حالت زمونږ دهیلی په خلاف دی ۰داچه پدغه برخه کښی دتهران اغیزه به څه کیدی شی پخپله تهران پوری اړه لری کوم شی چه زه کولی شم ووایم دادی چی دافغانستان او پاکستان داختلاف دحل په لاره کښی هر ښه اقدام ته به دقدر په سترګووګورو که چیری ایرانی ورونه په تیره بیااعلیحضرت دایران شاهنشاه په‌دی لاره کښی کوم اقدام وکړی شی دخوښی سبب به وی ۰

د غوائی ۱ :

دملی مشرخان عبدالغفار خان بندی‌کول د نړیوالو زیاتی کرکی رامنځ ته کړی دی هغه ځوك چی داستعماری قدرت پرضد په نیمه‌وچه کښی په ملیونو خلکو دآزادی دلاس ته‌راوړلو په مقصدیی دخپل ټول عمرپه اوږدو کښی دیو مجاهد شخصیت په توګه مقاومت کړی اودسیاسی مجادلوپه تاریخ کښی یی له ویاړنه ډك نوم ګټلی دی دپاکستان ددستور لاندی له طبیعی حقوقو څخه په محرو میدلو سره د پاکستان د حکومت په زندان کښی د خپل ژوند شپی سبا کوی ۰

خان عبدا لغفارخان داستعمار په‌توره دوره کښی په داسی حال‌کښی چی دهند په‌نیمه‌وچه کښی خلك له‌طبیعی‌مواهبو څخه‌محروم‌ښکاریدل په مجادله پیل وکړ ۰

داستعماری قدرتونو دشکنجو او تهدید سره سره خان عبدالغفار خان د خپلی ځوانی له شروع څخه راهیسی دحق او عدالت په سمه لاره کښی ثابت قدمه ووـ او دخان عبدا لغفار خان همدغه تیرو یاړونه ښیی چی ددغه ملی مشر دبندی کولو پیښه پاکستان ته منحصرنه شی پاتی کیدلی ۰

د غوایی ٤ :

بین المللی خبر رسوونکو آژانسونو خبر ورکړچه پرون‌یوشمیر کسانودجمعیت العلمای اسلام دګوند په رئیس او دپاکستان په ملی اسامبلی کی د دیموکراتیکی متحدی جبهی دغړیو په مشر مولانا مفتی محمود، دوژلوناوړه قصد کړیدی ۰

را رسیدلی خبرونه وائی چه وسلوالو شپږو تنو دکراچی دختیځد۱۲۰ کیلو متری سوچاوال ته‌نژدی دمولانا په‌وړونکی موټرباندی‌ډزی وکړی چه په نتیجه‌کښی دموټرښیښی ماتی شوی او دمولانا یوتن ملګری چه په بل موټر کښی سپورو‌ژوبل شوه خوپدی پیښه کښی مولاناته کوم زیان ندی رسیدلی ۰

مولانا مفتی محمود چه دملی عوامی گوند رئیس اودپاکستان په اسامبله کښی دمخالفو گوندونو دغړو د رئیس خان عبدالولیخان دبندی کیدو وروسته پدغه اسامبله کښی دیمو کراتیکی متحدی جبهی مشری په غاړه لری وروسته وویل چه دغه برید د پیپلز پارتی لخوا طرح شوی وو چه دپا کستان د حکومت سیاسی مخالفین وډارول شی ۰

دپاکستان پولیسوویلی دی بریدکوونکی پیژندل شوی خو دهغوی دنیولو په باب لاتراوسه کوم خبر ندی خپور شوی ۰

مولانا مفتی محمود چه پخوائی دپښتو نستان دصدراعظم په توگه کار کړیدی او په بلو چستان کښی دملی عوامی گوند دبر طرف کیدونه وروسته یی دپاکستان د حکومت ددغه اقدام په ضد داحتجاج په نامه دپښتو نستان دصدارت له څوکۍ نه استعفاورکړی وه ۰

ده دملی عوامی گوندړنگول اودهغه دمشرانو بندی کیدل سخت غندلی اوویلی یی وترڅو چه ملی عوامی گوند بیا منځته رانشی او د هغه ټول مشران اوغړی خوشی نشی ، مخالف گوند ونه به دپاکستان دملی اسا مبلی دغونډو سره پریکړه وکړی ۰

**دغوایی ٦ :**

په هغه میلمستیا کښی چه ددولت درئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد په وياړ د نیاوران پهماڼی کښی دایران دپاچااعلیحضرت شاهنشاه له خوا شوی ؤ دافغا نستان ملی مشر پخپله وینا کښی دپاکستان سره د یواځنی مشکل په حلقه داسی وفرمایل :

موږ دنړی دټولو سوله دوستو هیوادوسره دوستانه اوښه روابط ټینگ کړیدی ۰ خودبده مرغه دهغه یواځنی هیواد سره چه تر اوسه موونشو کړی پدغه کار بریالی شو پاکستان دی ۰

د پاکستان د حکومت سره زموږ یواځنی سیاسی مشکل لکه چه دهغه د سوابقو څخه اعلیحضرت خبر دی دهغو وروڼو دحقه حقوقو دتامین موضوع ده چه زموږ سره نه شلیدونکی عنعنوی ، نژادی فرهنگی او تاریخی پیوند ونه لری ۰

عقیده لروچه جبراو دقوی استعمال په هیڅ ډول نشی کولی ملی هیلی له منځه یوسی او یا حقایق او واقعیتونه پټ کړی ۰

په هر حال هغه څه چه په افغا نستان پوری اړه لری ۰دتل دپاره به هڅه وکړوچه زموږ اودپاکستان تر منځ دغه یواځنی سیاسی اختلاف په سوله ایزه او شرافتمندانه توگه حل اوفصل شی او په نتیجه کښی داسی فضا پیداشی چه پدغه سیمه کښی پراته هیوادونه وکولی شی د دوستی اوښه نیت په روحیه ژوند وکړی ۰

**د غوائی ۹ :**

کراچی څخه دارارسیدلو خبرونو له مخی مولانا مفتی محمود چه د پاکستان دمخالفو گوندونو دمشر توب کفالت په غاړه لری څر گنده کړیده چه دده په خلاف ناوړه قصد یوه توطئه ده ۰

ده وویل هغه افراد چی پهده یی برید وکړ اوس ره له دی چه پیژندل شوی هم دی حکومت هغوی تعقیب او توقیف کړی نه دی ۰

دەوویل دغې پیښې یوځل بیاثابته کړه چه حکومت عامه اطمینان او اعتماد بیخي له لاسه ورکړی او هغه کوی دسیاسي وژلو لـــه‌لاری واکمن پاتی شي ·

مولانا مفتی محمود په کراچی کښې په یوه مطبوعاتي مرکه کښې وغوښتل ددی لپاره چــه معلومه شي آیاد حکومت دغه‌ادعاچه خلك‌دهغه ملاتړ کوی رښتیاده اوکــــه نه یوریفرندم دی وشي ·

په خبر کښې زیاته‌شویده چه دټولو مخالفو گوندونو مشرانو دمولانا مفتی محمودپه خلاف ناوړه قصد سخت غندلی او دحکومت نه یی غوښتني دی دغه جنایتکاران چه حکو مت په خپله ددوی په پیژندلو اعتراف کړی زرتوزره توقیف او محاکمه کړی ·

**دغوائی ۹ :**

دپښتو نستان له پېښور ښخه په رارسیدلی خبر کښې ویل شویدی چه په‌هغه ښای کښې دمخالف گوند غړواو مشرانو دجمعیت العلمای اسلام گوند په رئیس اوپه ملی اسامبله کښې دمخالف گوند په وکیل مشر مولانا مفتی - محمود باندی قاتلانه حمله سخته غندلی ده‌او غوښتنه یی کړیده چه حمله کوونکی ډیرژر محاکمه کړی شي ·

**دغوائی ۱۳ :**

دپاکستان د سند پـه ولایـت کښــــی دآزا دی غـوښتنی دفعالیت پەلـــړ کښې دجی ایم سید تصنیف سندو دیش نو مـــی اثر وویشل شو·

پدغه کتاب کښې دپښتونستان اوبلوچستان دملی آزادی بښونکی نهضت‌کلك ملاتړشوی‌او لیکل‌شویدی چه‌پښتو نستان، بلوچستان اوسیندد دپنجاب په څیر دپاکستان طبیعي قلمرونه دی اوپښتانه ، بلوڅ اوسندیان دملی ژبنـــی او کلتوری ارزښتونو اوهیلو په‌خلاف په‌پنجاب پوری تړل شویدی ·

په کتاب کښې دیولړ حقایقو دڅرگندولو په‌ترڅ‌کښې ویل‌شویدی چه‌دپاکستان‌ترجوړیدو پخوا پنجابی سیاستمدارانـــو او وروستیـو واکدارانو له خوا دپښتونستان ، بلوچستان سند او ختیځ بنگال اولسونو ته په سیمه‌کښې ددوی دآزاد وخپلواکو هیواد و جو ړ ولـو وعدی ورکړی شو ی اوددغو وعدو په‌وسیله په پاکستان پوری په‌زور اوجبر وتړل شول· چه‌وروسته بنگالیانو دخپلو مبارزو په‌نتیجـــه کښې پاکستان خپله آزادی تـر لاسه کـړه اودپاتی ملتونو دآزادی غوښتنی مبارزی دوام لری·

دکتاب په ۶۸–۶۹ او ۷۰ مخ کښې هیله څرگنده شویده چه‌په پښتنو بلوڅـــو او سندیانو باندی دپاکستانی حکـومت وخـت پای ته‌رسیدلی دی او نژدی ده چه دغـــه اولسونه دخپلو آزاد ومملکتو نو په څیـــر لکه دبنگله‌دیش په ډول دنړۍ په‌نقشه کښې راڅر گندشي·

**دغوائی ۱۳ :**

دسند په ایالت کښې دمخالفو گوندو نو مشرانو دپاکستان په‌ملی اسامبـــله کښې دمخالفو گوندونو دغړیو دمشر کفیل بناغلی مفتی محمود په‌خـــلاف نا وړه قـصد سخت

وغانده اوهغه یی دحکومت خطر ناکه دسیسه بللې ده.

**دوی په یوه مطبوعاتي مرکه کښې وویـل** حکومت دهغو مخالفو ګوندونو شتوالی نشي زغملی چه‌دخلکو دحقه حقوقو دلاس‌ته‌وړو ړلو دپاره مبارزه کوی اوله‌دی امله یی دګوندونو دمشرانو دمرګ اووژلو تو طئې جو ړ ی کړی دی .

**دغوائی ۱٤ :**

**دکراچي نه رارسیدلی خبرونه‌وایي چه‌په‌دی** وختو کښې په‌ښکار پور بازار کښې یـوی ډلی کسانو **په کراچي کښې دحکومت‌دګونـد** درئیس په مرستیال مولوی سعدالله ړز ی وکړی اوهغه‌یی مـــرکړ اودغـــه کسا ن وتښتیدل.

**همدارنګه دیو ټکسی موټروان دوژلو پـه نسبت چه پښتون وو دخـــه د پاسه دولس** زره ټکسی مو ټر وانانو اعتصاب‌دوام‌لری.

دغه مرګ دیوی ډلی هغو کسانو سره‌دنه **همکاری په‌نتیجه‌کښې** شوی‌چه دکراچي دښار یوه برخه یی‌تالاکوله .

اعتصاب کوونکو ویلی دی **چه** پولیس‌ځکه دهغه دقاتلانو دپیدا کولو دپاره **دفعالیـــت** څخه ډډه کوی چه وژل شوی سړی‌پښتون‌وو

**دغوائی ۱٤ :**

دپښتو نستان په‌ایالتي اسامبـــله کښې دمخالف ګوند غړی دتیری چارشنبې په‌ورځ داسامبلی له تالار څخه ووتل اودغوندی سره یی خپله پریکړه اعلان‌کړه.

خبروایي دمخالف ګوند غړی ددی دپـاره اسامبلی ته ورغلی ووچه دسعودی عربستان دپاچا مرحوم ملك فیصل اوحیات‌محمد خان شیرپاودمړینی سره دغونډی دهمدردۍ‌ښکاره کولو په‌مراسمو کښې ګډون وکړی .

خبر زیاتوی دهمدردی دمراسمو له‌سر تـه رسیدلوڅخه‌وروسته **دمخالف‌ګوند‌ټول غړی په دستجمعي ډول اسامبلی نه ووتل اومولاناحبیب ګل دنورو غړو په نمایندګـــی پـــه یـــوه** مطبوعاتي ویناکښې له اسامبلی‌سره **دپریکړی په باب وویل چه دواکمن ګونداو دمتحـد ی** دیمو کراتیکی جبهی دنمایندګانو تر مینــځ دتیری فبروری په شپږمه نیټه یو تـړ و ن شوی ووچه دهغی له‌مخی دملی اسامبلـــی ایالتي اسامبلو او سنادغړو **ګرفتاری‌دغونډو په‌جریان** کښې اوهم دغونډوله شروع‌څخه ۱٥ ورځې مخکې او وروسته منع شوی‌وه.

مولاناحبیب‌ګل وویل چه‌حکومت پـــه‌شوی تړون عمل ونکړ اودملی اسامبلی ،سنااوایالتي **اسامبلو یوشمیر غړی یی ګرفتار کړل .**

**بناغلی حبیب ګل دمخالف ګوند دغړو په نمایندګی زیاته کړه، له‌دی امله چه متحدی دیموکراتیکی جبهی دفبروری دشپږمی نیټی له تړون څخه دحکومت دسرغړولوپه اثر دسنا، ملی اسامبلی اوایالتي اسامبلو سره خپلــه پریکړه پخوا اعلان** کړیده نومونږ به هـــم دایالتي اسامبلی په غونډو کښې ګډون‌ونکړو.

**دغوایی ۱٥ :**

دپښتونستان په ټولو سیموکښې دپاکستان **دحکومت په خلاف دآزادی غوښتونکو فعالیت او** دهغه حکومت له خوادخلکوټیول روان دی .

دپښتونستان دچارسدی نه په یوه خبر کښی ویل شویدی چه په هغه سیمه کښی دمحصلینو یو زیات شمیر مشرا ن نیول شویدی .

دغه راز د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفار خان دپښتونستان له پیښور نه دهزاری دسیمی ایبت آبادته ولیږدول شو .

دپښتونستان سترمشر څوموده پخوا د پاکستان دحکومت لخوا دپیښور په سیمه کښی نیول شوی اوپه پیښور کښی بندی وو .

دایبت آبادنه په یوه خبرکښی ویل شویدی چه پاچاخان دپاکستان پولیسوله خواله پیښور نه هزاری ته لیږدول شوی اوله ایبت آباد نه شپږمیله لری په متورنومی ځای کښی بندی دی .

دپښتونستان ستر محبوب مشر چه دخپل عمرزیاته برخه یی د خپل اولس دآزادی غوښتنی په لاره کښی دبرتانوی امپراطوری اودپاکستان دحکومت په جیلونو کښی تیره کړیده، اوس د۸٦ کلنی دعمر په حالت کښی دپاکستان دحکومت لخوا بندی شویدی .

دپاکستانی پولیسو دیوی منبع دخبر له مخی دپښتنو دغه دروند مجاهد سپین ږیری دپاکستان دحکومت دقانون ددفاع دمقرراتوپه پلمه نیول شویدی .

دپښتونستان سترمشر پاچاخان تردی پخوا دخپل عمر څلورمه برخه په پاکستان جیلونو کی تیره کړیده .

دغه راز دکوټی دپوهنځیو محصلینو دځو ورځو راهیسی دهغو سیاسی فشارونو په خلاف داعتراض په غرض دحکومت په مخالفینو اچول کیږی اود ۱٤٤ مادی دنافذیدو سره‌سره چه غونډی یی منع کړی په یولړمظاهرولاس پوری کړی دی .

**دغوایی ۱۷ :**

له لندن څخه رارسیدلی خبر وایی وړمه ورځ په‌دغه ښارکښی زیات‌یوشمیراوسیدونکو پښتونستانیانو اوبلوڅانو اودهغوی ګڼ شمیر طرفدارانو دپاکستان دحکومت د سیاست په خلاف په لندن کښی دپاکستان دسفارت په مخکی مظاهره وکړه .

مظاهره چیانو دپښتنو دسترلیډر خان عبدالغفار خان اودنورو پښتنواوبلوڅو بندیانو دسملاسی خوشی‌کیدودسیاسی قتلونو دبندیدو په باب شعارونه له ځان سره وړل .

**دغوایی ۱۸ :**

دپښتونستان له پیښور څخه په رارسیدلی خبرکښی ویل شویدی چی دنوی ایالتی وزیر اعلی دسوګند مراسم په ځای شو اوددغو مراسمو دسرته رسیدوسره سم دآزادی غوښتونکو لخوادنوی حکومت سره دمخالفت ښکاره کولو نښی دبمونو دچاودنوپه شکل څرګندی شویدی .

**دغوایی ۱۸ :**

په پیښور کښی چی په هغه ځای‌کښی دجماعت اسلامی ګوند مشر ښاغلی ارباب‌سعید په یوه ویناکښی دحکومت دهغه بیان غندنه کړیده چی په ملی عوامی ګوندیی دتشددتور لګولی وو .

ارباب سعید ویلی دی که چیری دسیاسی قتلونو عادلانه تحقیق وشی، نودابه ثابته شی

چې دملي عوامي گوند گناه نلري .

ارباب سعيد ويلي دي كه په پښتونستان كښې دحكومت په خلاف هرڅه كيږي هغه نه تشدد نشو ويلی بلكه دحكومت داعمالو په مقابل كښې يې اولسي عكس العمل بللي شو.

**دغوايي ۲۳ :**

دبلوچستان له كوټې څخه په يوخبر كښې اويل شويدي‌چه‌په‌هغه ځاى‌كښې دجمعيت‌العلماى پاكستان گوند مشر مولانا شاه احمد نوراني يوې غونډې ته‌په‌ويناكښې ويلي دي ، مخالف گوند به ترهغه وخته پورې دملي اسامبلۍ سنااوايالتي اسامبلوپه غونډو كښې گډون ونكړي ترڅوواكمن گوند دفبرورې د شپږمې نيټې دتړون احترام ونكړي .

شاه احمد نوراني ويلي دي دپاكستان د خارجي مناسباتو دخرابۍ يواځيني وجه دادەچه په پاكستان كښې دديموكراسۍ مخنيوى كيږي اوحاكم گونددنورو قانوني گوند ونو په ديموكراتيكو هلوځلو بنديز لگوي .

**دغوايي ۲۴ :**

دپښتونستان له ديره اسماعيل خان څخه په يوخبركښې ويل‌شويدي‌چه دجمعيت‌العلماء اسلام گوند رئيس اوپه ملي اسامبله كښې دمخالف گوند مشر كفيل ښاغلي مولانا مفتي محمود په يوه اخبارې مركه كښې ويلي دي چه متحده ديموكراتيكه جبهه به دفبرورې د شپږمې نيټې دتړون په باب له حكومت سره نورې خبرې ونكړي .

مفتي صاحب ويلي دي دادحكومت پورې مربوطه ده چه پخپله اوسنۍ رويه كښې تر كومې اندازې پورې بدلون راوستلى شي .

مولانا مفتي محمود زياته كړيده چه په راتلونكو عمومي انتخاباتو كښې به متحده ديموكراتيكه جبهه گډه مبارزه كوي اودجبهې دشاملو گوند ونو كانديدان به ديوپلان له‌مخې ټاكل كيږي .

ښاغلي مفتي محمود ويلي دي : په اوسنيو حالاتو كښې دملي اسامبلۍ ټولې غونډې د نصاب له پوره كيدوپرته دوام لري . مفتي محمود دبودجې دتصويبولوپه راتلونكې غونډه كښې دمخالف گوند دگډون كولوپه باب ديوې پوښتنې په‌ځواب كښې ويلي دي چه په دغه باره كښې به دجبهې اوتحريك استقلا ل گوندپه يوه گډه غونډه كښې تصميم ونيول شي .

په مخالف گوند باندې دپاكستان دحكومت له خوادافغانستان دايجنټ تورلگولو په باب مفتي صاحب ديوې پوښتنې په ځواب كښې ويلي دي چه دمتحدې جبهې دريځ له‌پخواڅخه روښانه اوڅرگنددى اودجبهې په دريځ كښې دافغانستان دخپل گټل دمسالې دكړكيچ‌ولو دپاره دپلمې لټولو پرته بله معنى نلري.

مولانا مفتي محمود ديوې بلې پو ښتنې په‌ځواب كښې څرگنده كړه چه متحد هجبهه دفبرورې‌د شپږمې نيټې په‌تړون څكه زو ر اچوي چه پدغه تړون باندې عمل كـول دسياسي بنديانو دخو شې كولو دپاره لاره اواروي.

څكه چه اسامبلو او سناغړې سياسي بنديان په اساسي قانون كښې ديواړخيزه بدلون په‌وجه گرفتار شويدي.

**دغوایی ۲۷ :**

دپښتونستان له پېښور نه رارسید لـــی خبر وایی چه دپاکستان حکومت د خپـــلو سیاسی مخالفانو دگرفتار ولو دپاره دبمونو دچاودنو له پلمونه کـــــار اخستو ته دوام ورکړی ·

**د غوایی ۲۸ :**

د باندنیو چارو وزارت د اطلاعاتومدیریت خبر راکړ چه دافغانستان خاوری ته دبلوڅو دپنا راو ړلو په لـــړ کی دغوایی میا شتـــی په پنځه ویشتمه ورځ دبنځو ، ماشو ما نـــو اوبوډاگانو پهگډون دری سوه دری ځلویشتو تنو نورو بلوڅو دپاکستان دحکومت دظلـــم تیـــری او د هغه هیواد دنظامی پوځو نودبی رحمه عملیاتو له کبله افغانستان ته پنـــاه را وړی ده ·

په افغانستان کی دټولو پناه راوړونکـو اوبلوڅو شمیر اوس یوزرو ځلورسوه ا و شلوتنو ته رسیږی ·

دافغانی سری میاشتی ټولنی ددغی‌نوی پناه راوړونکو ډلی دپاره دخوړلو او استو گنـــی لازم تر تیبات نیو لی دی ·

**د غوایی ۲۸:**

په لندن کی پاکستانی موسسی شلو ډلو اوپه هغه ښار اود برمنگهم او مانچستر پـــه ښارونو کی یوزیات شمیر اوسیدونکـــــــو پښتنو او بلوڅو په لندن کی دپاکستـــــان دسفارت په مخکی په هغو مظاهرو کی چه‌دوه نیم‌ساعته یی دوام وکړ گډون وکړ ·

نوموړو شلو ډلو «په پاکستان کی‌د دیمـــو کراسی دټینگښت پهلارهکی دمجادلی » په‌نامه یوه‌ټولنه جوړه کړی ده مظا هره کوو نکـــو «په‌بلوچستان او پښتو نستان کی دی نظامی عملیات بس شی » سیاسی قتلونو ته خاتمه ورکړی او سیاسی بندیان آزاد کړی‌شعارونه له‌ځانونو سره‌وړل او دخان عبدالغفار خان ، خان عبدالو لی خان اود ملی عوامی گو نـــد دنورو مشرانو دسملاسی خو شی کولوغوښتنه یی‌کوله ·

مظاهره کوونکو دخپلو مظاهرو په پای‌کی دپاکستان سفارت ته یو احتجاجیه یاد داشت هم وسپاره ·

**د غوایی ۲۹ :**

د باندنیو چارو د وزارت داطلا عا تـــو مدیریت خبرورکړ چه وړمه ورځ د مینگلود قام دوه دیرش تنو بلو څو چه ښځی ا و ماشومان پکی دی دپاکستان دحکومت دظلـــم او زیاتی او دهغه هیواد د نظامی پـــوځو نو دبیرحمانه عملیاتو څخه د افغانستان خاوری ته پناه راوړی ده ·

لکه چه څرگنده شوی ده دالومړی ځل‌دی چه دمینگلو بلوڅ افغانستان ته پناه راوړی هغه یوزرو ځلور سوه شل بلوڅ ټول دمری دقوم دی چه پخوایی افغانستان ته‌پناه راوړی ده ·

د افغانی سری میاشتی ټولنی‌دپناه‌راوړونکو دنوی ټولگی د خوراك او پو ښاك له پاره هم لازم تیاری نیولی‌دی·

دغوايي ۲۹ :

دبي‌بي‌سي راډيو دخبر له مخې په بلو چستان کې دملي عوامي گوند ځلورو تنو مشرانو چه د دوو کلو راهيسي په بندي‌خانه کې پراته دي دلوږي گاللو په اعتصاب لاس پوري کړي‌دي ٠

دخوراك نه کولو د اعتصاب په باب رارسيد لي رپوټونه د ملي عوا مي گو نديوه پخواني منشي جنرال گرديزي خپاره کړي‌دي٠

ده ويلي دي چه دبلوچستان پخواني والي اوپدغه سيمه کې دملي عوامي گوند مشر ښاغلي غوث بخش بزنجو، ښا غلي سلطا ن محمد خان بلوڅ چمتو دي چه د ژوند تر وروستي شيبې پوري خپل‌دلوږي گاللو اعتصاب ته دوام ورکړي اوس د دوی حالت خراب دی ٠

دغه دري‌تنه مشران په ۱۹۷۳ کال کې دحکومت له خوا ونيول شول او بند يا ن شول ٠

جنرال گرديزي زياته کړي‌ده اعتصاب هغه وخت پيل شو چه ددغو دريو تنو مشرانو کورنيو ته ددوی دليدواجازه‌ورنکړي شوه ٠

دبلوچستان‌پخواني‌صدراعظم ښاغلي‌عطاءالله مينگل هم وروسته پدغه اعتصاب کې ور گډ شوی دی ٠

ښاغلي مينگل چه دنورو بلوڅو مشرانو په ملگرتيا د ۱۹۷۳ کال نه راهيسي په جيل کې دي پدی وروستيو وختوکی دزړه‌دناروغۍ له امله روغتون ته وړل شوی دی ٠

دغوايي ۲۹ :

درويتر نماينده دراولپنډۍ نه‌خبر ورکړی دی، متحدی ديمو کراتيکی جبهې چه‌دپاکستان دحکومت مخالف ټول گو ندو نه پکې دي‌پرون بيگا دراېو په اتفاق فيصله وکړه‌چه‌دفدرالي او ايالتي پارلمانونو سره خپلی دري‌مياشتني پريکړي ته دوام ورکړي ٠

دغه تصميم دمتحدی ديمو کراتيکی جبهې سر منشي پرو فيسر غفور احمد د هغې غونډی نه وروسته اعلام کړ چه په ملي اسا مبله ،سنااوځلورواياالتي اسا مبلو کښې د اوه‌ويشتو تنو مخالفو غړيو په گډون‌جوړه شوي‌وه ٠

دمخالفو گوندو نوپارلماني پريکړه‌دفبروري په‌تيره مياشت کې د ملي عوامي گونددړنگولو اودهغه دمشرانو دبندي کولو او دغه راز د دغه کارپه خلاف داعتراض په نا مه پيل‌شوی وه، چه حکومت دغو اسامبلو ته دنظر د ځرگندولو دپاره پوره واك ندی ورکړی ٠

د غوايي ۳۰ :

له‌گيمبل پور څخه په يوخبر کې ويلي شوي دي چه دجمعيت‌العلمای اسلام‌گو ندمشر مولانا مفتي محمود دهغه ځای په يو جو مات کې په يوه ويناکی دپاکستان په حکومت انتقاد کړی او ويلي يې دي چه په تيرو اته ويشتو کلوکی پاکستاني واکدارانو يوا زې دخپل اقتدار ټينگولو دپاره کار کړی دی او همدا وجه ده چه نن په بانديني نړۍ کې د پاکستان وقار ندی پاتی ٠

ښاغلي مفتي محمود زياته کړی ده په پاکستان، پښتونستان او بلوچستان کښې ۱۴۴ ماده ددی دپاره نافذه ده چه حکو متد

خپل اقتدار ټینګولو په هلوځلو بو خــــت دی .

له کیمبل پور څخه به یو بل خبر کی ویلی‌شوی دی‌چه‌دمولانامفتی‌محمودمدافع‌وکیلانو یوی‌غونډی ته‌په وینا کښی‌ویلی‌دی چه په سیاسی مبارزه کښی دمخالفو ګوندونو تــر مینځ خبری اتری کیدی‌شی خومخالف ګوند به‌له‌حکومت سره بی مقصده خبر وکو لوته حاضرنشی .

مفتی صاحب ویلی دی تر څو چه حکومت دفبروری دشپږمی نیټی په‌تړون عمل ونکړی خبروته به‌حاضر نشو. ښاغلی مفتی محمــود زیاته کړیده حکومت به آخر زمونږ دغوښتنو په‌منلو مجبور شی ځکه چه‌دغه‌غوښتنی‌داساسی قانون سره‌برابری اودیموکراتیکی‌دی.

**دغبر ګولی لومړی :**

دباندنیو چارو وزارت داطلاعات مدیریت خبرورکړچه وړمه ورځ دښځو اوماشو مانو په‌ګډون دبلوڅوپناه راوړونکویوی‌بلی ډلــی د پاکستان دحکومت دظلم اوناروااوددغه هیواد دپوځی قواودبی‌رحمانه حملی دلاسه‌دافغانستان خاوری ته پناه راوړیده .

ددغی درویشت کسیزی ډلی په‌را رسیدو سره په‌افغانستان کښی دټولوبلو څوپنـــاه راوړونکوشمیر یو زرو څلور سوه پنـځه‌اویا تنو ته‌رسیږی .

دافغانی سری‌میاشتی ټولنی ددغی ډ لی دخوراك او استوګنی دپاره هم ترتیبات‌نیولی دی .

**دغبرګولی ٤ :**

دباندنیو چارو دوزارت نطاق دپاکستانــی مقاماتو ددغی ادعاپه‌باب چه‌دبلو چستان پسه مستونګ کښی یوه‌اندازه وسله دداسی‌نظامی کاغذ ونو سره لاس ته‌ورغلی ده‌چه‌دافغانستان دحربیه وزارت‌لخوا ویشل شویده دبا ختر آژانس دنماینده دپوښتنی په ځـــواب‌کښی وویل : مونږ دپاکستانی منابعو دغه دروغ او پوچه ادعا په‌کلکه ردود دپاکستا ن حکومت دکورنیو مشکلاتو اوبحرانو نو څخه دخپلــو خلکو دپام اړولو اودعامه افکارو په تیـــره بیادافغانستان په‌نسبت داسلامی هیوادو نــو دافکارود ګډوډ کولو په‌غرض تل غـــوا ړی له دغه ډول غلطو پروپاګند و اودسیسو څخه په خپله ګټه کار واخلی .

نطاق‌زیاته کړه داچه پښتنو او بلو څوتل دخپلو حقه حقوقو ددفاع دباره دهر ډول‌زور په‌مقابل کښی‌مجادله کړی او کوی یی دهیڅ شك اوتردید ځای نشته اوداچه پدغوسیمـو کښی له ډیرو اوږدو کلونو راپدی خواهرډول زیاته وسله شته حتی‌پخپله پاکستان تری‌هم نشی منکر کیدی .

همدا نن دپښتو نستان په‌بیلو بیلوسیـمو کښی داسی دستګاوی شته‌چه وسله جوړوی اوپه آزاد ډول یی بازارته وړاندی کوی .

دباندنیو چارو دوزارت نطاق په‌پای‌کښی یوځل بیاتکرار اوټینګاروکړ چه دپاکستان‌د مشرانو په‌خلاف دافغانستان حکومت هیڅ‌وخت عقیده نه‌درلوده او نه‌یی لری چه ویره‌اوډار اچول اودوران کاری، عملیات او هغو ته‌ورته

حرکتو نه بهدافغانستان اوپاکستان تر منځ دسیاسی اختلاف دحل لارهوی ۰

لکهچه پهوار وار موویلی دی بیاهم وایو دغهسیاسی اختلاف یوازيّاویوازی پهسولهایزو وسایلو اوپه یوه مساعده فضاکی دخبرو له لاری اودښه نیت او واقع بینی پهاساس حل کیدیشی۰

**دغبرګولی ۵ :**

دکراچی څخه رارسیدلی خبر ونه وا یی چهپدی وروستیو وختو کښی دسند دایالت پهاسامبله کښی دمخالفو ګوندونو نمایندګانو دمربوط ایالت داسامبلی له غونډو سره دسند دایالت دبودجی پهباب په خبروکښی خپله پریکړه پهرسمی ډول اعلان کړه۰ دمخالفو ګوندونو دنمایندګانو مشر ښاغلی شاه فرید پهیوه ویناکښی وویل : په پاکستان کښی داختناق په اوسنیو شرایطو کښی دحریت اوآزادی پهباب خبریکول ګنجایش نلری ۰ نوموړی زیاته کړهچه مخالف ګوندونه بهدا حکومت پهخلاف دپوره بری تروختته مبارزه وکړی اودخلکو دبشری حقوقو دلاس ته راوړلو په لاره کښی بهدهیڅ ډول قربانی څخه ډډه ونهکړی۰

**دغبرګولی ٦ :**

دګران هیواد دخپلواکیدبیرتهاخستلوداووه پنځو سمی کالیزی پهمناسبت دجمهو ر ی انقلابلارښوداودهیواد دخپلواکی ساتو نکی ښاغلی محمدداؤد دافغان ملت ددیله ویاړه ډکی اوتاریخی ورځیپهمناسبت له را دیو افغانستان څخهپه خپلهوینا کښی دنوروومطالبو پهضمن کښید پښتونستان پهباره کښیداسی وفرمایل :

غواړم لدغیموقع نهپهاستفادی سره خپلی او دافغانستان دخلکو ښعی هیلی او تمنیات د پښتنو اوبلو څو ورونو دمجاهدو دبریدپاره وړاندی کړم چهدخپلو حقهحقوقوپهلاره کښی یی ستری قربانی منلی دی ۰

**دغبرګولی ۷ :**

**دپښتنو، بلوڅودبیلوبیلو قومونوسپین ږرو** او مشرانو پهخپلو لیکونوکښی دانقلاب مشر ددولت رئیس اوصدر اعظم ښاغلی محمدداؤد د مرکزی کمیټی او کابینی غړیو اوټول افغان ولسته دهیواد دخپلواکی دبیرته اخیستلوداوه پنځوسمی کالیزی مبا رکی ورکړیده ۰ را رسید لی خبر و نه و ا یی دپښتونستان دباجوړوسلارزو،مامندو ،چارمنګو اتمانخیلودسره کمردساپوشینوارو، خانزادګانو تیرا اوخیبر اپریدو ،شینوارو، پړو څمکنو او ورکز ودمومندټولو و لسی مشرانواودوزیر مسیدو،دوړ واو بیټنو مشرانو، همدغه شان دبلو چستان ټولو بلوڅو او پښتنو مشرانو اوپه افغانستان کښی دپښتونستان ا و بلوچستان اوسیدونکو پښتنو او بلو څو دخپلو خلکو په نمایندګی په رالیږلو پیغامونو کښی ددولت رئیس اوصدراعظم ښا غلی محمدداؤد حضور،دمرکزی کمیټی اوکابینیغړو اوټول افغانی ولس ته دزړه له تلهمبار کی ویلی اودستر ملی زعیم ښاغلی محمد داؤد دترمدبرانه قیادت لانـدی یی دافغا نستان دزیاتی ترقیاوافغان ولس دزیاتی هوسا ینی آرزو څرګنده کړیده ۰

# معرفی ولایات کشور

## ولایت ارزگان

موقعیت :ولایت مرکزی .

**مساحت : ۲۸۹۲۹ کیلو متر مربع**

درجه : ۸(ازنگاه مساحه).

**نفوس : ۱٤۲۲۸۷**

مرکز: ترین کو ت.

ولایت ارزگان در طول البلد شر قی‌هفت ثانیه وچا رده‌دقیقه و شصت و شش درجه عرض البلد غربی پنج ثانیه وسی‌و چاردقیقه وسی وسه درجه مو قعیت دارد. و لا یت ارزگان علاقه وسیعی است که درشمال‌شرق ولایت کندهار واقع وطر ف شرق آن دایه چوپان وطرف جنو ب آن قلات غلجایی‌وترین وطرف غر ب‌آن موسی قلعه وطر ف شمال آن‌علاقه کرزاب واقع است نهر ترین،ازوسط اینعلاقه ازشمال شر ق به جنو ب‌غر ب‌عبور نموده وآنرا آبیاری مینماید ودر غر ب‌آن دریای هلمند جاری است وروود چله خورکه معادن رود ارغندا ب است در شرق آن‌جریان دارد هوای آن در تابستان معتدل ودرزمستان خیلی ها سرداست پیشه ساکنین آن‌مالداری میباشد.

دراروز گان از طر ف مشرق یعنی دایه فولاد در کو هیکه مسمی به کوه سمندان‌است مغاره وجود دارد که دهنه‌آن‌پنجاه مترفراخی داشته‌و سقف آن ازیخ پوشیده است که‌تا حال‌کسی نتوانسته طو ل این مغاره راطی کند.

دریاها : شهر ستان ،رود هلمند ، رود تیرین.

**کوه : نوشته .**

کوتل: قناق سنگ.

پیداوار: غله جات وکلیم باب.

مربوطات:

۱ــ ولسوا لی خا ص اروز گان درجه۳ (تیرین).

۲ــولسوالی دهرا ود در جه ۲

۳ــولسوالی دایکندی در جه ۳

٤ــولسوا لی گزاب در جه ٤

٥ــولسوا لی کجران درجه ٤

٦ــ ولسوا لی جوره در جه ٤

۷ــولسوالی شهر ستان در جه٤

۸ــولسوالی اجرستا ن در جه ٤

**معار ف:**

**تعداد مکاتب :**

| | لیسه | متوسطه مربوط لیسه | متوسطه مستقل | ابتدائیه مربوط ثانوی | ابتدائیه مستقل | یك معلمه | دومعلمه | مجموع |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پسران | ۳ | ۳ | ۱۲ | ۱٤ | ۱۹ | ٥٤ | ۲۰ | ۱۲٥ |
| دختران | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۱ | ۸ | ۰ | ۹ |

ADMINISTRATIVE BOUNDARY MAP OF ORUZGAN PROVINCE (26)

نقشه تقسیمات حدود اداری ولایت ارزگان (۲۶)

LEGEND

اشارات مخصوصه :

| | | |
|---|---|---|
| Province Boundary | —·— | حدود ولایت |
| Woleswali Alaqadari Boundary | — — | حدود ولسوالی و علاقداری |
| Province Center | ● | مرکز ولایت |
| Woleswali Center | ⊗ | مرکز علاقداری |



ADMINISTRATIVE BOUNDARY MAP OF BADGHIS PROVINCE (19)

نقشه تقسیمات حدود اداری ولایت بادغیس (۱۹)

LEGEND — اشارات مخصوصه :

| | | |
|---|---|---|
| International Boundary | ———— | حدود بین المللی |
| Province Boundary | —·—·— | حدود ولایت |
| Woleswali Alaqadari Boundary | — — — | حدود ولسوالی و علاقداری |
| Province Center | ● | مرکز ولایت |
| Woleswali Center | ⊗ | مرکز ولسوالی |
| Alaqadari Center | ○ | مرکز علاقداری |



**شفاخانه (۱)**

**مراکزصحی:**

۱ـمرکز صحی چوره.

۲ـمرکز صحی دایکندی .

۳ـمرکز صحی شهر ستان

**موسسا ت صنعتی :**

**ذخایر معدنی ،**

مس ، آهن:

## ولایت بادغیسات

موقعیت : شما لغر ب.

مساحه: ۲۱۶۷۸ کیلو متر مربع.

درجه : ۱۰ (از لحاظ مساحت)

نفوس: ۹۱٤٦۲

مرکز: قلعه نو.

ولایت باد غیس در شما ل غر ب ولایت هرات واقع وباتمام نوا حی خودبین دریای هریرود وابهای علیای مر غاب واقع‌شده‌که دارای ارتفاع هشتصد و هشتاد و هشت‌متراز سطح بحر میباشد وتماما ازیك سلسله‌جویبار آب یاری میشـود کـه از کنار چپ دریـای مرغاب منشاء گرفته است .

**کوه : تخت میلك .**

**پیداوار : پسته ، غلجات پخته وقره قل .**

مر بوطات:

۱ـولسوالی مر غاب در جه ۱

۲ـولسوالی قادس در جه ٤

۳ـولسوالی جوند در جه ٤

٤ـ و لسوا لی غور ما چ درجه٤

**٥ـ علاقه داری مربوط مرکزولایت‌کشك‌کهنه**

**معارف:**

**تعداد مکاتب :**

| | لیسه | متوسطه | متوسطه مربوط لیسه | ابتدائیه مستقل | ابتدائیه مربوط | یك معلمه ثا نوی | دومعلمه مستقل | مجموع |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پسران | ۲ | ۲ | ٥ | ٦ | ۱٦ | ۲۳ | ۱۱ | ٦٥ |
| دختران | ۰ | ۰ | ۱ | ۱ | ۰ | ۰ | ۲ | ٤ |

**شفاخانه ـ(۱)**

**مراکز صحی:**

۱ـمرکز صحی غور ما چ

۲ـمرکز صحی مر غاب. (یك‌مر کزفرعی)

۳ـمرکز صحی جوند .

٤ـمرکز صحی قادس .

**موسسات صنعتی :**

**ذخایر معدنی:** گوگرد، سرب

# ولایت بامیان

موقعیت : ولایت‌مر کزی.

**مساحت : ۱۷۵٤٦ کیلو متر مـربـع**

درجه: ۱۷( ازنگاه نفوس).

**نفوس : ۸۵۱۰۸**

ولایت بامیان در میان دامنه های مرکزی دوسلسله کوه بزرگ افغانستان یعنـــی هندوکش وکوه بابا بین خطو ط شصت‌وهفت درجه وبیست ونه دقیقه وچهل ویـــك ثانیه طول البلد شر قی سی‌و چهار درجه سی‌وسه دقیقه وبیست دوثانیه عرض البلد شمالـی موقعیت دارد.

ولایت بامیان راولایات پروا ن، بغلان‌سمنگان بلخ، جوزجان، غورات، ارزگان، غزنی ووردك ازچهار سمت احاطه نموده است این ولایت به‌فاصله دوصد وچهل وپنج کیلو متربطرف شمال غرب بکابل قراردارد‌که باختررا باکاپیسا وصل‌میکند عامل اصلی که‌باعث تمر کـــز ابدات مهم بودایی دربامیان شده‌است‌همانـا وجود دیوار بزرگ محیر العقولی است‌که‌از مخلوط‌سنگ ریزه وگل درعهد سوم طبقات الارضی بنایافته است .

قرار مطالعات طبقـات الارض کـــه موسیو فیوزن فرانسوی نموده با میان درعهددوم‌کاملا زیرآب‌بوده وباخرو ج سلسله کوه هندوکش درعهدسو م طبقا ت الارضی جدار عمودی‌آن که‌از کنگلو مرا، سنگ ریزه وگل ساختـــه شده‌است نمایان گردیده چنانچه احجارسنگ ریزه های اراضی این دره همه ساییده‌شده وبدون خطالراس است و فوسیل هـــــای حیوانات سنگ شده که عمو ما مربوطبه‌دوره سوم طبقات الارضی میباشد . ازآن‌بمشاهده رسیده است.

دردوره های قبل التاریخ ولایت بامیان‌بـه واسطه همین سا ختمان های طبیعی خودکه برای‌کندن مغاره های اولیه مساعد بودیکی‌از بهترین مراکز بودوباش اسیای میانه بوده‌و بشر عصر قبل التاریخ درین وادی که‌شکار ماهی زیاد دارد به‌خو بی میز یستند .

یونانی هاییکه متعاقب فتو حات اسکندرو مداخلت خاندان مور یا هندی در افغانستان سلطنت مستقل باختری را در دوصدو پنجاه قبل المیلاد تشکیل‌داده اند چون محضـــــس حاکمیت وحراز سلطه سیاسی رادر نظـــر داشتند به معتقدا ت مردم دست نمی زدند بلکه بر عکس برای پیشر فت مرام کشور کشایی خود مذا هب محلی را احترام‌مـــی نمودند چنانچه درباختر تمام اربا ب انواع بومی، یونانی هندی وجود داشته که باین

## ADMINISTRATIVE BOUNDARY MAP OF BAMYAN PROVINCE (28)

## نقشه تقسیمات حدود اداری ولایت بامیان (۲۸)

### LEGEND — اشارات مخصوصه :

| | | |
|---|---|---|
| Province Boundary | — · — | حدود ولایت |
| Woleswali Alaqadari Boundary | — — — | حدود ولسوالی و علاقداری |
| Province Center | ● | مرکز ولایت |
| Woleswali Center | ⊗ | مرکز ولسوالی |
| Alaqadari Center | ○ | مرکز علاقداری |



ترتیب بودیزم در عصر ایشان‌نه تنهادرنقاط جنوب هندو کش بلکه به ماورای شما ل‌آن یعنی جانب بکتریان ریشه دوانیده بود.

وقتیکه کو شانیها در افغانستان استقرار یافت چون اصلا قبایل بادیه نشین بودند. وارحود مذهب نداشته به زودی تحت نفوذ معنوی بودیزم آمده و پیرو عقایدبوداگردیدند مذهب رسمی سلطنت عصر کو شانی هــای افغانستان شد سپس عصر باشکو هی‌بروی بواییت بازشد. مجلل ترین معا بدیکه‌روزگار نظیرآنرا ندیده بود به میان آمد چنا نچـــه شروع عمرانا ت بو دایی با میان راهیوان ـ ستنگ زوار چینی بیك نفر پادشاه قدیمه‌که ممکن کنیشکاه باشد نسبت میدٔ هند. قــرار تخمین که‌نموده اند اولی در قرن اول‌مسیحی ممکن درعصر کنیشکاه ود ومی بین قرن‌دو لی سه‌درز مان احفاد سلاله او تراش ساخته‌شده است ازین لحاظ گفته میتوانیم روز گــــار شکوه وجلال بامیان مقار ن‌به اوایل عهـــد مسیحی در ز مان اقتدار بزرگترین‌امپراطوری کوشانی ها کنیشکای کبیر شـــروع ودر طـی قرون بعدی با سلطنت اولاد اوبه مرا تب برترقی وعظمت آن افزوده شده است .

حفریات اصو لی بامیان بار اول درنزده صدوسی از طرف هاکن شرو ع شد که‌از آنجا علاوه بریك دسته سر ها گلی بوداو بوریس اتو پار چه های نوشته شد ه‌کتاب بودایی به لسا ن سانسکریت‌ورسم الخط های مختلف پیداشده است که تاریخ آنـــرا پروفیسر سیلو ن لوی فرانسو ی بین‌قرون سه وهشت مسیحی تعیین گرده است . ازین معلوم میشود کـــه تازمـــان مقارن مسلمیـــن درینجا راهبین بودایی بامیان زبان‌سانسکریت رااستعمال میکردند .

درزمره شهـــر هاو قـــرای ولایت بامیـــا ن میتوان ازسه شهر تاریخی و باستانی آن یعنی شهر (غلغله) ضحاك وشهر سرخشك نام‌برد.

**شهر غلغله :**

شهر غلغله شهریکه یکز مان‌شهرت بسزایی آنشرق وغر ب رابخود متو جه گر دانیده بود. ودر برابر نیرو مند ترین و خشمگین ترین مها جمین مقاو مت و مجادلت همی‌کرد مخروبه های شهر غلغله در گرد ونواحـــی بالاحصار در میان مزارع وکشت زار ها وبه طرف‌دهکده سید آباد کم و بیش باقی‌مانده است شهر غلغله طوریکه تاریخ حکایت‌می کند به گمان غالب بعد ازبه میان آ مــــــدن سلطنت شنسبا نیه غور ی بدست سلطان علاوالدین جهان سو ز ودر ز مان سلطنـــت نخستین امیر شنسبانی ملك فخر الدین‌برادر اشخم جهان سو زبه میان آ مده است . ـ باشندگان این شهر دربین قرن شش واوایل قرن هفت هجری در سمو چ و آبادی هـــای مستحکمی که بابار ه ها وبر جها بیکه‌ازخشت خام وپخته وسنگ اعمار شده‌بود زندگانی میکردند بعد از اینکه علاو الدین مجمدخوارزم شاه بین سال های ٦٠٧ و٦١١ هجری اردوی غوری و غز نوی رادر هم شکست پسرش جلال الدین درشهر غلغله مر کز یتی‌قایم کرد وبرای مدتی باشهر ت وجلال تام‌حکـم

روایی نمود شکوه و قدر ت آن ر قیبان‌اش رابران وا داشت تابر شکست و کوبیدن‌اواز هیچ گونه تدابیر واقدامی دریغ نکنند.زمان قدرت این حکمر وای فاتح بود که هجوم ـ وحشت ناك چنگیز از صفحا ت شما ل بـــر جنوب هندو کش سرایت کرد ، چنگیزازراه دره‌شکاری وارد این سر ز مین‌شده در شهر ضحاك که آثار خرابه های آنرا در هفـــده کیلو متری قبل ازبامیان درنقطه تقاطع‌آبهای بامیان وکالود درنقاط مر تفع کوه سر خ‌قرار دارد. وجنگ میان مها جمین چنگیز وامیر شهردرگر فت درین زدوخورد مو تی جن‌پسر چغته نواسه چنگیز به قتل رسیدازدیدن این منظره خشم چنگیز به جوش آمده سوگندیاد کرد که آنقدر قتل وقتال درین‌شهر بنمایدکه حتی برای انسان و حیوان امان زندگانی‌ندهد شهرغلغله بعد از مقاو مت‌بسیار شدیددر ـ سال ٦١٨ هـ ق مطابق ١٢٢٢ مسیحی با خاك یکسان شده فاتح مغل آنطوریکه تصمیـــم گرفته بودشهر را آتش زدمردم درمیان‌شعله های آتش جان دادند و گرو هی که ازشعله های‌بی رحم آتش نجات یافتند .ازدم‌تیـــغ خلاصی نیافتند وبالاخره حصار ازادگان‌وکانون علم‌وفضل پادشاهان علم دوست وادب پرور شنسب های غوری وخوارز مشا هی راه‌شهر مغضوب لقب دادند. بطر ف جنو ب شرق خرابه های بالاحصار شهر غلغله در داخـــل دهکده سید آباد بدنه قلعه مستطیل شکـــل یادیوار های بلند مو جوداست که درنـــرد اهالی به قلعه دختر معرو ف میبا شـــــد داستانهای محلی این قلعه رامر بوط به دختر جلال‌الدین مبنکر تی پادشاه خوار ز مشاهی میدانند چنگیز حصار محکم شهر غلغله‌را گرفته نمیتوانست و مدتی لشکر مغلی‌در ـ اطراف حصار سر گردان ماندند وحیـــران بودندکه‌به چه ترتیب ووسیله حصار را ـ بکشانید وبه مجادله جهت اشغال بپردازندتا اینکه بالاخره این دختر ناز پرور خیانتـــی کردونامه برای مهاجمین نو شت ونامه‌رابـــا پیکان تیر درصف مهاجمین انداخت و بـــه آنها فهماند که فتح این قلعه مشکل است تا زمانیکـه سـرچشمه آبـی راکـه در داخـــل حصار می اید ومدافعین شهر ازآن استفاده‌و رفع تشنگی میکنند بسته نشود فتح نصیب مهاجمین مغلی نخواهد بود لذا سر چشمه‌ایرا که درددره کالو است با نمـد تختـه سنگهای نمك مسدود شود وسپاه مغل باین دستور سر چشمه آب رابستند و بدین ترتیب‌راه فتح‌قلعه رادریافتند و آنرا کشودند وامادر مقابل دختر ناعاقبت اندیش نیزفعل زودأمره این‌همکاری خود را با اردوی دشمن چشیدو توسط سپاه مغل به وضع فلاکت باری‌کشته شد.

**شهر ضحاك :**

نام محلیست که بفاصله ١٧ کیلو متـری شرق که‌بین ٦٧ در جه ٥٨ دقیقه ١٣ثانیه طول البلد شر قی و٣٤ در جه ٩ ٢دقیقه‌و٣٤ ثانیه عرض‌البلد شمالی واقع است در نقطه اتصال آبهای بامیان باآب دره کالوروی پوره های بلند وسرخ رنگ کوه برج ها، دیوارهاو

ADMINISTRATIVE BOUNDARY MAP OF BADAKHSHAN PROVINCE (11)

نقشه تقسیمات حدود اداری ولایت بدخشان (۱۱)

| LEGEND | | اشارات مخصوصه: |
|---|---|---|
| International Boundary | —··— | حدود بین المللی |
| Province Boundary | —·— | حدود ولایت |
| Woleswali Alaqadari Boundary | ---- | حدود ولسوالی و علاقداری |
| Province Center | ● | مرکز ولایت |
| Woleswali Center | ⊗ | مرکز ولسوالی |
| Alaqadari Center | ○ | مرکز علاقداری |

1104 Darwaz درواز

1105 Khwahan خواهان

1102 Ragh 217 راغ

شهر بزرگ Bahre Bozurg 1103

Faizabad فیض آباد 1101

1107 Baharak بهارک

Jurm جرم 1108

Keshem کشم 1112

شغنان Sheghnan 1111

218 313 314 315

Wakhan 1113 واخان

Eshkashem اشکاشم 1109

Zebak 1110 224 زیباک

11-BADAKHSHAN

223 319 320 321

Keranomanjan 1106 کران و منجان

N

A. D. S.




تهیه: پروژه سروی دیموگرافی

بقایای قلعه بنظرمیخوردکه یکی‌ازمستحکمترین قلعه های جنگی بوده قسمتی از بـرج هـــای که‌رخ‌بطرف دره کا لو است بنام شهرنریمان هم‌شهرت دارد.

دردوره شنسبانی های غوری درین جـــا حصار مستحکمی ساخته شده که مقاومت آن درمقابل چنگیز خا طره فراموش ناشدنی‌بـــه یادگار مانده است . چنانچه مو تی جن — نواسه چنگیز درسا ل ۶۲۸ هـ ۱۲۲۲ م‌در همین جاکشته شد .

**شهر سر خشك:**

**به فاصلــه ٤ کیلـــو متر دور تـــر از دره** شکاری در سواحل چپ ابهای بامیان برفراز **پوزه بسیار بلند کوه دیوار هـــای یك حصار خرابه که شکـل قلعه رادارد قرار دارد واقع** وازنظر استحکام و مو قعیت سو ق الجیشی اهمیت بسزای داشت . **این حصار ماننـــد** شهر غلغله و ضحاك ابادی **های بشکل‌سموچ وعماراتی از خشت خام نیز ازخودبه یادگار** مانده است. شهر سر خشك دارای دوحصه **معین است که یك تیغه کوه رابه هـــم وصـــل کرده است.**

۱ــخرابه **های** اصل شهر **که مسجدوبعضی** عمارات آن هنوز باقی است .

**۲ــ ارگ یابالاحصـــار که بر فراز حصص** سفلی دره واراضی همجوار وا قع‌است.

دورا دور شهر و حصار دیوار های‌ضخیم وبرجهای مدور دیده میشود که همه ازگــل وسنگ سا خته شده این حصار هم درا ثـــر **هجوم مغل درنیمه اول قرن هفتم هجری‌ویران** شده‌است.

**دریا هاوبند ها :**

بند امیر در۲٤ در جه ۵.۰ دقیقه **عرضـــس البلد** شما لی و۶۷ درجه ۱۲ **دقیقه‌طول‌البلد** شرقی درعلاقه **یکاو لنگک مربو ط ولایت‌بامیان** واقع‌است. بند امیر که **سر چشمه در یـــای** بلخاب مزار شر یف **میباشد بکنار سرك‌بین** یکاولنگک **وبا میان واقع بوده از یکاو لنگك** بطرف شمال شر ق **بفاصله ۱۲ کیلو متروا**ز **بامیان بطرف جنوب غرب تقریبا۶۷ کیلو متر** فاصله دارد. **در حقیقت بند امیر نام‌پنج‌غدیر** مسلسل وکو چك یا اگر **صحیح تربگوییم نام پنج بندی است‌که** غدیر **های مذکـــور را تشکیل داده است .**

**ایـــن غـد یـر هـــا کـــــه مشهـــو ر** ترین‌آن بند هیبت است ازسطح بحر تقریبا ۲۹۲۳ متر ارتفاع **داشته وروی بستردریاکه** بنام غدیر مذکور **موسو م گردیده قراردارند این دریا پس ازعبور ازبامیان یك سلسله** کوه‌ها **علاقه هجده نهر راکه یکی ازتوابع** ولایت بلخ میباشد آب **میدهد.**

غدیر دوم **بند پنیر نام دارد که درحدود** ۱۶ متر پهنایی دارد و **۵ر۵ کیلومترطول‌و ۵۳۸ مترعرض‌دارد. قسمت علیای بندهیبت را** صخره های تند **و عمو دی که حاوی چندین خلیج ها ومدخل های کوچکـی است محدود** نموده **وانجام جنوبی بند مز بور باز واب‌بند** بشکل ابشار **های کو چك وباریکی‌سرازیر گردیده به سطح مر تفع‌که ۱۲ متر پایین‌تر** واقع است **فرو میریزد . این سطح مرتفـــع**

ازرسو ب سفید یا زرد کم رنگی پو شیده شده وآب ازرو ی آن قطره قطره سر ازیر گردیده تقریبا یك کیلو متر پایین ترغدیر کوچك دیگری را تشکیل مید هد که موسوم به‌بند قمبر است ، وغذیر پنجم موسوم‌به‌بند غلامان است که بیك فاصله نسبتا بعیدامـا پایین تر از بند قمبرافتاده است واین بندسه ربع میل بوده خیلی کم آب است.

کوه ها: هندو کش، بابا فولا دی،خواجه غار

**دریا : رودبند امیر :**

کوتلها: سیاه خار ك، ناور ، غوگردان، شانو، قبرافغان، دندان شکن، اق‌رباط، مـلا یعقوب.

پیداوار : گندم، جو ، گلیم.

**مربوطات :**

۱ـولسوالی پنجا ب درجه ۳.

۲ـولسوالی ورس در جه ۳

۳ـ ولسوا لی یکاولنگ در جه٤

٤ـولسوالی کهمرد درجه ٤

٥ـ علاقه داری مربو ط سیغان

٦ـ علاقداری مربو ط مر کز ولایت‌شبر.

**معارف :**

**تعداد مکاتب :**

| | لیسه | متوسطه | متوسطه مربوط لیسه | ابتدائیه مستقل | ابتدائیه مربوط ثانوی | ابتدائیه مستقل | یك معلمه | دومعلمه | مجموع |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پسران | ٤ | ٤ | ٧ | ١١ | ١٩ | | ٤٥ | ١٢ | ١٠٢ |
| دختران | • | • | • | • | ١ | | ٨ | ٣ | ١٢ |

**شفاخانه (۱)**

**مراکز صحی:**

۱ـمرکز صحی سیغان وکهمرد ( دومرکز فرعی).

۲ـمرکز صحی پنجا ب.

**ذخایرمعدنی : آهن ، سنگ مرمر، آهـك، سیلیکا .**

# ولایت بدخشان

موقعیت :شمال شرق.

مساحت : ٤.٨٨٦ کیلو متر مربع.

درجه : پنجم (ازنگاه مساحه)

نفوس : ١٧.٥٦٤

مرکز: فیض آباد.

ولایت بد خشان بین خطو ط طول البلد شرقی تخمینا هفتاد در جه چار دقیقه وسی شش‌ثانیه و عرض البلد شمالی سی وشش

درجه‌وپنجاه وپنج دقیقه شانزده ثانیه واقـع است بدخشان ازجانب شمال بدریای آمو و ازطرف غر ب به قطغن ز مین واز سمت ـ جنو ب بهند و کش واز جهت مشرق‌به‌چترال وترکستان شرقی محدود است دریای پنج که دریای آمو نیز گفته میشود درجوار آن جریان داردذر بدخشان یکسلسله کوه های مرتفعی موجوداست که دردامنه آنها دره ها ووادی های‌خرم وسر سبز وجود دارد آ ب وهوای این منطقه در تابستان خیلی سرد بوده‌ومعابر کوهستانی آن تما ما ازبر ف مستور دریاهای آن منجمد میشوند بنابر کثرت اشجارباران زیادی در انجا میبارد بدخشان از حیـــث معادن غنی بوده و دارای معدن ذیل‌میباشد:

۱ـطلا که‌بصور ت ریف گولد یعنی طـلای سنگی در دیشو راغ بد خشان وجودداردکه بصورت ابتدایی فی تن متر یك تقریباســه گرام طلا راحاویست .

۲ـآهن این معدن در چارده میلی متری شرقی شهر فیض آباد واقع استآهن آن‌از قسم هما تیت می باشد وشهر ت تاریخـــی داشته مهمتر اینست که تاکنو ن ذ ریعـــه آهنگران محلی استخرا ج آن بعمل آمده‌وازآن استفاده می کنند .

۳ـلاجورد بهترین جنس آن در بدخشان وجود داشته وبرنگ آبی اسمانی و تیـــره نیلگون اکثرا باذرات بیرایت که اصطلاحاذر ملك ماآنرا طلا مینما مندبین سنگهای مرمر کران ومنجان بد خشان پیدا میشود .

٤ـلعل بد خشان برنگ بنفش سر خ‌رنگ شفاف بەقطر یکنیم الی دوسانتی دربین‌احجار کنیز ، میکاشیست در ساحهٔ فوقانی مجـاور رودزرد دیوبهارك بدخشان موجـود و شهرت عمومی دارد .

٥ـ کولین گل چینی که‌در اشکاشم‌بدخشان وجوددارد جنسیت عالی دارد ، کا شـــی سازی نیز دربد خشان رواج دارد .

٦ـ گوگرد معد ن به مسافه بیست میل‌در جنوب مر کزی زیباك در دره سنگ لیـــج بدخشان واقع است ذخیره این معدن دوصد هزار تن تخمین شده‌و مقدار فیصدی آن‌شصت فیصد است .سنگ ریشه ابر ك و گرافیت نیزوجود دارد.

دریاها: کو کچه، آب استاده شیوه‌وواخان

کوهها: سلسله کوه واخان ، هندو کش کوه‌بوم، کجاو، بلند ، سندر ، سپین گاو، سفید، خرس.

کوتلها: وا خجیر ، ورم گوت گر پاغـــر پوشال، انجمن.

پیداور: انواع غله جات.

**مربوطات:**

۱ـولسوالی جرم در جه ۲ (علاقه داری مربوطآن بهارك‌وكران‌ومنجان)

۲ـولسوالی درواز در جه ۲ (علاقه داری مربو ط خواهان)

۳ـولسوالی اشکاشم در جه ۳ (علاقه داریهای مربو طآن زیباك وشغنان)

٤ـولسوالی کشم در جه ۳

# د داخلي خبرونو کرونولوژي

**دچنگاښ ۲۴ـ۱۳۵۳ :**

د۲۲۵۰۰ کیلو واټو بریښنا دتولید په‌ظرفیت دنغلو داوبو دبریښنا څلورم توربین د قران کریم د څوایتونو له لوستل کید و وروسته دافغا نستان دبریښنا مؤسسی لــوی رئیس انجنیر محمد عظیم ګران د افغانستان دخلکو دنیکمرغي او ددولت درئیس‌اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤد ترمشری لاندی د جمهوری رژیم دټینګښت په دعا پرانیست ۰

**دچنگاښ ۲۵ :**

زمونږ ملی مشرددولت‌رئیس اوصدراعظم‌ښاغلی محمد داؤد دنارینه او ښځینه څلور سوه اوه اویاتنو بندیانو دبند پاتی موده په مرکز او ولایاتو کی وبښله ۰همدا شان د۱۳۵۲ کال د چنګاښ له شپږو پشتمی نیټی څخه تر اوسه پوری دمرکز اوولا یاتو دڅلور زره دری تنو نارینه او ښځینه بندیانو دبند پاتی موده‌ښښل شویده ۰

**دچنگاښ ۲٦ :**

زمونږ دجمهوری انقــلاب لارښود او مــــلی مشرد دولت رئیس او صدرا عظم ښاغلی‌محمد داؤد دچنګاښ دمیاشتی په۲٦ نیټه دجمهوری زړور فداکار اوځوان اردو برید چه دهیـــوادد جمهوریت دلومړی بختور جشن په منا‌سبت اجرا شو ولید ۰

**دچنگاښ ۲٦ :**

ددولت رئیس او صدرا عظم ښاعلی محمدداؤد دملی تولیداتو نندارتون چه‌دهیوادجمهوریت دلومړی بختور جشن له امله جوړ شوی دی پرانیست ۰

**د چنگاښ ۲۷ :**

دباندنیو چارو دوزارت دمرکز ی آرشیــــف د ودانۍ دبنسټ تیږه دقرآن عظیم الشان‌دځو آیتونو له لوستل کیدو وروسته ښاغلی محمد نعیم کیښوده ۰

**دچنگاښ ۲۹ :**

په دوستوهیوادو کی‌دافغا نستان دجمهوری دولت سفارتونو او سیاسی نمایند ګـیو د هیواد دجمهوریت دانقلاب لومړی جشن ددرنو وګړلنو او میلمستیا ؤپه ترځ کی نمانځلی‌دی۰

**دچنگاښ ۳۰ :**

د جمهوریت دنیکمرغه جشن په مناسبــت دهیواد دپوهنی دوه سوه څلور پنځــــوس تنومنسوبینو ته ددولت درئیس اوصدراعــظم ښاغلی محمد داؤد لخواد سرو زرو ر ښتین نښانونو دژیړو رښتین‌نښانونو اونکلی‌رښتین نښانونو ورکول منظور شویدی۰

**دچنگاښ ۳۰**

دجمهو ریت دلومړی جشن په ویاړ دمالیی وزارت مدالونه جوړ او دویش دپاره یـــــی افغا نستان بانک ته سپارلی دی ۰دغه مدالونه سل افغانۍ بیه‌لری ۰

**دچنگاښ ۳۰:**

دجمهوریت لومړنی خلی چه‌په هیواد کښی دنوی نظام دکالیز ی‌په مناسبت دهرات دښار دجمهوریت دواټ په څلور لاری کښی دهرات دولایت دکاری ګرانو له‌خوا جــــوړ شوی و

پرانستل شو.

**دچنگابن ۳۱ :**

دکليو دپراختيا مقررات دوزير انو دعالي مجلس له تصويب او ددولت د بناغلي رئيس اوصدراعظم لەمنظوری وروسته په رسمـــــی جريده کی خپاره اونا فذ شول .

**دزمری لومړی :**

دبلخ ولايت ددولت آباد ولسوالیپەکليو کی څه دپاسه څلور زرو تنو ته دڅښلو د صحی اوبود استفادی زمينه پيدا شويده •

**زمری ۵:**

دعظمـــــی صدار ت مرستيال ډاکتر محمـــد حسن شرق په شهر ارا کی دهاشم زيړ نتون پرانست •

**دزمری ۸ :**

دکرکرد ډبرو سکرو دکان آمريت ته دزلزلی پەاثرلس مليونه افغانۍ تاوان رسيد لـــی خود هيواد پەنورو سيمو کی زيان ندیپيښـــی شتوی.

**دزمری ۱۳:**

پوهنی وزير ډاکتر نعمت الله پژواك اود فرانسی دجمهور يت دپوهنی وزير بناغلیرنه ابی دپتهپ په پريکو لوسره دمراسمو پـــــه ترڅ کنبی داستقلال دليسی نوی ودانۍ چەد فرانسی دحکومت په مرسته په عصری تو گه بشپړ شويده په گډه سره پرانيستله •

**دزمری ۱۵ :**

دفوايد عامی وزير بناغلی غوث الدين فايق دکاپيسا دلويی ولسوالی دکلالا نو اوخم زرگر سرکچه نوی جوړ شوی پرانست .

**دزمری ۱۷ :**

دننگر هارد ولايت داچين له معدن څـــخه دتلك دايستلو کارد ننگرهار دوالی له خوا پرانستل شو.

**دزمری ۱۹:**

دپوهنی دمديرانو سيمينار د پوهنی دوزير ډاکتر نعمت الله پژواك له خوا پراستل شو•

**دزمری ۲۱:**

دوزيرا نوعالی مجلس په تصويب او د دولت دبناغلی رئيس اوصدرا عظمپه منظوری پەدريو مادو کی دمحا سباتی دوسيودمر حلو دتيرولو په باب دعظمی صدرات دمحاسبا تو دپلټنی درياست پيشنهاد ثبتاو تصويب شو هغه دوسيی چه انضباطی جزا او په خلکـــو باندی دباقيانو تحويلی پەکنبیده دجزا دتطبيق د کار دچټکتيا او گټور توبتا مين اوپه دوی باندی دپاتی پيسو دتحصيل دپاره دی پرته له دی چه څارنوالیو ته وړاندی شی پەمستقيم ډول دی دمحاسباتو ددیوان درياست له لاری حل او فصل شی •

**د زمری ۲۲ :**

دهيواددو لاياتو خلکو دنوی نظامله ټينگيدو راهيسی بياترا وسه پوری له پوهنی سره څه دپاسه دری مليونەاتە سوه زره افغانیمرسته کړی اوڅه دپاسه سل ښوونځی يی پـــه داو طلبانه توگه بشپړ کړيدی •

**دزمری ۲۲ :**

دروغتيا دوزارت داکسر يزونو د رياســت دسږ کال دلومړيو څلورو مياشتو په عايداتو کی دتير کال دهمدی مودی دعوايد وپه نسبت دری سوه شپږ او يازره او څه دپاسه ســل

افغانی زیاتی شویدی .

**د زمری ۲۵ :**

ددولت درئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد دلار ښوونی په اساس اوه سوه دیرش جریبه ځمکه دهلمند دناوی په پروژه کی د هیواد یوشمیر بی ځمکو کورنیو ته وو یشل شوه .

**دزمری ۲۶ :**

ددولتی مطبعی دکارګرو دبیمی دسپنسر ی پرانستل شوه .

**د زمری ۲۷ :**

ددولت رئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد دولایاتو دپو هنـــی دمدیـــرانو ســره دخبروپه وخت کیوویل :(دیوه ولس نیکمرغی هغه وخت تامینیدلی شی چه دهغه ټول خلك په لوړو علمی معیارونو سمبال شی ...)

**د زمری ۲۷ :**

دیوشمیر هغو خلکو نسبتی دوسیه دبشپړ یدو وروسته دیوان حرب ته سپارل شویده چه پخوا درهشت اچولو او جاسوسی په جرم بالفعل نیول شوی وو دیوان حرب ددوی په باب داسی فیصله صادره کړیده حبیب‌الرحمن د اعدام په جزا محمد عطاء الله په عمری بند غلام سخی او تورن حاجی محمد هریو پـــه پنځلس کاله بند ۰لومړی برید من محمد عمر پهلس کا لـه بند، بریدمـن نور الـدیـن، غلام‌دستګیر اوجګتورن محمد طاؤس هریوپه اوه کاله بند ،تورن اختر محمد په شپږ کاله بند. جګتورن عبدالمؤمن په خلور کاله بنـد منتظم عبدا لسبحان او تورن دوست محمد هر یو په دری کاله بند محکوم شویدی . همدغه راز هغه شپی او ورځی چه جګتورن‌فضل‌باقی په توقیف کیی تیری کړیدیدهغه دپاره پوره ګڼل شویدی .

**زمری ۲۸:**

دانقلابی دولت تګ لاری په‌اساس دهلمند دناوی په پروژه کی یو شمیر مستحقو اوبی ځمکو کورنیو ته۳۳۸ جریبه نوره‌ځمکه وویشل شوه .

**زمری ۲۸:**

دنفوسو جهانی ورځ درادیو افغا نستان په ستر تالار کی دیوی ټولنی په‌ترځ کی‌ونمانځل شوه .

**دزمری ۲۸:**

دولایاتو دپوهنی دمدیرانو سیمینار چــه دزمری دمیاشتی په ۱۹ نیټه په کابل کــی جوړ شوی پای ته ورسید .

**دزمری ۲۹ :**

دافغا نستان دجمهوری دولت‌دبشر غوښتنی دهدفونو په پیروی دافغانی‌سری میاشتی‌ټولنی دبنګله دیشی دوروستیو سیلاوونو له تاوانی شویو کسانو سره نغدی مرسته کړیده .

**دزمری ۳۰:**

آریانا افغان هوائی‌شرکت په ۱۳۵۲ کا ل کی‌څه دپاسه څوارلس ملیونه افغانی خالصه ګټه کړیده .

دکند هار دولایت دسږکال په در یولومړیو میاشتو کی دتازه میوی صادرات ددغه ولایت دتیر کال دهمدی مودی په نسبت په سلو کی اتیا زیات شویدی .

**دوری لومړی :**

دچکو سلواکیا غره ګرځیدو نکی هیت د

هیواد دجمهوري لومړی جشن په وخت کی د نوشاخ څوکی تهختلی اود دواړو هیوادو ملی بیروغونه یی په دغه څوکه کی ورپول .

**دوړی ۲:**

دافغا نستان دجمهوري دولت دبودجی نوی مقرره دمالیی دوزارت په پیشنهاد دوزیرا نود عالی مجلس دتصویب په اساس او ددولت د ښاغلی رئیس او صدرا عظم په منظوری تــر تطبیق لاندی ونیول شوه .

**دوړی ۲:**

دشبر غان په جرقدوق کی د گاز دپلټلو یوه څاه چه له کنترول څخه وتلی وه او د هغی گاز نیغ پورته کیدو دکورنیو ماهرانواو د شوروی اتحاد دماهرا نوپه گډه کوښښ سره غلی کړی شوه .

**دوړی ۳:**

دجمهوری دولت دکړنلا ری په اساس د هیواد دولایاتو یو سلو پنځوبی څمکو کورنیو ته نوره یوزرو دوه سوه او شپیته جر یبه ځمکه دهلمند په ناوه کی وویشله شوه .

**دوړی ۸:**

دماشو مانو دورځی مراسم دعامی روغتیا د موسسی په ادیتوریم کی په ځای شول .

**دوړی ۱۱ :**

دمالیی دوزارت په پیشنهاد دوزیر انو د عالی مجلس په تصویب او ددولت دښا غلی رئیس او صدرا عظم په منظوری دهغو موټرو خاوندان چه گمرکی سندو نهولری یایی ونهـ لری کولی شی چه خپل موټرونه د هیڅ ډول جریمی څخه پرته دسږ کال دمیاشتی تر ۲۱ نیټی پوری محصول کړی ٠که دغی نیټــی له تیریدلو وروسته داسی موټرونه ولیدل شوی دقانون سره سم به مصادره او ضبط شی . همدارنگه هغه موټرونه چه له گمرکی سندونه پرته هیوادته راوړل شی دگمرگیو دقا نو ن سرهسم ضبط کیږی .

**دوړی ۱۲:**

دیارلس زره څلور سوه نوی متره غا لی د سږکال دزمری په میاشت کی د تیر کال د همدی مودی په اندازه زیاتی بهرته صاد ری شویدی .

**دوړی ۱۲ :**

دتالقا نود ښار دجمهوریت واټ دبرښنا د ستنوپه درولواودمزی پهغزولو روښانه شوی دی . د جمهوریت واټ په روښانه کولوکی دډیزلی جنریترونو څخه کار اخیستل کیږ .

**دوړی ۱۲:**

دهیواد دجمهوری هدفونو په پوره کولوکی دښځو دبرخی په باره کی یوه غونډه پهمیرمنو ټولنه کی وشوه .

**دوړی ۱٤ :**

دکرنی دفعالیتونو دپراختیا او همدا رنگه د میکانیزه کرنی درو اجولو په مقصد په یــوه وروستی کال کی د بلخ دولایت کروند گروته د آسانو شرطوله مخی ٦٥ ټراکټو رونه او٦۳ واټر پمپونه ورکړ شویدی .

**دوړی ۱٤ :**

د افغان نو میالی شاعر اروا ښاد عبدالعلی مستغنی دزیږیدنی سلمه کالیزه په هفــــه ښوونځی کی چه دهغه خدای ښنبلی پهنامـــه یادیږی ونمانځل شوه .

**دوړی ۱۵ :**

د جمهوری دولت دکرنلا ری په اساس د هلمند دناوی په پروژه کی‌بی ځمکو کورنیوته یوزرو څلور سوه او اتیا جریبه نوره ځمکــه وویشل شوه.

**دوړی ۱۶ :**

د سپینسیو اوبدلو یوه نوی فابریکه د۴۵ ملیونو افغانیو په لګښت دسید مرتضــی د نساجی دفابریکی په څنګ کی پرانستل‌شوه.

**دوړی ۱۶ :**

دفراه دولایت دکرنــی لیسه چه دشپږ و میلونو شپږزره افغانیو په لګښت جوړه‌شوی دهغه ځای دوالی له خوا برانستل شو.

**دوړی ۱۸ :**

زمونږ دملی مشرددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد په پیغام سره چه له‌راډیو افغا نستان څخه خپور شو دمطبوعاتو ورځ او د سواد جهانی ورځ په ټول هیواد کی‌ونمانځل شوه.

**دوړی ۲۰ :**

د غزنی په ولایت کی څه دپاسه اوه سوه تنو ښوونکو ته د ښوونی او روزنی دکیفیت دښه والی په غرض دپوهنی دوزیر ډاکتــر نعمت الله پژواك لخوا یو سمینار پرانستــل شو.

**دوړی ۲۶ :**

دقره قل یوسلو شپږ اویازره نه‌سوه شپـږ پوستکی په یو ملیون څلور پنځوس زره‌پنځه سوه اووه ډیرش سترلنګ پونډه په لندن‌کی دافغانی قره‌قل دپوستکو په لیـلام کی پلورل شویدی.

**دوړی ۲۶ :**

هغه سیمینار چه دښوونی او روزنــی د کیفیت دښه والی اودتدریس له نویو سلوکو نوسره دښوونکو دزیاتی بلد تیا په مقصــد تیره اوونی جوړ شوی وپای ته ورسید.

**دوړی ۲۷ :**

دجمهوری ریاست دارګ په‌جومات کــی‌د دولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمد داؤد په ګډون دتراویحو په لمانځه‌کی دقرآن‌کریم ختم پیل شو.

**د وړی ۳۰ :**

د تصدیق قانون په ۴۷ مادو کی او همدا رنګه دکانو او صنایعو دوزارت په چوکاټ کی دبلخ دجن‌او پرس او تیلو ایستلــو د مؤسسی اسا سلیك په ۱۱ مادو کی درسمی جریدی په ۱۱– او ۱۲ ګڼه کی خپاره اونافــذ شویدی.

**دتلی ۲ :**

دهرات والی دهغه ولایت دغور یانــو د ولسوالی دمرکز دښښلو دصحی اوبود پروژی لومړی مرحله پرانستله.

**دتلی ۲ :**

شپاړس ټراکتوره نو لس ارټونه او دری اویا واټر پمپونه د کرنی دبانك نماینده ګــی دسږکــال په‌لومړیو شپږ ومیاشتــوکی‌د نیمروز او فراه دولایتو نو کروند ګروته په په‌پور ورکړی دی.

**دتلی ۳ :**

دتراو یحود لمانځه په ترخ کی د قــران

عظیم ایشان ختم چه‌ددولت‌درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤد په ګډون دجمهوری ریاست دارګ په جومات کی دقاری محمد عمرپه‌امامت پیل شوی ؤ‌پای ته ورسید ۰

**دتلی ۳:**

دچغندر ودکرنی دپرمختیا دپاره دبغلا ن دقند دشرکت لخوا څه پاسه دیارلس ملیونه افغانی دچغندرو کروند ګروته دتقاوی په توګه ورکړی شویدی ۰

**دتلی ٥ :**

دکندز دعالی‌دارالمعلمین دتجربوی ښوونځی کتابخانه دکندز والی ښاغلی عبدالرزاق عابدی پرانستله ۰

**دتلی ٦ :**

دوزیرانو عالی مجلس دبیو داستقـــرار د سیاست تمدید تصویب کړ ۰ددغی فیصلی‌له مخی به دروان کال ترپایه پوری دیو شمیـــر لومړنیو دعامه ضرورت وړمالونو په باب د بیود استقرار سیاست دوام وکړی ۰

**دتلی ۷ :**

د دارالا مان دور ینبمو دچنجیو دفارم د پروژی دور ینبمو دغوزو حاصـلات سږ کا ل په‌دوو کمپاینو نو کښی دهـــغه دتیرکال د کمپاین په نسبت په سلو کښی څه د پاسه دوه سوه زیات شویدی ۰

**د تلی ۸ :**

سږ کال دهرات ،بادغیس ، بدخشان ،بلخ، کندز، جوزجان ،ننګرهار او لغمان دولایا تو دور ینبمو دچنجو خاوندانو ته شپاړس زر ه نهه سوه یو شپیته جعبی مورنی تخم ورکړ شوی چه دهری جعبی حاصل یی د اتو اونهو کیلوګرامو ترمینځ دی ۰

**د تلی ۹:**

دمولینا جلال الدین بلخی دستر شخصیت او دهیواددِ دغه ستر عارف دکار نامو په باب سیمینار داطلاعاتو او کلتور دوزیر پو هاند ډاکتر نوین په وینا پیل شوه ۰

**دتلی ۱۰ :**

**ددولتی انحصار دمو سسی اساسنامه چــه** شپږ فصله او پنځه ویشت مادی لری درسمی جریدی په دیارلسمه ګڼه کی خپره اونافـــذه شوه ۰

**د تلی ۱۳ :**

دباندنیو چارو دوزارت دنطاق دنیوزو یك دمجلی د ۱۹۷٤ کال دسپتمبر د میاشتی د ۳۰ نیټی دګڼی دی ادعا ته‌داشاری په‌ترڅ کښی چه دشوروی اتحاد مقاماتو دافغـــا نستان د ۱۳۵۲ کال دچنګابښ‌په انقلاب‌کښی لاس درلود لازمه بولم څرګنده کرم چه‌ددغی بی اساســه خوب و خیال دامریکا دسی ای‌ای دجاسوسی اداری دخپلو شو مودسیسو دتبرئی او ددغو ناوړو اعمالو دپټولو په غرض اختراع کړی دی چه‌په هغویی اقرارهم کړیدی‌دافغا نستان دچنګابښ د ٢٦ نیټی انقلاب پوره یو ملـــی حرکت وو اودوطن پالوونکو افغانانو لخوا اود داخلی علتونو او سببونو له مخی وشو ۰

افغا نستان هیڅکله په خپلو کورنیو چارو کښی په هر ډول چه‌وی دخارجیانو مستقیمه او غیر مستقیمه مداخله نده منلی اونه یـــی منی ۰

**د تلی ۱۷ :**

د عدلیه وزارت دقضاء دعالی اداری اختصاصی کتابخانه د عدلیه وزیر او لوی ځارنـــو ال ډاکتر عبدالمجید له خوا پرانستله شوه .

**دتلی ۱۹:**

دباندنیو چارووزارت دپاکستان دصدراعظم ذوالفقار علی بوټو ددی ادعاپه ځواب کښی چه دافغا نستان دباندنیو چارو د وزارت سیاسی معین دواشنګټن پوست دورځپاڼی نما ینده ته ویلی دی چه که د افغا نستان او پاکستان ترمینځ دښمنی پیښه شی شوروی اتحاد اوهند به دافغا نستان په طرفداری مداخله وکـــړی وویل :چه دغه ادعا د ښاغلی بوټو دخیالاتونه پیدا شوی او په خپله دهغه دذهن او فکـــر زیږنده ده .

څرنګه چه واشنګټن پوست د نماینده سره دافغا نستان دباندنیو چارود وزارت دسیاسی معین دمرکی بشپړ متن دمخه خپور شوی ددغه متن مطالعه دپاکستان دصدرا عظم دوینا بـی اساستوب او جعلی توب ثابتوی .لکه چـــه افغا نستان په وار وارویلی دی دافغا نستان او پاکستان دسیاسی اختلاف دحل لاره دسوله ایزو وسایلوسره دبی قید اوشرطه خبرو کولو لاره ده. اوترهغه ځایه چه په افغا نستان پوری اړه لری په دغه لار کښی به دتل دپاره خپل کوښښ ته دوام ورکړی .

**دتلی ۲۰ :**

د عظیم الشان قران دنزول کالیزه په کابل پوهنتون او دهیواد دولایتونو په ځینو جوماتو نوکی دغونډو په ترڅ کی ونمانځل شوه .

**د تلی ۲۰ :**

ددولت درئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد دهدایت به اساس په یو سلو دوه اویا مستحقو کورنیو باندی دغور بندد اوبو لګولو په نوی پروژه کی ځمکه ویشله کیږی.

**دتلی ۲۶ :**

د دولت د رئیس او صدراعظم او دافغانی سری میاشتی د ټولنی د حامی ښاغلـــی محمد داود به پیغام سره چی د راډیـــو افـغانستان نه خـپور شو دسری مـیاشت مخصوصه هفته پەټول هیواد کی پیل شوه.

**دتلی ۲۶ :**

ددولت رئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد دتلی د۲٤ ورځی په سهار په نهه نیمو بجود نیکمرغه کمکی اختر لمونځ دقاری محمد عمر په امامت دجمهوری ریاست دارګ پـه جامع جومات کی اداء کړ .

**د تلی ۲۸ :**

دکانو او صنایعو وزیر پوهاند عبدا لقیوم دپلخمری دبیرایتو داوړه کولو دستګاه پرا- نستله .

**د تلی ۲۸ :**

دتور غونډی بندر دشیرخان بنـدراود حیرتان دبندر د تصدیو اساسنامی درسمـی جریدی په خوار لسمه ګڼه کی خپور اونافذ شوی . دغه اساسنامی د تجارت دوزارت د پیشنهاد په اساس دوزیرانو عالی مجلـس تصو یب کړی او ددولت ښا غلی رئیس او صدراعظم منظور کړیدی.دتور غونډی شیر- خان اود حیرتان دبندر ونو دتصدیو اساسنامی

هره یوه څوار لس مادی لری ·

**دتلې ۳۰ :**

دآسیا دجنوب سیمه ایز **سیاحت کمیسیون** دریمه جرګه تر غرمې **د مخه په کابل کی د ملکی هوایی او توریزم دعمومی رئیس ښاغلی** سلطان محمود غازی له خوا **پرانستل شوه** ·

**دلړم لومړی :**

ددولت رئیس او صدرا عظم ښا **غلی محمد** داؤد له غرمې نه وروسته **په دوو بجود جشن** دسیمې په چمن کی دبزکشۍ **ستری مسابقی وکتلی** **اود** قهرمانی ستر بیرغ **او کپ یې دتخار د** ولایت دټیم رئیس ته **ورکړل** ·

**د لړم ٤:**

دافغا نستان دتیلو دموسسې **قانون درسمی** جریدی په پنځلسمه ګڼه کی خپور **او نافذشوی** دی · دغه قانون پنځه فصلو نه **اواوه ما دی** **لری** ·

**دلړم ٥ :**

د تیرکال له نیمائی څخه تراوسه **پوری د** کابل دښار په حوزه کښې **دلیك لوست دزده** کولو یوسلو دوولس کورسونه **نوی جوړشوی** دی ·

**دلړم ۷:**

دموټرونود حق العبور مقررات **په پنځـــو** فصلو نواو اته څلویښتو **مادو کښې د رسمی** جریدی په شپاړ سمه ګڼه کښې **خپاره اونافذ** شوی **دی** ·

**دلړم ۱۰ :**

زمونږ ملی **مشرد** دولت رئیس **اوصدراعظم** ښاغلی **محمد** داؤددامریکا دباندنیو **چارو وزیر** ډاکتر هنری کیسنجر د **جمهوری ریاست په** ماڼۍ کښې دکتنی دپاره ومانه.

پدغه کتنه کی **دافغا نستان او امریکا ددوه** اړخیزو روابطو جهانی مسئلو **او پدغه سیمه** کښې دحالاتو **دپرمختیا په باب خبری وشوی**·

**دلړم ۱۱:**

دآسیایی پر مختیایی **بانك دعملیاتو دمدیر** ښاغلی بیرن په مشری **ددغه بانك هیات د** پـلان له وزیرښاغلی علی‌احمد **خرم‌سره وکتل** **اود کجکی دبند دپر چاوی دجوړولو په مقصد** ئی ددغه بانك له خوا دڅوارلس **ملیونو ډالرو** پور دموافقی او **دتخنیکی مرستی دموافقی په** باب **خبری وکړی** ·

**دلړم ۱۲ :**

دافغا نستان جمهوری دو لت **دمامورینو** کروند ګرو او کار ګرانو **دپاره داسانتیا وود** برابر ولو په غرض دکو پراتیفو **نو قانـون** تدوین **کړیدی** ·

**دلړم ۱۳ :**

دهغو مهمو صادراتی **مالونو تټوله بیه چه** د ۱۳۵۳ کال په لمړیو شپږ **ومیاشتو کښې** بیلوبیلو بهر نیو ملکو ته **صادر شویدی پنځه** ملیارده اوڅلور سوه اولس **ملیونه افغانی‌ده** چه ۹۱ عشاریه پنځه ملیونه ډالره **کیږ ی**·

**دلړم ۱۳ :**

دسراج دبند دکنترول دبرج **دبنسټ تیږه** دغزنی والی **کیښودله** ·

**دلړم ١٤ :**

دمیزو دصادراتو **دپر اختیا دمؤسسې مرام** نامه دوزیر انو **عالی مجلس تصویب او د**

دولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤد له منظوری وروسته دجریدی په اولسمه گڼه کی خپره او نافذه شوه.

**دلړم ١٤ :**

په تیراتو باندی بار یوشمیر لاری له پلخمری څخه دپترولو دپلټنو دبرمه کولـــو ساحی ته ولیږ دول شوی ٠ دا لومړی ځـل دی چی په هیواد کښی دننه دبرمه کولو پـه چاروکښی دبیرایتو له پودرو څخه کاراخستل کیږی ٠

**د لړم ١٥ :**

دبرات لمنځ دممیزو پاکولو فابریکی دڅه دپاسه اوه لس نیم ملیونو افغانیو په پانگـه دمزار شریف په ښار کی په کار پیل وکړ٠ دغه فابریکه په یوه ساعت کی دوه ټنه ممیزد بین المللی مارکیټو نو دغوښتنی سره سم پاك اوبسته بندی کوی ٠

**د لړم ١٥ :**

دبدخشتان دولایت دخواهان دعـلاقه داری دهوایی ډگرو ترمینل دودانو لو دپارهملکی هوائی اود توریزم لوی ریاست یو ملیو ن افغانی تخصیص ورکړیدی.

ددغه ترمینل دبنسټ ډبره دبد خشان والی ښاغلی تاج محمد کیښودله ٠

**دلړم ١٧ :**

د دولت رئیس اوصدرا عظم ښاغلی محمد داؤد دپیغام په لوستلو سره دامانی لیسی د تاسیس پنځوسم کال پهیوه ستره تولنهکښی په هغه لیسه کی ونمانځل شو.

زمونږ دملی لارښود دارادی لـــه مخـی تقریبا دخلویښتو کلونو وروسته دعلمیاو فرهنگی مرکز دهغه دموسس په نامه او پخپل لومړنی نوم یعنیامانی لیسهیاد شو ٠داغونډه چه دهغی لیسی پهستر تالار کی وشوه لومړی د قران عظیم الشان څوایتونه ولوستـل او وروسته له هغه چهد افغا نستان د جمهوریت ملی سرود اود المان دفدرالی جمهوریت ملی سرود وغږول شو د دولت دښاغلی رئیس او صدرا عظم پیغام دپوهنی وزیر ډاکتر نعمت۔ لله پژواك ولوست ٠

**دلړم ١٧ :**

دافغا نستان په فضائی قلمرو باندی د پاکستان دنظامی هیلی کوپتر دتیری له امله د پاکستان د حکومت درسمی معـــذرت او د دغه هیلی کوپتردعملی دخوشیکولو نهوروسته د پاکستان نظامی هیلی کوپتر دهغه هیواد حکومتی مقاماتو ته وسپارل شو ٠

**دلړم ١٧ :**

دسرپل دولسوالی د شاچنار دکلـــی د ښوونځی دودانۍ دبنسټ ډبرهدجوزجاندوالی ډاکتر خلیل احمد ابوی له خوا کیښودلـه شوه ددغه ځای خـلکو دښوونځی دودانۍ له پاره یو سلو دیرش زره افغانی او دوه جریبه ځمکه مرسته کړی ده چه په تشکر سره منل

شو یده ۰

**د لړم ۱۸:**

دجغندرود حاصلاتو په رسیدلو سره **دبغلان** دقندد فابریکی شپږن دیرشم کمپاین د **هغه** ځای والی پرانست ۰دسږ کال **کمپاین** به دری میاشتی وخت ونیسی ۰

**دلړم ۱۹ :**

د افغانستان بانك کالنی **عمومی ټولنی په** داسی حال کښی چه **دپلان وزیر ښاغلی** علی خرم اودعالی شورا **نورغړی حاضرو**و **د** مالیی دوزیر ښاغلی سید عبدالاله پهمشری دافغا نستان بانك **په سالون** کښی **غونـــډه** وکړه ۰

په دغه غونډه کښی دافغا **نستان بانـــك** د ۱۳۵۲ کال په بیلانس باندی **غورو شو اود** بانكد ۱۳۵۲ کال بیلانس تصویب **شـــو ۰** غونډی دافغا نستان **بانك** دکالنی **بیـلا** نس له خالصی گټی نه چه د ۱۳۵۱ کال **پهنسبت** په سلو کښی لس زیاته **ده یو څه پیسی** خیریه موسسو ته منظوری کړی.

**د لړم ۱۹ :**

دښځو بین المللی کال **دهدفونو په با ب** دمیرمنو دټولنی له خوا دزینب ننداری **پـــه** تالار کښی یوه غونډه **شوی وه ۰پدغه غونډه** کښی چی دهیواد یو شمیر **منورو میرمنو د** هغی موسسی اداری او مسلکی **غړیو اوزده** **کوونکو برخه اخیستی وه په ټولنه کښی د** ښځو ددریځ په شاو **خواکښی مقالیولوستلی** شوی ۰

**دلړم ۲۰ :**

دجمهوری دولت دتگ لاری **په اساس تراوسه** پوری په دولتی پروژو **کی په پنـــځه زره** دری سوه یواو یابی **څمکو کورنیو باندیځمکه** ویشل شو یده ۰

**دلړم ۲۰ :**

دسږکال **پهلوم**ړیو شپږو **میاشتوکـــید** گلبهار پلخمری او جبل السراج **په** نساجی فابریکوکی څه دپاسه نهه **ویشت ملیو نـــه** یوسلو اوه څلویښت زره **مترسپنهـــسین او** سونډی ټوکران تولید شو یدی ۰

**دلړم ۲۲ :**

د کرنی دپرا ختیا بانك دسږ کال **پـــه** لومړ**ی یو** شپږ ومیاشتو کی **څه دپاسه یو سل** اونهه ملیونه افغانی **دهیواد دکروندگرو** سره دپور ورکولو **پهډول مرسته کړ یده**

**د لړم ۲۶:**

دکرنی او اوبو لگولو دوزارت **په پیشنهاد** **دافغان** کیمیاوی سری **دشرکت**اسا سنامه **د** وزیرانو دعالی مجلس تصویب **او ددولت د** ښاغلی رئیساو **صدرا عظمله منظوری وروسته** درسمی جریدی په **اتلسمه گنه کښی خپره** او نافذ شوه ۰دغه اساسنامه **چه په هغیکښی** دکیمیاوی‌سری دشرکت **دشرایطواو څرنگوالی** په برخه کښی **یولړ مطالب شته نهه‌فصلونه** اوانه دیرش مادی لری ۰

**دلړم ۲۷ :**

په روان کال کی دهیواد **څه د پا ســـه** څلویښت زره ټنه **شیان او پیدا وارد حیرتان** **بندر له لاری خارج ته صادر شویدی ۰ دغه**

شیان پنبه ـ ممیزد شفتلي تخم ـ غوزان ـ زغر بادام او انارډی چه څینی یی شوروی اتحاد او څینی نورئی اروپائی هیوادو ته صادرشوی دی .

**دلړم ۲۸ :**

ددری زره شپږ سوه تنه غوړیو دپیرودلو تړون په کندز کی دارزاقو او عامه اړتیاو د ریاست او سپین‌زر شرکت تر مینځ لاسلیك شو .

**دلړم ۲۹ :**

دانقلابی دولت دتګ‌لاری په‌اساس دپروان دولایت دغوربند داوبو الګولو په پروژه کـی یوسلو دوه اویا مستحو کورنیو ته ځمکـــه وویشل شوه .

**دلیندی لومړی :**

دپناراوړونکو پلوڅو دماشو مانو دپـاره یوه لومړنـی ښوونځی په کو کـران کښی دکندهار والي پرانست.

**دلیندی ـ ۱:**

د سمنګانو د ولایت د خلم له وسوالی‌نه په وروستیو دریو میاشتو کی پنځه سوه‌ټنه بادام خارج ته صادر شویدی .

**دلیندی ـ ۱:**

دزابل د ولایت د شهر صفا دولسوالـی دمرکز دنقشی کرښی دکابل ، کندهاروات جنوبی لوری ته په دوولس زره متره مربـع ساحه کی د فواید عامی د وزارت دانجنیرانو لخوا واچول شوی .

**دلیندی ۲:**

دکوپرا تیفونو قانون درسمی جریدی په فوق العاده ګڼه کی خپور او نافذ شو . دغـه قانون چه کروند ګرو کارګرو او مامور ینوته داسانتیا ؤدبرابر ولو په غرض جوړ شوی د یارلس فصله اویو پنځوس مادی لری .

**دلیندی ۲:**

دکونړ دلویی و لسوالی‌دسالار دویالـی‌د پروژی کار دکلیو دپراختیا دریاست له خوا پیل شو. چه په دغه پروژه کی دسربندخوړ ساتونکی دیوال او سیفو نو جوړول شامل‌دی چه په بشپړ یدو سره به یی دکرد سیمی‌په زیاتی ځمکه هم داوبو لاندی شی .

**دلیندی ۲:**

دکندهار هلمند او نیمروز دولایاتو کروند ګروته د ټراکټور رونوویش په کندهارکی دکرنی دپراختیا بانك پیل کړ. له دغـــو ټراکتورونو څخه هریو یی ددری سوه نوی زرو افغانیو په بیه کروند ګروته ورکـول کیږی چه دهغی په سلو کی شل افغانی نغدی او پاتی یی د پنځو کلونو په قسط اخیستل کیږی .

**دلیندی ۲:**

دقرقین دولسوالی دروغتیا مرکز او داوبو رسولو پروژه دجوزجان پرانیستله .

**دلیندی ۳:**

دکرنی دماشینی کولو په مقصد سږ کال اولس ټراکتوره او اوه واټر پمپه پـه ښو شرایطو سره دهرات دولایت کروند ګرو نه

ورکړی شویدی ۰ ددغو وسایط بیه چه څـه زیات وکم شپږ ملیونه افغانی کیږی‌یوه‌برخه په نغدو او یوه برخه یی په قسط کروند ــ گروته ورکړای شویدی ۰

**دلیندی ۳ :**

اقتصادی عالی شورا ددولت د رئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد په مشری د جمهوری ریاست په ماڼی کی‌غونډه وکړه‌اود بشری قواؤ دجذب په مربوط رپوټ‌یی‌چه‌د اقتصادی بورد لخوا برابر او وړاندی شوئ‌ؤ خبری وکړی ۰

اقتصادی عالی شورا ددغه رپوټ په‌بیلوبیلو اړخونو باندی دغوراو څیړنی نه وروسته د هغه دډیر ژر تطبیق لپاره دمربوطو مراجعو د لازمو اقداماتو سپار ښتنه وکړه.

**دلیندی ٤:**

دکرنی یو سلو څلویښت ټراکټورونـه‌تر اوسه پوری دکرنی دپرا ختیا بانك د کندز تخاراو بغـلان دولایتونو کروندگروته ورکړی دی ۰

دکرنی د حاصلاتو دزیاتوالی په مقصــــد ټراکټورونه کروند گروته یوڅه په نغـدواو یوڅه په پور ورکړ شویدی ۰

**دلیندی ٤:**

دافغانی قره‌قل دری سوه اوه اویازره څلور سوه لس پوستکی دلندن په لیلام کی په دوه ملیونه یوسلو شپږ ویشت زره دوه سوه‌شل سترلنگ پونډه پلورل شویدی ۰

**دلیندی ٤:**

د مبارکی خرقی دزیارت دچار چوبـــی د دبنسټ تیږه دکند هار والی کیښودله.

**دلیندی ۸:**

د چغچران او دلولاش دعلاقه داری تر منځ دیوسلو پنځوس کیلو مترو په اوږدوالـی دیو سلو پنځوس کیلو مترو په اوږدوالـی دولایاتو تر منځ دترافیکو دتګ دپاره زمینه برابره شویدی ۰

**دلیندی ۹:**

تر اوسه پوری دوه سوه اتیا ټراکټورونه په ښو شرایطو دبلـخ دولایت کروند گروته ورکړی شویدی. دغه ټراکټورونه په نغـدو پیسو او څینی په پور کروند گروته‌ورکړی شویدی ۰

**دلیندی ۱۰:**

دتلی له لسمی نیټی څخه تراوسه پـوری دمزار شریف دکیمیاوی سری په فابریکه کی څلور زره پنځه ټنه‌یوریا سره تولیدشویده.

**دلیندی ۱۰:**

دافغانستان بانك له خوا داسعارو دراکړی ورکړی کړکی په اسلام کلا کښی‌پرانستله شوه. دغه کړکی هغو خلکوته دآسانتیاووړ برابرولو لپاره جوړ شوی چه له بهره هیوادته راځی او یا بهر ته‌ځی ۰

**دلیندی ۱۱:**

دهلمند ولایت په کروند گرو باندی پــــه تیرو پنځلسو میاشتو کی دڅه دپا سه یو سلواته پنځوسو ملیونو افغا نیو برا بـــــر کیمیاوی سره ویشل شویده ۰دکرنی دماشینی کولو دپاره ۲۲ ټراکټورونه دملحقاتو سره‌او همدا رنگه‌څلورو اتړ‌پمپونه دمساعد وشرایطو لاندی‌کروندگروته ورکړی‌شوی چه‌دهغوبیه‌څه

دپاسه لس مليونه څلور سوه زره افغانۍ کيږي .

**دلينډۍ ۱۱:**

دهوا حالاتو دڅيړنې دپاره څلور اقليمي دستګاوې دجوزجان په ولايت کښې په کار اچول شويدي.

**دلينډۍ۱۲:**

دسعودي عربستان حکومت دوه سوه پنځو س زره ډالره دپوهنې له وزارت سره ورپيا مرسته کړيده .ددغو پيسو چك په کابل کې دسعودي عربستان دلوی سفارت لخوا دباندنيو چارو د وزارت له لارې دپوهنې وزارت ته سپارل شوی دی .

**دلينډۍ ۱۳ :**

داطلا عاتو او کلتور دوزارت دنوی ودانۍ دبنسټ ډبره داطلا عاتو او کلتور او دفوايد عامې دوزير انوله خواد دولتي مطبعې په څنګ کې کيښودل شوه .

**دلينډۍ۱۳:**

دسږ کال له پيل څخه تراوسه پورې د کندهار دميوې په فابريکه کښې څه دپاسه او يازره قطې اوبوتلو نه ډول ډول جيلې مربا او ترشي توليد شويدي .

**دلينډۍ۱۳:**

زمونږ دپښتو نستان او بلوچستان نيورونو حاجيانو لومړی کاروان په شپږو سرورويسونو کې دسرحد ونو دچارو له وزارت څخه دحج دفريضې په ځای کولو په نيت دکعبې شريف په لورو خوځيده .

دحج دفريضې داداکو لودپاره دپښتونستان او بلوچستانې ورونو څخه ۲۶۱ تنه سږ کال له افغانستان څخه بيت الله شريف ته ځي چه پنځوس تنه يې دهوا او دوه سوه يولس تنه به ئې دځمکې له لارې ولاړ شي .

**دلينډۍ ۱۵:**

څه د پا سه دخلو رو د يرش مليونو افغانيو برابر سره او غنم دسږ کال له سره تراوسه پورې دپروان ولايت کرونـــد ګروته ورکړ شوی .

**دلينډۍ ۱۵:**

د ښار جوړولو او کور جوړ ولـو دلوی رياست په ځای دښار جوړولو آمريت دفوايد عامې وزارت په چوکاټ کې دد وهم واحد په توګه منځ ته راغلی دی .

دغه آمريت وظيفه دمرکز ولاياتو اود هيواد دولسواليو دښار پلانو طرحه کول جـوړول تفصيلي پـلانو جوړول داستو ګنې دطرحې د چارو مطالعه دسا ختماني مواد وڅيړنه اوکتنه اودښار جوړولو له نـظره دهغو اقتـصادي اوتوليز ښيګڼو څيړل دي.

**دلينډۍ ۱۷:**

په کندهار کې دوه مليونه او دوه سوه زره ټنه فلورايد کشف شويدي.

**دلينډۍ ۱۹:**

دبشر دحقوقو جهاني ورځ په هيواد کـــې دټولنو په ترځ کې ولمانځل شوه.

دملي سرود له غږولوته وروسته ددو لـت درئيس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد پيغام چه دد ی بين المللي ورځې په منا سبت صـادر شوی ؤ په هغې غونډه کې چه دحقوقو اوسياسي علومو دپوهنځي لخواد کابل دپو هنتون پـه اديتوريم کې شوی وه داطلاعاتو او کلتو رد

وزیر پوهاند ډاکتر نوین لخوا ولو ستلشو.

**دلیندی ۱۹:**

دکندز دامنیه قو ماندانی دسر حد ی پو لیسو دتعلیمی ټولنی ودانی دهغه ځای والی دجمهوریت په کارته کښی پرانستله .

**دلیندی ۲۰:**

دکجکی دبند دپرچاوی ددروازو دجوړو لود اسماری لګښتو نو مربوط تمو یل څوارلس ملیونو ډالرود پورموافقه داسیا دپرا ختیادبانك دمدیره هیات له خوا تصو یب شوه.

**دلیندی ۲٤:**

دوردګو دولایت دجلریز پول ددری سوه څلویښت زره افغانیو په لګښت د فواید عامی دوزارت داصلاحاتو ددوهم یو نټ له خوا بشپړ شوی دی .

دفواید عامی وزیر ښاغلی غوث الدین فا یق وویل دغه پول دافغانستان په مرکزی لو یه لاره کی چه په راتلونکی وخت کی دکابل اوهرات ترمنځ په نظر کښی ده جوړ شوی دی اودحاجیګ کان او بامیان هم ددغه پله په لاره کی پراته دی.

**دلیندی ۲٦:**

دکوکچی دسیند دپاسه دیوه پله دبنسټ تیږه دبدخشان والی کیښود ه .

**دلیندی ۲۷:**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دجمهو ر ی ار دو د څوانو منصبد رالـو ډیپلو مو نه وویشل .

**دلیندی ۲۹:**

دبګرامیو دنسا جی دفابریکی دپرا ختیـــا دپروژی دکار پیل شو. دپو هنی وزیر پوهاند عبدالقیوم ددغی پروژی دمربوطی ودانی دبنسټ تیږه دفابریکی په انګړ کښی کیښو ده.

**دلیندی ۲۹:**

دپوهنی دوزارت دوهم معین ښاغلی محمدنسیم دوردګو په ولایت کښی دلوړ نیو او کلیوالو ښوونځیو نوی ودانی پرانستلی دغه ودا نـی دملی بـا نـــك اودیونسف داداری دپولی او د وردګو ولایت دبشری قواو په مرسته دپوهنی دوزارت دساختمان دریاست دنمونه یی پروژی په چوکاټ کښی جوړی شوی دی.

**دلیندی ۳۰ :**

دهلمند دپنبی او نباتی غوړیو مو سسی په دریو میاشتو کی اتلس زره اواوه سوه ټنه پومبه پیرودلی ده . دتلی دمیاشتی له لومړی نیټی نه چه دپنبی کمپاین پیل شوی تراوسه پوری ددولت له کریدت نه څه دپاسه دوه سوه او اویا ملیونه افغانی دپنبی په کروند ګرو ویشل شویدی .

**دلیندی ۳۰ :**

په تیرو دوه نیمو میاشتو کی دکندز بغلان اوتخار دولایاتو کروند ګروته دپومبی دبیی په عوض کی ددولت له کریدت څخه څه دپاسه اته سوه دوه ویشت ملیونه افغانی ور کړی شویدی .

**دمرغومی لومړی :**

دشیرپور جامع جومات چه دسږکال دزمری دمیاشتی دزلزلی په پیښه کی یی درځ کـړی

اودچت دلویدو خطر یی ۆددولـت درئیس‌او صدراعظم ښاغلی محمدداؤد په لاربنوونه ترمیم شو. ددغه جومات دترمیم کـــارچه دافغانـی ودانولو دستګاه ددولت دبودجې نه دخه دپاسه یوملیون افغانیوپه لګښت بشپړ شو .

**دمرغومی ۳:**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دمرغومی دمیاشتی ددریمی نیټې دسهار په‌نهه نیموبجو دنیکمرغه لوی اختر لمونځ دجمهوری ریاست دارګ په جومات کی دقاری محمدعمر په امامت اداکړ .

زمونږ ملی مشر دلمانځه له اداکولووروسته دجمهوری نظام په رڼاکی دافغان دمسلمان او نجیب ټول ملت دهوساینی اوآرامـــی او د افغانستان دترقی اودعالم اسلام دپر مختګ اولوړتیا دپاره دعاوکړه .

**دمرغومی ۷ :**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دنیکمرغه لوی اختر درارسیدوپه احترام دمرکز اوولایاتو دیوشمیر بندیانو دبندیاتی مـوده بښلی ده.

**مرغومی ۷:**

دغوری دسمنټو دموسسی دسږکال په نهو میاشتو کښی داته شپیته زره نهه سوه‌پنځه اتیاټنو سمنټودپلورنی له لاری څه‌دپاسه۹۰ ملیونه څلور نوی‌زره افغانی‌لاس ته‌راغلی‌ده.

**دمرغومی ۷ :**

په هیوادکې دکرنی دزیاتی پراختیا په باب دانقلابی دولت دتګ لاری په اساس دروان‌کال په نهه نیمو میاشتو کی په‌کندزکی دکرنی دبراختیا بانك نمایندګی څه دپاسه دپنـځه دیرش ملیونو افغانیوبرارکیمیاوی سره دکرلو اصلاح شوی غنم اودکرنی ټراکټورونه دکندز تخار اوبدخشان دولایاتو کروندګرو ته دپورپه ډول مرسته کړی ده .

**دمرغومی ۸ :**

دمزارشریف دکیمیاوی سری دفابریکـــی لومړنی لین تولیدات داټکل شوی پلان نـــه یوولس اونۍ مخکښې بشپړ شوی‌دی.

**د مرغـومی ۹ :**

دکونړ دلوی ولسوالی مربوط دمروری نوی عـلاقداری پرانستل شوه او دهغی مامورینو په کار پیل وکړ .

دولت ددی علاقه داری جوړیدل چه‌دولس زره تنه نفوس لری ددغه ځای اوسیدو نکو د هوساینی او دمشکلاتو دمنځه وړلود پا ره منظور کړیدی .

**دمرغومی ۱۱ :**

دښځی دبین المللی کال را رسیـــدل د دولت درئیس او صدرا عظم ښاغلی محمدداؤد په پیغام داطلاعاتو او کلتور دوزارت لخوا په کابل ننداری کښی په یوه ټولنـه کښـــی ونمانځل شو .

دغه راز دښځی دبین المللی‌کال له‌امله‌چه دبرابری ـانکشاف او سولی ترشعار لاندی د لومړی کال ۱۹۷۵ عیسوی دملګرو ملتـــو د دموسسی دغړو هیوادو نو له‌خوا نمانځل‌کیږی. داطلا عاتو او کلتور وزارت لخوا په افغانستان کی د ښځو دنهضت او داجتماعی بیلو بیلو خدمتونو په‌بر خه‌کښی دهیوادد ښځو دفعالیت څرګندوی دعکاسی نندارتون په کابل ننداری

کښې پرانستل شو .

**دمرغومی ۱۱ :**

دپستی دځنګلو نو دپروژی دودانی دبنسټ تیږه دکلای نو په تحقیقاتی فارم کښې د بادغیس والی کیښوده .

**دمر غومی ۱۳ :**

د دولت رئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد دهیواد دولایاتو او لو یوو لسوالیو د محکمو رئیسان دجمهوری ریاست په ماڼی کی ومنل.

د دولت ښاغلی رئیس او صدرا عظم دقاضیانو سره دخبرو په ترځ کی وویل : «هر رژیم او سیستم چه په یوه هیواد کی واکمن وی دهغه بنسټ او اساس اجتماعی عدالت جوړوی .»

**دمر غومی ۱۳ :**

د ۳۷ ملیونو افغانیو برابر دکندهار اوروز ګان کروند ګروته سره غنم تراکتورونه او واړه پمپونه ورکړل شویدی .

**دمرغومی ۱۵ :**

ددولت درئیس او صدرا عظم ښاغلی محمد داؤد د پیغام په لوستلو سره د هیواد بیاوړی او متصوف عالم ملی شخصیت بایزید روښان دمړینی د څلور سومی کالیزی بین المللی سیمینار دکابل پو هنتون په ادیتوریم کی پرانیستل شو .

**دمرغومی ۱۵:**

دکندهار دسیلو دمامور ینو دپاره داستوګنی دودانیو دبنسټ ډبره دهغه ځای والی کیښوده.

**دمرغومی ۱٦ :**

دزراعتی پرو ګرامونو دپرا ختیا په باب د جمهوری دولت دکړنلاری په اساس د سږ کال په لومړیو نهو میاشتوکی دهرات او وبادغیس دولایاتو کروند ګروته یوویشت ملیونه اودری سوه زره افغانۍ کریدت ورکړ شویدی.

**دمرغومی ۱٦ :**

دسږ کال له پیل کیدونه تراوسه پوری دهیواد دمرکز اوولایاتو په تعلیمی مؤسسو کی څلور زره اته څلویښت ښځی دښوونکو په حیث په کار ګمارل شویدی .

**دمرغومی ۱۷ :**

دښځی دبین المللی کال په مناسبت د کندهار دمنورو میرمنو له خواد زرغونی اناد لیسی په سالون کی یوه غونډه شوی وه .

**دمرغومی ۱۷ :**

دهیواد په کروند ګرو باندی دلړم دمیاشتی تر پایه پوری دخه دپاسه پنځه سوه اواتیا ملیونه افغا نیو په بیه کیمیاوی سره ویشل شویده .

**دمرغومی ۱۸ :**

دافغا نستان دتجارت او صنایعو داتاقونو قانون په ټولسو مادوکی درسمی جریدی په یو ویشتمه ګڼه کی خپور او نافذشو.

**دمرغومی ۲۰ :**

ددولت رئیس او صدراعظم اودافغانی سره میاشتی دټولنی دحامی ښاغلی محمد داؤد په

لاربښوونه افغاني سري میاشتی دپښتو نستان په صوات کی د وروستی زلزلی له مصیبت ځپلو سره پنځلس زره ډالر مرسته کړیده .

**دمرغومی ۲۰ :**

دښځو دبین المللی کال په مناسبت دهلمند دولایت دمرکز لښکرگاه دښار په کلتـوری مرکزکی یوه غونډه وشوه .

**دمرغومی ۲۰ :**

پنځلس زره اته‌سوه ځلرو یښت ټنه پومبه پەدری وروستیو میاشتو کی دبلخ دجن‌اوپرس اودتیل ایستلو مؤسسی پیرودلی ده.

څه دپاسه دوه سوه دری دیرش میلو نه افغانۍ ددولت دکریدت شخه‌دپومبی دبیی په مقابل کی دبلـخ جوزجان ،فاریاب اودسمنگان دولایاتو کروند گروته په همدی موده کـی ورکړ شویده .

**د مرغومی ۲۱:**

دیر ښنا دشل کیلوواټه جنریتر په درولو سره دنیمروز دولایت روغتون روښانه کـړی شو .

**د مرغومی ۲۲ :**

دولایتونو دکرنی درواجولو دمدیر انـــو ورکشاپ چه دلیندی دمیاشتی په څلور مـــه نیټه په کابل کښی جوړ شوی ؤپای تـــه ورسید .

**د مرغومی ۲۲ :**

دپیر روښان بین‌المللی سیمینارچه دمرغومی دمیاشتی په ۱۵ نیټه دکابل پوهنتون پـــه اديتوريم كښی پیل شوی وو پای ته ورسید.

**دمرغومی ۲۳ :**

دبادغیس دولایت ښځو دښځی دبین المللی کال له امله دکلای نودنجونو دښوونځی پـه ودانۍ کی یوه غونډه کړی وه.

**دمرغومی ۲٤ :**

ددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد داؤد دپیغام په لوستلو سره دگرځندوی کال پیل شوه ۱۹۷۵ کال افغا نستان او دآسیاد جنوب پەاتو نورو هیواد ونو کښی دگرځندوی دکال په توگه ټاکل شویدی .

**دمرغو می ۲٤:**

د تغذی دریم کورس چه دروغتیا داساسی مرکزو نودډاکترانو دپاره دعامی روغتیا پـــه مؤسسه کښی پرانستل شوی وو پای تـــه ورسید .

**دمرغومی ۲٤ :**

اتلس ملیونه ډالره دهیواد دتجارتی مالونو دواردات او صادراتو په بیلانس کښی دسږ کال په نهومیاشتو کښی زیاتوالی راغلی دی.

دسږ کال په نهو میاشتو کښی خارج ته‌د هیواد دتجارتی مالونو صادرات یو سلودو پنځوس ملیونو ډالرو ته رسیدلی دی پداسی حال کښی چه په همدغه موده کښی دافغانستان د ضرورت وړ مالونو واردات یو سلو ځلور دیرش ملیونه ډالرو ته رسیدلی دی .

**دمرغومی ۲۵ :**

ددولت دښاغلی‌رئیس‌اوصدراعظم په‌پیغام‌دآسیا، جنوب دتوریزم کال پیل شو .

غونډه دملی سرود په غږولو سره پیل‌شوه او وروسته ددولت‌دښاغلی رئیس‌او صدراعظم

پیغام داطلاعاتو او کلتور دوزیر پوهاند داکتر نوین لخوا ولوستل شو ٠

**دمرغومی ۲۵ :**

د ښځی بین المللی کال دکندز په ښار کی په یوه غونډه کی ونمانځل شو ٠

**دمرغومی ۲۷ :**

دفراه دولایت دشین ډنډ دولسوالی دسور ویالی پروژه ددولت له بودجی څخه ددری لکه او اوه یشت زره افغانیو په لګښت بشپړشوی ده ٠

د سورد ویالی پروژه دوه سیفونه لری چه هریو ستیفون یی یوسلو دوه دیریش متره اوږد والی لری او پنځه اویا سانتی متره قطـــر لری ٠

**دمرغومی ۲۷ :**

دمصر دعربی جمهوریت دلوی سفار ت د علمی او فرهنګی همکار پوپه لړکی نوموړی سفارت پنځه سوه ټوکه عربی دری او پښتو کتابو نه دکابل پوهنتون دادبیاتو او بشری علومود پوهنځی اختصاصی کتابتون تــــه اهدا کړیدی ٠ دغه راز دالمان داتحــــادی جمهوریت لوی سفارت اوه سوه ټوکه المانی کتابونه او په کابل کښی دهند لوی سفارت ٦٨ ټوکه دری او انګلیسی کتابونه نوموړی کتابتون ته اهدا کړیدی چه نوموړی کتابونه په تشکر سره منل شویدی ٠

**دمرغومی ۲۷ :**

دتالقان دښار دښښا ك داو بود پروژ ی لومړی برخه دتخار والی پرانسته ٠

**دمرغومی ۲۸ :**

داتریش سویس سویدن انګلستان او دفنلند دسرو صلیبو نوټو لنود لیګ له لاری دافغانی سری میاشتی دټولنی سره مرسته کړیده ٠

**دسلواغی ٤ :**

دتجارت دوزارت په پیشنهاد دوزیرانود عالی مجلس په تصویب او ددولت دښاغلــی رئیس او صدراعظم په منظوری دهیواد دخلکو داکثریت دګټی په مقصد دخاورو دتیلو حق الانحصار دانحصا راتو کمیشن او ګمرکـــــی محصول وبښل شوه‌دحق الانحصار کمیشـــن اودګمرکی دمحصو ل په‌بخشش سره دخاورو تیلو په‌هر ه‌کیلو کښی نژدی دری افغا نـــۍ ټیټوالی راغی ٠

**دسلواغی ٤ :**

د سلواغی دمیاشتی دو همه نیټه دمحرم ــ الحرام لسمه ورځ چه د حضرت امام حسین (رض) دشهادت دورځی سره برابره وه‌داسلام ددغی تاریخی پیښی دیادونی مراسم په ټول هیواد کښی ونمانځل شول ٠

**دسلواغی ٥ :**

دکابل دعالی دارا لمعلمین په خدمت کی‌د داخلو ښــوونکو دپاره پنځلسم ټولګی دپو هنی دوزارت لومړی‌معین پوهاند ډاکتر محمدصدیق پرانست ٠

**د سلواغی ٨ :**

ددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی‌محمدداؤد دخوا خوږی او همدردی مراتب دهغو شپږ و تنو پاتی کسانو ته دبد خشان دوالی په‌واسطه ابــلاغ شول چی دشغنان په علاقه داری کی دواوری دښوئید وپه اثر مړه شوی‌دی ٠

**د سلواغی ۸ :**

دجمهوری دولت دتنگ لاری په اساس د ارغنداب او هلمند دناوی په پروژه کــی یو زرو شپږ سوه اته جریبه ځمکه بی ځمکوخلکو باندی ویشل شویده ۰

دغه ځمکی دوهمه درجه دی او په یوسلو څلورد یرش کورنیو ویشل شویدی ۰ دغــه ځمکی داوبو لګولو ساختمان‌لری اود ګرمیسر په ولسوالی کی پرتی دی ۰

**د سلواغی ۸ :**

سږ کال دلوګر په ولایت کی دکلـــیو د پراختیا او خلکو په ګډه همکاری دشلو کیلو متروپه اوږدوالی دوه فرعی سړکونه دری لوی اویولس کوچنی پلونه جوړ شویدی ۰

**دسلواغی ۹ :**

دښځی دبین المللی کال دنمانځلو په‌مقصد داطلاعاتو او کلتور دمدیریت تر نظر لاند ی په کندهار کی دښځو دانسجام جرګه‌ګی جوړه شوه ۰

**دسلواغی ۱۱ :**

ددولت درئیس او صدراعظم ښا غلی‌محمـد داؤد دخواخوږی او همدردی پیغام دهلمند په ولایت کی دوروستیوورښتونو مصیبت‌ځپلوته مستوفی او دولایت وکیل ورساوه.

په هلمند کی وروستی ورښتونه دلښکرګاه دښار لګان په‌سیمه کی‌دنهو کورونو دنړیدود پنځوسو کورونو دزیانمن کیــدو او پــه څــاه انجیرکی دیو ګدام دنړیدو سبب شویدی ۰

**دسلواغی ۱۱ :**

دبګرامیو دنساجی په فابریکه کی ددری وخته کار دپیل کیدو له وخته په دغه فابریکه کــی شپږ سوه تنـو کــارګروته کــار پیدا شویدی ۰

له‌څو مودی څخه را پدیخوا دغه فابریکـــه ۲٤ ساعته کارکوی په داسی حال کی چه‌دمخه په دغه فابریکه کی دوه وخته یولس یولس ساعته کار کیده ۰

**دسلواغی ۱۲ :**

ددولت درئیس او صدراعظم ښاغلی محمد داؤد دهدایت په‌اساس دلښکر ګاه دښار اود هلمند ولایت هغو پنځه ویشتو کورنیو ته د افغانی سری میاشتی‌دټولنی مرستی ورووپشل شوی چه کورونه یی تیره اونی دورښتو نوپه اثر ړنګ یا زیانمن شویدی ۰ همدغه راز د دغی ټولنی مرسته دهغو خلکو پاتی کسانو ته ورکړی شوه چه په دغی پیښی کی مړه شوی دی ۰

**دسلواغی ١٤ :**

دکوز کونړ دولسوالی دکلاتـک دسیمـی د ښاك داوبو شبکه دننګرهار والی پرانستله۰

دغه شبکه چه دملګرو ملتو په مرسته د روغتیا وزارت‌پشپړه‌کړی څلور وزروا وسیدو-نکوته دښاك صحی او په ورکوی ۰

**دسلواغی ١٤ :**

دبغلان دولایت داجمیر په ویاله کی‌دنویو ساختما نونوپه بشپړیدو سره دڅه دپاســـه اتیازره جریبه ځمکی دخړو بیدوښه زمینـــه برابره شویده داجمیر دو یـــا لی دنو یــو ساختما نونوپه ترمیم کی دکرنی مدیریت د غوری دسمنټو دبوری شرکت اود کرکردوبرو

سکرو مؤسسو او دوغه ځای خلکو برخــــه اخیستې وه .

**د سلواغې ۱۵ :**

دسږ کال په لسو میاشتو کې د **گلبهار او** جبل‌السراج په نساجي فابریکو کې څه **دپاسه اوه** څلویښت ملیونه څلورسوه متره ټوکران تولید شویدي .

**دسلواغې ۱٦ :**

د افغانستان پوهنه د خو کالو **راهیسې** د دوی اودهغوی دشهرت طلبی دتمایلا تــو دلاس اله شوه او متاسفانه دهیواد دنوروبرخو دپراختیا سره متوازنه پراختیا په نظر کې‌ونه نیول شوه او د متوازنې پوهنې اصل دیوی داسې پوهنې شکل او ماهیت غوره کړ چــــه توازن هدف او صحیح پروگرام یې نه درلود. ځکه ددې ایجاب کیده چه په بیړه سره په‌دغه باره کې دعصر دایجاباتو سره سم او دنورو هیواد ودتجربو څخه پــه استفــــاده او د افغا نستان دنوی نظام دهدفونو سره موافـق گټور اقدامات وشي او دهغې معقول‌اوعملي امکان ولټول شي اوبنسټیې کیښودل شي.

ددغو ایجاباتو د درك له مخې دڅه مودې راهیسې دانقلاب دمشر ښاغلي محمد داؤد د لاربښوونې سره‌سم دتکړه کسانو په گډون یو کمیسیون مؤظف شوچه په موضوع غــور او څیړنه وکړي چه په نتیجه کې یې دافغانستان په پوهنه کې‌یو مترقی‌او بنیادی ریفورم ترتیب او دغور دپاره یې دوزیرانو عالي مجلس او مرکزي کمیټې ته وسپاره .

دوزیرانو عالي مجلس دهغه مطالعه تائید او تصویب کړاود پوهنې وزارت ته لاربښوونه وشوه چه‌د منظور شویو هدفونو او پالیسی سره‌سم لومړی شپږ ټولگیز لومړنی ښوونځی په تدریجی توگه دولایاتو په ټولو مرکزونواو وروسته په ټول هیوادکی اته ټولگیزولومړنیو ښوونځیوته لوړکړی .

**دسلواغې ۱۷:**

دجبل السراج دسمنټو دفابریکې دسږ کال دلسو میاشتو په تولید اتو کې دتیر کال د همدغې مودې په انډول اووه زره ټنه سمنټ زیات شویدي .

**دسلواغې ۱۷ :**

داسعد آباد او جـلال‌آبا د دسړك په‌اوږدوکی دڅه پاسه یو ملیون اواته سوه زره افغانیوپه لگښت یوشمیر پلونه او کوچني **پلونه دکار** دقواؤ دلومړې یونټ‌له خوا جوړ شویدي.

ددغه سړك په اوږدوکې دترافیکو په تگ راتگ کې داسانتیاو دبرابر ولو **په مقصـــــد** څلور پلونه او یودیرش کوچني پلونه **نوي** جوړ شویدي .

**دسلوا غې ۱۹ :**

د سږکال په لسو میاشتو کې دننگر هاراو لغمان دولایاتو په‌کروند گرو باندې دڅه دپاسه اته شپیته ملیونه نهه سوه پنځه ویشت‌زره اته سوه افغانیو سره اود کرنې ماشین آلات ویشل شویدي .

دزراعتي پرو گرامونو دپرا**مختیا** او د بزگرو دزیاتي استفادې په باب دانقلابي دولت دتگ لارې‌په پیروی دڅه دپاسه اته شپیتــــه ملیونه اته ویشت‌زره یوسلو څلویښتوافغانیو

په ارزښت یوریااودای امونیم‌فاسفیت کیمیاوی سره دکرنی دپر مختیا دبانك دنمایندگی لـه لاری دکرنی اواوبو لګولو د وزارت ترویج دمامور ینو او دافغان کیمیاوی سری دشرکت په همکاری ددغو ولایاتو په کروند ګروباندی په پور ویشل شویده ۰دغه راز ددغو ولایاتو له کروند ګرو سره دتراکتور اوواترپمپ‌په شان ماشینی پورونه او تولیدی کریدتونه‌اته سوه اوه نوی زره شپږ سوه شپیتو افغانیوته رسیږی ۰

**دسلواغی ۲۰ :**

د کابل ښار دښاری پـلانواو دنوروتفصیلی پلانو دیوکولو دپاره دفواید عامی دوزارت دښاری پـلان جوړو لومدیریت دکابل‌ښاروالی سره یوځای شو ۰

**دسلواغی ۲۰:**

دځه دپاسه یو ملیون نهه سوه زره افغانی دغوری دبر ښنا دمؤسسی دسږ کال دلومړیو شپږو میاشتو په عواید وکی دتیر کال دهمدی مودی په نسبت زیاتی شویدی ۰

**د سلواغی ۲۱ :**

دبغلان دقند دفابریکی دځلور دیرشم کمپاین شخه اته زره اته سوه یواتیاټنه بوره لاس ته راغلی ده ۰

دسږ کال په تولیداتو کی دتیر کال په نسبت یو زرو ځلور سوه پنځه ځلویشت ټنه بوره زیاته شویده چه دغه کار دکروند ګروته په ګته دچغند رودبیی دزیاتوالی ددولت په‌مرسته دکیمیاوی سری دویشلو اودجوی شرايطو نتیجه ده ۰

**دسلواغی ۲۲ :**

ځه دپاسه یو سل او ځلور شپیتـــه زره افغانی قره قلی پوستکی دلندن په لیـلام‌کی په ځه د پاسه نهه‌سوه پنځه نوی زره سترـ لنګ پونډو پلورل شویدی ۰دسږ کال پـــه ځلورم لیلام کی دپوستکوعمومی منځنی‌بیه شپږ اعشار په صفر پنځه ستر لنګ پونډه وه ۰

**دسلواغی ۲۲ :**

په کابل کی دامریکا لوی سفارت دعدلیی دوزارت دقضا داداری لوی آمریت کتابتو ن ته ۱۸۳ ټوکه کتابونه ورکړل.

**دسلواغی ۲۳ :**

دزراعتی محصولاتو دلوړ یدو په مقصد د جمهوری دولت دتګ لاری په پیروی دځه د پاسه شپاړ سو ملیونو اوه سوه زروافغانیو کیمیاوی سره اصلاح شوی غنم او دکرنــی ماشین آلات دبغلان او سمنګانو دولایاتو په کروند ګرو په تیرولسو میاشتو کی دپور په توګه ویشل شویدی ۰

دتلی ،لړم اولیندی‌په میاشتوکی دځوارلسو ملیونو دری سوه اوه زره افغانیو برا بره کیمیاوی سره اودکرنی اصلاح شوی غنم اودغه راز د سږکال په لسو میاشتو کی ددوه‌ملیونه ځلور سوه اوه پنځوس زره افغانیو برابــر دکرنی عصری ماشین آلات‌لکه ټراکتور اوواټر پمپونه او دمالداری او باغوانی تولـــیدای پورونه دبغـلان او سمنګانو دولایاتو کروند ګروته دمرستی په توګه ورکړی شویدی ۰

**دسلواغی ۲۳ :**

دهوا پیژندنی بین‌المللی مؤسسی یوکمپیوتر دهوا دحالاتو پـه تحـلیل کـی داستفادی په مقصد دملکی هوایی ریاست دهوا پیژندنی انستیتوت ته دمرستی په توگه ورکړیدی ۰

**دسلواغی ۲٤ :**

دجمهوری دولت‌دکرنلاری سره سم دسږکال په نهو میاشتو کی‌دکرنی او اوبکولودوزارت دانکشافی پروگرام لاندی کروندگرومالداراواو یو شمیر مؤسسو ته څه دپاسه شپږ سوه او یا ملیونه افغانی مساعد پور ورکړ شویدی ۰ دماشینی کولو په غرض دوه سوه‌دوه‌څلویښت بشپړ ټر اکټورونه ددوه سوه شپږوواټر پمپونو سره داسانو شرایطو لاندی هم پـه همدی وخت کی دولایاتو کروند گروته ورکړ شویدی چه ټوله بیه یی څه‌دپاسه اتیا ملیونه افغانی کیږی.

دغه راز دکرنی دتولیداتو دسطحی دلـوړ ـ یدو په غرض څه دپاسه ددری سوه شپـــږ ملیونو افغا نیو کیمیاوی سره او دکرلواصلاح شوی غنم دهیوادکروند گروته دمساعدپورپه ډول ورکړ شویدی ۰

دباغونو دپراختیا په غرض څه دپاسه دری سوه ملیونه نهه سوه زره افغانی د هیواد د ولایاتو دباغونـو خاوندانوته دپـور په ډول ورکړ شویدی ۰

څه دپاسه یو سل اته شپیته ملیونه‌افغانی دخپنو مؤسسو لکه داهوبو ټونو جرمگری د شاتود میچیود هرات دپومبی اگرو بزنس اود تولید څپنو نورو مؤسسو ته دسږ کال پـــه نهو میاشتو کی دهغوی دفعالیتونو دزیاتوالی په‌غرض دپور په ډول مرسته شویده ۰

همدا رنگه څه دپاسه پنځه سوه زره افغانی دشاتو انفرادی مچیو دخاوندانو سره دپورپه ډول مرسته شویده ۰دغه راز څه دپاسه دوه نوی ملیونه افغانـی کو پرا تیفـو نـوــ ته‌د بغـلان دقند شرکت اودپومبی شرکتو نو ته دهغو دمعامله‌لرونکو کروند گروته‌کریدت ورکړ شویدی ۰

کروند گرود سری دبرابرو لوپه غرض د ژرند وشو لو پاکولو دما شینو نو اوارهټډ چالانو لولپاره څه دپاسه نهه‌سوه زره افغانی دپور په ډول معامله شویده ۰

**دسلواغی ۲۷ :**

دجلال آباد دبنار په سب ستیشن کی‌په یوساعت کی دڅلور زره کیلو ولټه امپیر پـه قوه دبریښنا یوتر انسفارمر پکار واچول شو۰ چه‌دمخه دجـلال آباد دبنار دسب ستیشـــن بریښنا ددوتر انسفار مرونو له لاری چه هر یویی یوزرو شپږ سوه کیلو واټه امپیره قوه درلوده اوټوله‌دری زره‌اودوه سوه‌کیلوولټه کیده ویشل کیده ۰

**دسلواغی ۲۹ :**

دخرخی دپله دوړیو او بدلو فابریکه له‌دری کاله څنډېنه وروسته بیا په کار واچول شوه دخرخی دپله دوړیو اوبدلوفابریکه‌به وروسته له‌دی‌دکانو اوصنا یعو دوزارت تر اثرلاندی فعالیت ته‌به دوام ورکړی.

دمغه پـلان له مخی چه په نظر کی نیول شوی په راتلو نکی وخت کی به‌دخرخی‌دپله

دوړیو اوبدلو دفابریکی تولیدات په کال کی دیو ملیون مترو ټوکراو سلو زرو کمپلو په ظرفیت زیات شی .

**دکب لومړی :**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دپنجشنبی د ورځی تر غر می د مخه په لسو بجواو پنځه څلویښتو دقیقو د جمهوری اردو مرکزی روغتون وکوت .

داردو دمرکزی روغتون څخه ددولت ښاغلی رئیس او صدرا عظم کتنه چه په سیمه کی یوډیر سمبال روغتون دی څه ناڅه دوه ساعته روانه او په هره برخه کی دپروژی دامـــراو داخلی اوخارجی کارکو ونکو له خوا توضیحات وړاندی کیدل .

ښاغلی محمد داؤد دروغتون دجوړولو دکارد پرمختگ له امله خوښی څرگنده کړه .

**دکب ۳ :**

ددولت د ښاغلی رئیس او صدرا عـــظم خاص نماینده ښاغلی محمد نعیم دیوه هیات په مشری دنیپال دباچا بیراند را بیربیکرام شاه دیوا دتاج په سرولو په مراسمو کی دبرخی اخیستو دپاره چه ټاکل شویده دکب په پنځمه نیټه په کتمندو کی په ځای شی تر غرمی د مخه دغه هیواد ته لاړ .

**دکب ۵ :**

په منځنی ختیځ کی دنباتا تو دارئی خواصو دساتنی اوڅیړنی دبورد دریمه غونډه په انترکا نتیننتال هوټل کی دکرنی او اوبو لگولو دوزارت دمعین ښاغلی فضل الرحیم (رحیم) له خوا پرانستل شوه .

**دکب ۵ :**

دباندنیو چارو دوزارت داطلاعاتو مدیریت وویل چه په کابل کی دامریکا دلوی سفارت شارژدافیر ددغه وزارت دسیاسی معین ښاغلی وحید عبدالله سره دکب دځلورمی نیټی پــه کتنه کی پاکستان ته دامریکا دوسلو دصادرولو دبند یزدلری کولو دنژدی اعـلام په بـــا ب اطلاعیه ده ته وسپارله .

دغه اطلاعیه دافغا نستان دجمهوری دولت ترکلك غور لا ندی ده او دهغی په باب به دافغانستان نظروروسته داعلامیی په ترځ کی نشر شی.

**دکب ۵ :**

د څه دپاسه نولس ملیونو افغانیو پـــــه لگښت دمیدان ښار په نوی ښار کی دوردگو دولایت ددو ایروودانی بشپړ شویده

په جوړوشویو ودانیو کی دولایت مستوفیت دمحکمی دریاست دعامی روغتیا دآمریت فواید عامی کرنی پوهنی دخوراکی شیانواومخابراتو دایری او نوری څانگی شامل دی .

**دکب ۶:**

دباندنیو چارو وزارت دغه اعلامیه نشرته سپارلی ده : پاکستان ته دوسلو دصادرولو د بندیز دلری کولو په باب امریکا دمتحـد و ایالاتو دحکومت تصمیم دافغا نستان دحکومت او خلکو دژوری اندیښنی او تشویش سبب شویدی داتصمیم په سیمه کـی دسولی او آرامی دتشویق دادعا سره پوره توپیر لری او دافغا نستان حکومت نشی کولی داومنـی چه پاکستان ته دوسلی دلیږلو بیا پیل کیـدل

بەدآسیا یدی سیمه کی دقواو دانډول‌دمینځه تللو او تسلیحاتی مسابقوسبب نشی.

دافغا نستان حکومت په نزد پاکستان ته دوسلی‌د صادرولو دبندیز لری کول په تیره بیادغه وخت کی چه دپاکستان نظامی پوځـو نود پښتنو او بلوڅو خلکو په مقابل کی په عملی ډول په‌ډیر بی‌رحمه اوپه جابرانه اقدام لاس پوری کړیدی .

دافغا نستان دخلکو او دپښتنو اوبلوڅو دزیاتی خواشینی سبب شوی دی چه دهغه عواقب به دنړی دغه سیمه‌کی دسولی اوآرامی دټینګښت دپاره په هیڅ ډول ګټور نه وی.

همدا رنګه دحیر انتیا ځای دی چه دامریکا دمتحدو ایالاتـو غوندی هیوادچه‌تل دنړی د سولی او آرامی دساتنی خبری کوی په عمـل کی دهغه‌ادعاسره‌یوره بل‌ډول‌چال‌چلندکوی‌لکه چه دافغانستان حکومت په وار وار ویلی دی دپرمختیا په حال کی هیوادونه یوائی دسولی او کراری لاندی کولی شی دخپلو ټولنـو د اجتماعی حالت انکشاف‌او لوړتیا او داقتصادی سطحی لوړولو ته ورسیږی اودوسلودصادرولو بندیز لری کول نه یوائی ددغو ستروهدفونو دخورا قیمتی منابعو دانحراف سبب کیـږی بلکه دیوی کړکیچنی او خطرناکی فضا دپیدا کولو نه به‌پرته بله نتیجه ورنه کړی .

**دکب ٦ :**

څه دپاسه څلور سوه یو څلویښت زره مربع متره قالین دروان کال په یوولســـو میاشتوکی بهر ته لیږل شویدی .

**دکب ۷ :**

د جمهوری دولت دهدفونو او په هیوادکی دښځو دژوندد حالت دښه کولو له مخی پــه فابریکو او مؤسسو کی دکارګرو او مستخدمینو ښځو دپاره دزیږونی نه دیرش ورځی دمخه‌او شل ورځی وروسته له معاش سره رخصتی تصویب شویده .

**دکب ۷ :**

ددولت دښاغلی رئیس او صدرا عظم‌خاص نماینده ښاغلی محمد نعیم دنیپال دباچـــا اعلیحضرت پیراندرابیر بیګرام شاه دیوادتاج په سرکولو په مراسمو کی دګډون نه پس‌له غرمی نه وروسته په دری بجو کابل ته راغی.

**دکب ۱۰ :**

ددولت‌درئیس اوصدراعظم ښاغلی‌محمدداؤد دخواخوږی پیغام دبد خشان والـی دهـغو د ووتنو یاتی کسانوته ورساؤ چه دبهارك پــه علاقه داری‌کی دداوری دښوئیدوپه پیښه کی مړه شویدی . دغه راز دبدخشان‌والی دافغانی سری میاشتی دټولنی مرسته دسیف‌اللــه‌او ګدا محمد پاتی کسانو ته‌چه یدی پیښه‌کی مړه شویدی وسپارله .

**دکب ۱۰ :**

دمزار شریف کیمیاوی سری دفابر یکی دوهم لین په اساسی تولید پیل وکړ .ددغی فابریکی لومړی لین دسږکال په‌لومړیووختو کی په کارا چول شوی او تراوسه ئی دولس زره ټنه دیوریا سره تولید کړیده .

دمزار شریف دکیمیاوی سری دفابریکی ددوهم لین اوس دورځی سل ټنه دیوریا سره تولیدوی چه دلومړی لین سره‌سره به پــــه

مجموعی توګه دهغو تولیدات دوه سوه ټنوته لوړ کړی شی .

**دکب ۱۱ :**

خلور سوه شپږ اویازره **پنځه** سوه دری پنځوس متره دو بره **ټوکر** دبلخ دنساجــــی فابریکی‌دسږ کال‌دیوولسو میاشتو په‌تولیداتو کی دتیر کال دهمدی مودی په نسبت زیاتـــی شویدی.

**دکب ۱۳ :**

څه دپاسه اوه ملیونه شپږ **سوه‌زره‌افغانی** دفراه دښار دمحافظوی **بند** اوسیل‌بردجوړولو دپاره ددولت له خوا منظور شویدی.

**دکب ۱٤ :**

دمالیی دوزارت دپیشنهاد په اساس اود واکمنو مقاماتو په منظوری دملی بس دتصدی اساسنامه په شپږ وفصلو نو او درویشتـــو مادوکی تصویب شویده .

دغه موسسه د افغانستان د جمهوری دولت دتګ لاری په اساس دحمل ونقل دچټکتیااود خلکو دهوسیاینی دتامین په مقصد ددری سوه ملیونو افغانیو په لومړنی پانګه دیوی دولتی تصدی په توګه دمالیی دوزارت په چوکاټ کی جوړه شویده .

**دکب ۱٥ :**

جمهوری دولت د ۱۳٥٤ کال نولس ملیارده یو سلو شپږاویا ملیونه‌دری سوه شپږاتیازره افغانی بودجه‌دوزیرانو دعالی مجلس دتصویب نه وروسته ددولت ښاغلی رئیس اوصدرا عظم منظور کړیده .

دهیواد د۱۳٥٤ کال بودجه په داسی ډول ترتیب شوی چه د دولت دعاید اتو ســـره انډول ده اوعادی او پرمختیاییبودجی لری.

دمالیی وزیر ښاغلی سید عبدالاله‌ددغومطالبو دخرګندولو په ترځ کی وویل د۱۳٥٤کال بودجه د۱۳٥۳ کال دبودجی پـــه نسبت په سلوکـــی شپږ پنځوس زیاته ده .

**دکب ۱۷ :**

دمالیی دوزارت په پیشنهاد دوزیرانود عالی مجلس په تصویب اوددولت دښاغلی رئیس او صدرا عظم په منظوری ددولت دمامور ینو ښوونکو او اجیرانو کوپرا تیف منظور شو .

**دکب ۱۷:**

دوزیرانو عالی مجلس دکانونو تر ځمکـــی لاندی‌کارونو کی‌دښځوداستخدام‌منع کول‌تصویب کړل. دوزیرانو عالی مجلس دهیواد دښځو د طبقی داجتماعی حالت دښه کولو په بـــاب دجمهوری دولت دهدفونو له مخی اود کـــار دبین‌المللی جرګی له‌خوا دتصو یب شوی‌پنځه څلویښتمی ګڼی مقاوله لیك په استناد چـه په‌هغه کی افغانستان هم‌غړیتوب لری دکانونو دځمکی لاندی کارونو کی دښځو داستخدام‌منع کول تصویب کړی دی.

**دکب ۱۷:**

دهیواد دښځو دنهضت ښکار ندوی دعکاسی نندارتون په‌کابل ننداری کی پرانستل شو.

**دکب ۱۸:**

ددولتی دایرو او تصدیو دپیرودنی نـــوی مقررات په دریو فصلونو او اوه څلو یښتو مادو کښی دوزیرانو عالی مجلس تصویب‌کړی

ددولتي دايرو اوتصديو دشيانو دپيرودنې دچارو دښه انسجام دپاره‌نوي مقررا تتصويب شويدې .

**دکب ۱۹:**

ددولت رئيس اوصدراعظم ښاغلي محمد داؤد دهند په‌ړوه پنځه ورځني رسمي اودو ستانه سفر دکب په‌۱۹ نوي ډيلي ته‌ورسيد .

ددولت ښاغلي رئيس او صدراعظم او ددوی ورسره هيأت ته‌نوي ډيلي ته درسيدو په وخت کې‌دهند مشرانو او خلکو توداوپه زړه پوري هرکلي ووايه .

**دکب ۲۰:**

داطلاعاتو او کلتوردوزير پوهاند ډاکترنوين له‌خوا ددولت درئيس او صدراعظم ښا غلي محمد داؤد دپيغام په‌لوستلو سره داميرخسرو بلخي داحوال څيړنې او آثار دتحليل مجلس پيل شـو .

**دکب ۲۰:**

دکمکيانو په جرا يمو پوري دمربو طـو مقرراتو ضميمه چه دجمهوريت ددريم فرما ن دروحيې سره سمه دعدليه وزارت‌دقضائي‌عالي شورا له تصويب څخه وروسته‌نافذه شوه.

**دکب ۲۵:**

ددولت درئيس او صدراعظم ښا غلـــي محمد داؤد اود هغوی د ملګرو دسپر لـــی الوتکه عراق ته‌دسفر په‌لاره کې په دووبجواو دريو دقيقو دکندهار په‌بين المللي هوائي‌ډګر کې راکوزه شوه.

**دکب ۲۵:**

ددولت رئيس اوصدراعظم ښاغلي‌محمدداؤد دکندهار دښاريانو په ټولنه کې دفکر او عمل يووالي ديوه هيواد دپرمختګ وسيله‌بللې‌ده.

د دولـــت د ښاغلـــی رئيس او صدراعظم و ينـــا د کنـــد هـــا ر د ښا ر يـــانـــو د زړګونوتنوله خواپه خوښي او خوشـــالي اود ژوندی دی وی‌دجمهوريت مؤسس او ژوندی دی وی ستر داؤد په‌شعارونو سره بدرګـــه کيده.

**دکب ۲٦:**

ددولت رئيس او صدراعظم ښا غلـــــی محمدداؤد له څيلو ملګرو سره ديوه‌رسمـــی اودوستانه سفر دپاره دافغانستان په‌وخت‌تر غرمې وروسته په‌دريو بجوبغدادته ورسيد.

**دکب ۲٦:**

دانقلابي دولت دکې نلاری په‌اساس يوسلو پنځو نورو کـورنيوته دنـــنګر هار دناو ی دپراختيا په پروژه کې ځمکه وويشله‌شوه.

په غازی آباد کی دمؤظف هيأت په وړاندی دپچي په‌حکم مستحقوکسانو ته ځمکه ورکړی شـــوه.

**دکب ۲۹:**

ددولت رئيس اوصدراعظم ښاغلي محمد داؤد دهند بنګله‌ديش اوعراق‌هيوادوته له‌رسمي او دوستانه سفرونو څخه وروسته‌په خيروطن‌ته راغـــی .

ددولت‌دښاغلي رئيس اوصدراعظم اودهغه‌سره ملګری‌هيأت‌دسپرلي‌الوتکه‌دکب په‌۱۹نيته ترغرمي وروسته په دووبجو اوپنځه څلويښتو دقيقو دکابل په‌بين‌المللي هوائي ډګر کی راښکـــته شـــو ه.

**دوری لومړی د۱۳۵٤ :**

دبزګر ورځ له غرمې نه‌مخکی دخير خانې

دغانبی په لمن کی دخاصو مراسمو په ترڅ کی ونمانځل شوه .

**دوری لومړی:**

دشاه ولایتمآب دروضې علم د افغانستان دترقۍ او نیکمرغۍ زنومړ دستر مشرددو لت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤد دروغتیا په دعا په مزارشریف کی پورته کړای شـو اوپدی ډول دګل سرخ لرغونی میله پیل شوه.

**دوری ۲ :**

په نړۍ اوبین المللی بازارونو کـــی په وروستیو دووکالوکی دانرژی دبحران اودبیو دلوړوالی مسألی اواقتصادی مشکلات پیداکړی دی . چه لەدی کبله زیاتره پرمختیایی هیوادونه زیانمن شویدی اودبیو په لوړیدو کـــی دغه زیاتوالی په بین المللی مارکیټونو کی دبوری اوپترولو دبیو دلوړیدو سبب شویدی .

څرنګه چه دجمهوری رژیم یوستر مقصـــد زموږ دخلکو نیك مرغی اوهوساینه ده دولت ددغی وجیبی په توګه دبیو دثابتوساتلو پـــه غرض د۱۳٥٤ کال په بودجه کـــی دبوری او نفتی موادو دبیی دتفاوت دپاره یو ملیارد او دوه سوه ملیونه افغانۍ دسبسد ی پەتوګـــه اټکل کړی چه دسبسدی ددغه رقم دمنلو او دګاونډیو هیوادو دبیو په نظرکی نیولو سره سم پەیولیتر ډیزل کی ددوو افغانیو او په یوکیلو بوره کی دشپږو افغانیو زیاتوالـــی تجویز کړچه ددغه اعلان په خپریدو سره به پەټول هیوادکی دیو لیترډیزلوبیه اته افغانۍ اویو کیلوګرام بوری بیه دیرش افغانۍ وی .

**دوری ۳:**

دپامیر دوادنۍ پەنامه دیوی څلور پوړیزی ودانۍ دبنسټ تیږه دمالیی دوزیر ښا غلی سید عبدالاله، لەخوا پەمیوند واټ کښی‌کیښود لەشوه.

**دوری ٤:**

دغوری دسمنټو فابریکی څه د پاسه یـــو ملیون اودوه سوه زره ټالره اویوسلو دری دیرش ملیونه افغانۍ تیرکال لەهیوادنەدباندی اودننه دسمنټو دپلورولو له لاری لاس تـــه راوړی دە.

**دوری ٥ :**

داسلام دستر پیغمبر سرورکائنات حضرت محمد صلی الله علیەوسلم نیکمر غەمیـــلاد دکلام الله مجید دختم دنبوی احادیثودلوستلو دنعتونو اووینا وخطابواو دټولنو په جوړیدو سره په ټول هیوادکی ونمانځل شو .

**دوری ٦ :**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد تـــر غـــر مـــــی دمخه په یوولس نیمـــو بجو داعلیحضرت فقید ملك فیصل د مـړی دښخولوپه مراسمو کی دبرخی اخیستو لپاره سعودی عربستان ته لاړ .

**دوری ٦ :**

تیرکال دبلخ، جوزجان ، فاریاب اوسمنګانو دولایاتو کروندګرو دری سوه دری اتیاملیونه افغانۍ دخپلی پومبی دحاصل نـه لاس تـــه وروړیدی .

**دوری ۷ :**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دفقید اعلیحضرت ملك فیصل‌دجنازی دښخولو پەمراسمو کی دګډون نەوروستەدوری پەاوومه

نیته دماسپښین په دوو بجو اودیرشو دقیقو دسعودی عربستان څخه وطن ته راغی .

**دوری ۷ :**

تیرکال دگلبهار پلخمری اوجبل‌السراج‌د نساجی په‌فابریکو کی څه دپاسه شپږپنځوس ملیونه اونیم سوه زره متره ټوکر تولیدشوی چه د۱۳۵۲کال په نسبت یوملیون اواوه سوه زره متره زیات دی .

**دوری ۹ :**

دجمهوری دولت هدفونو دښه پوره کیدو او داداری نیمگړتیاؤ دلری‌کولو دپاره دسیمه‌ایزی اداری په نامه دوالیانو سیمینار د کورنیو چارو وزیر ښاغلی فیض محمد په‌هغه وزارت کی پرانیست .

**دوری ۱۱ :**

درادیو تراپی ایزوتوپ دمرکز د ودانی دبنسټ تیږه دپوهنی وزیر پوهاند عبدالقیوم دکابل پوهنتون په سیمه کی کیښوده .

**دوری ۱۱ :**

د۱۳۵۲ کال په مقایسه دبگرامیو د نساجی دفابریکی دتیرکال په تولیداتو کی څه‌دپاسه یوملیون اوسل زره متره ټوکرزیات شویدی.

**دوری ۱۲ :**

ددری شپیتو ملیونو اودری سوه زروافغانیو انبول کیمیاوی سره دکرنی دمحصولاتو د زیاتوالی دپاره دپروان او بامیانو دولایتونو کروندگرو اوباغوالوته ورکړل شویده .

**دوری ۱۳ :**

دوالیانو هغه سیمینار چه‌دسیمه ایزی‌اداری په نامه د کورنیو چارو په وزارت کی جوړشوی ؤ پای ته ورسید .

**دوری ۱۵ :**

دتیرکال دکب دمیاشتی ترپایه پوری دبلخ جوزجان اوفاریاب دولایاتو په‌کروندگرو باندی دخلیر ویشتو ملیونو اوشپږ سوه زره افغانیو په بیه کیمیاوی سره ویشل شویده .

ددغو ولایاتو کروندگرو ته په نغدو اودپور په ډول دوه زره دری سوه نولس ټنه‌کیمیاوی سره ورکړشویده .

**دوری ۱۵ :**

د۱۳۵۲ کال په نسبت په تیرکال کی دسپین زرشرکت په‌دستگاوکی دوه زره پنځه سوه یوویشت ټنه غوړی زیات تولید شویدی.

**دوری ۱۷ :**

دننگرهار دپوهنتون دلیلیی دودانی دبنسټ ډبره دپوهنی دوزیر پوهاند عبدالقیوم له خوا په‌داسی حال‌کی چه دروغتیا وزیر پوهاند ډاکتر نظرمحمد سکندر هم حاضرؤ دجلال آباد ددرونټی په ساحه کی کیښودل شوه .

**دوری ۱۸ :**

دروغتیا جهانی ورځ دټولنو په ترخ کی په ټول هیوادکی ونمانځل شوه .

**دوری ۲۳ :**

دبغلان په ولایت کی دچغند روکروندگروته څه‌دپاڅه نیمه ملیونه افغانی تقاوی‌ورکړ شویده په‌وروستی‌یو میاشت کښی‌کروندگروته دچغندرویوسلو یوپنځوس ټنه تخم په وړیا ډول ویشل شوی اودغه راز داتو ملیونو افغانیوپه بیه کیمیاوی سره هغوی ته ورکړ شویده .

**دوری ۲٤ :**

داجناسو دپیرودلو مقررات درسمی جریدی د۱۳۵٤ کال دوری دمیاشتی دشپاړسمی‌نیټی پەلومړنی ګڼه کی خپاره اونافذ شول. دغه رازدبیمی قانون‌درسمی جریدی په دوه‌ویشتمه ګڼه‌کی خپور اونافذ شویدی .

**دوری ۲٤ :**

څه دپاسه پنځه زره‌اوپنځه سوه تنو تیــر کال په‌کابل ښارکی دلویانو دزده کړو پــه کورسونو او دځینو ولایاتو په پرمختیایــی پروژو کی دحیاتی لیك اولوست په تجربوی کورسونوکی لیك اولوست یاد کړیدی .

**دوری ۲٤ :**

دتوکیو دګورنر جایزه چه دراډیویی تر بیتی ممتازو پروګرامونو دپاره ټاکل شوی وه دجاپان په مرکزکی دتربیوی پروګرامونو د څیړنــی دبین المللی لوبی په ترڅ‌کی دراډیوافغانستان دپروګرامونو څخه یوه ته ورکړی شوه .

**دوری ۲۵ :**

دباندنیو چارو دوزارت دمامورینو او دنورو مربوطو وزارتونو دمامورینودروزنی اودسویی دلوړولو اوپه بین المللی چارو کی ددولــت دمربوطو موسسو دمامورینو دذهنیت دپیاوړی کولو اودمامورینو ترمینځ دهمکاری او تفاهم دتأمین په غرض دباندنیو چارو دوزارت پـــه چوکاټ کی یوه دیپلوماسی موسسه احیـــاء شویده .

**دوری ۲٦ :**

دصدارت عظمی د پیشنهاد پـــه اساس دوزیرانو دعالی مجلس په تصویب او ددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمد داؤد پـــه منظوری اوداوبو اوبریښنا دچارو دچټکتیااوښی پرمختیا په مقصد داوبو بریښنا د عمومـــی ریاست پەنامه له رتبی څخه پەوتلی سو یــه یونوی واحدجوړ شویدی .

**دوری ۲۷ :**

ددولت درئیس‌اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دخوا خوږی مراتب دفاریاب والی دالمار پــه علاقه داری‌کی دځمکی دښوئیدودپیښی مصیبت ځپلو ته ورسول .

**دوری ۲۸ :**

دبلخ دنساجی دفابریکـــی دپر مختیا یی پروژی دودانی دبنسټ ډبره د پوهنی وزیر پوهاند عبدالقیوم په مزارشریف کی ددغـــی فابریکی په انګړکی کیښودله .

**دغوایی لومړی :**

ددولت دښاغلی رئیس او صدراعظم پـــه لارښوونه دافغانی‌سری میاشتی دټولنی عاجلی مرستی دفاریاب والی دالمار دعـــلاقه داری ددالان شین کلی اوصیاد دکلیو مصیبت‌ځپلو ته وویشلی .

**دغوایی ۲ :**

دکابل انترکانتی ننتال هوټل د انترکانتی ننتال هوټلونو دبین المللی شبکی دجوایزو لوړه درجه ګټلی ده .

**دغوایی ۲ :**

ددولت دښاغلی رئیس او صدراعظم پـــه هدایت دافغانی سری میاشتی دټولنی مرسته د پــروان د والـــی لــه خـــوا هغی

کورنی ته وسپارل شوه چه په پنجشیر کی دواوری دښوئیدوپه اثرزیانمنه شویده .

**دغوایی ٥ :**

دکابل پوهنتون دادبیاتو اوبشری علومود پوهنځی په چوکاټ کی دښکلو هنرو ځانگه نوی جوړه شوه .

**دغوایی ٦ :**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دایران دشاهنشاه اعلیحضرت محمد رضا شاه پهلوی په‌بلنه دیورسمی اودوستانه سفردپاره له غرمی وروسته‌په یوه نیمه بجه په‌مخصوصه الوتکه‌کی تهران ته لاړ .

**دغوایی ٨ :**

دافغانی فلکلوریکی موسیقی دوه ټوټی د یونسکو کلتوری مرکز غوره کړی اوپریکړه وشوه چه دغه ټوټی دآسیایی هیوادودلوړونیو ښوونځیو په هنری درسی کتابونو کی ونیول شی .

**دغوایی ١٠ :**

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد اوله هغوی سره ملگری هیأت ایران ته له‌یوه رسمی اودوستانه سفر څخه وروسته مازیگر هرات ته راورسیدل .

**دغوایی ١١ :**

دکار اوکارگر بین المللی ورځ سږکال دهیواد په جمهوری بختور نظام کی ددوهم ځل‌دپاره دکارگرانودکارپه ځایونوکی‌دمربوطو موسسو له‌خوا ونما نځله شوه .

**دغوایی ١٣:**

دپوهنی وزیر پوهاند عبدالقیوم دغونډی په ترڅ‌کی پرانیست چه دکورنیو چارو وزیر ښاغلی فیض محمد هم حاضر وو .

**دغوایی ١٤ :**

دکندهار دمیوی په فابریکه‌کی تیر کال څه دپاسه دوه اویازره ډول ډول دمیوی اود ترشی ډبلی تړل شویدی .

**دغوایی ١٧ :**

دژوروځاگانو دبرمه کاری کورس دروغتیا دوزارت معین پوهاند ډاکتر محمد ابراهیم عظیم دعامی روغتیا دموسسی په تالار کی پرانیست .

**دغوایی ١٨ :**

په هیواد کی دملی بیرغ اوچتولو کالیزه دورځپاڼو ، جریدو اوراډیو افغانستان له خوا دمضمونونو اوسرمقالو په خپرولو او د ملی بیرغ په‌چاپولو سره ونما نځله شوه.

**دغوایی ١٨ :**

ددولت درئیس‌اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دپیغام‌په لوستلوسره( دافغا نستان‌خارندوی ټولنی)دجوړیدواوبیاژوندی کولونولسمه‌کالیزه داستقلال دلیسی په جمنازیوم کی دمراسمو په ترڅ کی ونمانځل شوه .

**دغوایی ١٨ :**

دسری میاشتی جهانی ورځ دپنجشنبی په ورځ دهیواد په مرکز اوولایاتو کی دغونډوپه ترځ کښی ونماځل شوه .

**دغوایی ٢٢ :**

دمالیی دوزارت په پیشنهاد دوزیرانودعالی دبدنی روزنی انستیتوت په داسی حال‌کی مجلس په تصویب اوددولت دښاغلی رئیس

اوصدراعظم په منظوری دافغان ترکانی تصدی په نامه موسسه دانتفاعی تصدی دحیثیت په درلودلوسره جوړه شویده .

ددغی موسسی اساسنامه چه شپږ فصله اوشپږ دیرش مادی لری درسمی جـریـدی په دریمه ګڼه‌کی خپره اونافذ شوه .

**دغوایی ۲۲ :**

داوبو رسولو اوکانالیزاسیون د تصـــدی اساسنامه درسمی جریدی په شپږمه ګڼه‌کی خپره اونافذشوه . ددغی اساسنامی له مخـی چه پخوا دوزیرانو په عالی مجلس‌کی تصویب اوددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم منظـوره کړی‌داوبو رسولو او کانالیزاسیون دتصدی‌په نامه یوه موسسه جوړه شویده.

**دغوایی ۲٤ :**

ددولت درئیس اوصدراعظم‌ښاغلی‌محمدداؤد دخواخوږی اوتسلیت پیغام دبادغیس والـــی دقادس دولسوالی دمربوطوکلیو سیلاو ځپلوته ورساؤ .

**دغوایی ۲۵ :**

دمزارشریف دسری اوبرښنا فابریکی پـــه کال‌کی یواویازره ټنه په سلوکی ۹۹ـاعشاریه ۹ مایع امونیا تولیدوی دمزار شریف دسری اوبرښنادریاست یوی‌منبع‌وویل‌چه‌کال‌کی دمایع امونیادتولیداتو ځخه دهغو اته زره ټنه زیاته مایع امونیا دولتی او خصوصی موسسوتـــه ورکوله کیږی .

**دغوایی ۲۷:**

ددولت درئیس اوصدراعظم‌ښاغلی‌محمدداؤد دخواخوږی اوتسلیت مراتب دبدخشان د والی له خوادهغوکسانو پاتی خپلوانوته ابلاغ شول چه په‌یفتل کی دسیلاب په وروستنی پیښه‌کی مړه شوی وو .

همدارنګه دبدخشان والی دافغانی ســـو ی میاشتی دټولنی مرستی مصیبت ځپلو تـــه ورسولی .

**دغوایی ۲۷ :**

دتیلی کمیونیکشن ورځ دتیلی کمیونیکشن اوهوا پیژندنی په شعار سره دغړو هیوادو مخابراتی ادارو دنړی په‌ګوټ‌ګوټ کی‌ونمانځله شوه .

**دغوایی ۲۸ :**

ددولت دتصدی په‌توګه دمیرمنو ټـــو لنـی اساسنامه دوزیرانو په عا لی مجلس کـــی تصویب او ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم له خوا منظور شویده .

**دغوایی ۳۰ :**

په‌کابل کی دافغانی قالینولومړنی نندارتون دعظمی صدارت مرستیال ډاکتر محمد حسـن شرق دجشن دسیمی دنندارتون په برخه‌کی پرانیست .

**دغوایی ۳۰:**

ددولت رئیس‌اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دهغی مهربانی له‌امله چه دښوونکو اوروزونکو سره‌یی لری‌دښوونکي‌دورځی له‌امله دښوونکی دصندوق دتقویی په غرض ددولت له بودجی ځخه دلسو ملیونو افغانیو ورکړه منظورکړه .

**دغوایی ۳۱ :**

دښوونکی ورځ دانقلاب دمشرددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤددپیغام په‌لوستلو سره دهیواد په مرکز اوولایاتو کی ددرندو

ټولنو په ترڅ کې ونمانځل شوه .

**دغبرگولی لومړی :**

ددولت رئیس او صدراعظم ښاغلی محمدداؤد دهیواد دمرکز او ولایاتو استاذان اوښوونکی په جمهوری ارگ کی ومنل .

**دغبرگولی ۲ :**

دانقلابی دولت دتگ لاری په اساس نورو شپږاتیا مستحقو کورنیو ته دننگرهار د ناوی په پراختیا یی پروژه کی دکرنی نهه سوه دوه اویاجریبه ځمکه دغوایی دمیاشتی په یودیرشمه نیټه ورکړه شوه .

**دغبرگولی ٤ :**

دوړیو دموسسی اساسنامه دوزیرانو دعالی مجلس دتصویب اوددولت دښاغلی رئیس او صدراعظم دمنظوری نه وروسته درسمی جریدی په پنځمه گڼه کی خپره اونافذه شوه .

**دغبرگولی ٤ :**

دباندنیو چارو دوزارت داطلاعاتو مدیریت خبرراکړچه دښځواوماشومانو په گډون نهه خلویښتو تنو نورو بلوڅانو هم دپخوانیو پناه راوړونکو په لړکی دپاکستان دحکومت دظلم او تیری اودهغه هیواد دنظامی پوځونو دبی رحمه عملیاتو له امله افغانستان ته پناه راوړیده .

په افغانستان کی دټولو بلوڅو پناه راوړونکو شمیر یوزروپنځه سوه څلـــر ویښت تنو ته رسیدلی دی .

**دغبرگولی ٦ :**

دغبرگولی شپږمه ورځ دگران هیواددخپلواکی دبیرته اخستلو داووه پنځوسمی کالیزی سره برابره وه اوددی درندی اوتاریخی ورځی هرکلـــی په ټول هیواد کښی وشو .

**دغبرگولی ٦ :**

پنځه ویشت زره یوسلو پنځه اویا ټنـــه شپږ سوه دری دیرش کیلوپومبه چه ټوله بیه یی دری سوه اته اویا ملیونه څلور ســـوه څلورڅلویښت زره شپږسوه څوارلس افغانۍ کیږی په دریو سورتونو کښی په تیرکال کـــی دپومبی دراټولولو دپیل څخه دسږکال دغوایی تراته ویشتمی نیټی پوری دهلمند ، کندهار اوفراه دولایاتو دپومبی له کروند گرو څخـــه پیرودل شویده .

**دغبرگولی ٦ :**

د۱۳۵۳ کال له سره تراوسه پوری دکندهار په ښارکښی بی کوره ښوونکو اومامورینو ته دوه سوه اویانمری ځمکه ورکړی شوی ده .

**دغبرگولی ۷ :**

دغوری دسمنټو فابریکی دسږکال دوری او غوایی په میاشتو کښی دسمنټو دخرڅولو له لاری څه دپاسه نهه ویشت ملیونه اوڅلور ســوه زره افغانۍ لاس ته راوړیدی.

**دغبرگولی ۸ :**

څه دپاسه دوه ملیونه پنځه و یشت زره متره ټوکر دروان کال دوری اوغوایی په میاشتو کښی دبگرامیو دنساجی په فابریـکه کښی تولیدشوی چه دتیرکال دهمدی مودی په نسبت څلورسوه پنځه ویشت زره متره زیات دی .

**دغبر گولی ۱۰ :**

دهواد په اقتصادی اواجتماعی حالت کښی

دبنیادی اصلاحاتو په لړکښی دجمهوری دولت دانقلاب اودافتصادی سیاست دهدفونـــو پـــه بنسټ دولت فیصله وکړه چه په افغا نستان کښی بانکونه اودبانکداری چاری ملی شی .

**دغبر گولی ۱۲ :**

افغانستان دهوخست دسهامی شر کـــت دالحاقیه ودانی دبنسټ ډبره دروغتیا وزیـــر پوهاند ډاکتر نظرمحمد سکندرد کـــابل پـــه صنعتی سیمه کښی کیښوده .

**دغبرگولی ۱۳ :**

یودپاسه سل ټراکټو رونه پـــه ترو شپږو میاشتو کښی دکندهار ، هلمند اونیـــمروز د ولایتونو په کروندګرو باندی په ښو شرطونو پلورل شویدی .

**دغبر گولی ۱۵ :**

دننگرهار ولایت دقیر فابریکه دفواید عامی وزیر ښاغلی غوث‌الدین فایق دباریك آب په سیمه کښی پرانستله اوله دی سره جوخت دجلال آباداوتورخم دلویی لاری ددوهم پـــوړ دقیراچولو چاری پیل شوی .

**دغبر گولی ۱۸:**

دغبر گولی دمیاشتی دپیل کیدو نه تراوسه پوری دهلمند دنباتی غوړیو اوډپنبی دموسسی لەخوا یوزرو او پنځه سوه ټنه مالوچ بهر ته صادر شویدی .

**دغبر گولی۲۱:**

دپانگی اچولو جرگه‌گی په‌خپله غونډه‌کښی دځه دپاسه دشپږو پشتو ملیونو افغا نیوپه پانگه دغالیو پریمنځلو پروژه منظوره کړه.

**دغبر گولی ۲٤:**

په‌ټول‌هیوادکښی ددرندو اوشاندارو‌ټولنو په‌ترځ کښی دمور ورځ زمونږ دملی مشر ښاغلـــی محمدداؤد دپیغام په لوستلو سر ەونمانځلـــه شـــوه.

**دغبر گولی ۲٤:**

دبگرامیو دنسا جی دفابریکی تو لیـــدات دپخوانی یوولس ساعته دوو شفتو په ځا ی په اووه ساعته دریو شفتو کښی‌دهغود کارپه نتیجه کښی په‌سلو کښی دوه اعشاریه او ه ځلو یښت زیات شویدی .

**دغبر گولی ۲٦:**

ددولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم ماندینی محترمی میرمن زینب داؤد په‌هغه غونډه‌کښی برخه واخیسته چه دښځی دبین المللی کال‌له امله دزرغونی لیسی لەخوا دامانی لیسی په جمنازیوم کښی وشوه .

**دغبرگولی ۲۸:**

دوریښمو دغوزو دسږکال په تولیدا تـــو کښی دتیرکال په انډول ځه‌ناځه په‌سلوکښی شپیته زیاتوالی راغلی دی .

**دغبر گولی۲۹:**

یوشل لینه سو چبورد دکټواز دلو یـــی ولسوالی په مرکز او دولس لینه سوچبـــورد دوازی خواه اودشرنی دولسوالیو په مرکزونو کښی نوی درول شوی اوپکار واچول شول.

**دغبرگولی ۲۹:**

دجبل السراج دافغان سمنټو له فابر یکی څخه ایران ته دسمنټو صادرات پیل شول.

دهغی موافقی پهاساس چه دمربوطو افغانی اوایرانی مقاماتو ترمنځ شوی تاکل شو ی لس زره ټنه سمنټو چه بیه یی اوه سوه زره ډالروته رسیږی ایران ته صادرشی.

**دغبرگولی ۳۱:**

دمزار شریف فراه کندهار ننگرهار غز نی چغچران اوکلای نو دښاروتو تفصیلی پلا نونه دفواید عامی دوزارت دانجنیرانو له خوابشپړ شوی اود تطبیق کیدو پهحال کښی دی.

**دغبرگولی ۳۱:**

دسپین زر شرکتدغوړیو ایستلو پهدستگاه کی دروان کال پهلومړیو دریو میاشتو کی دتیرکال دهمدی مودی پهنسبت ۱۵۹ ټنه غوړی زیات ایستل شویدی .

**دچنگابښ لومړی :**

ددولت دښاغلی رئیس او صدراعظم ماندینی محترمی میرمن زینب داؤد دهیواد دښخودلاسی آثارو نندارتون دکابل ښار والی په سا لون کښی پرانیست.

**دچنگابښ لومړی :**

داحتیاط دکورس دزده کړی دوره لهغرمی نهمخکښی دمراسمو په ترڅ کښی دښوو نی دغونډ دقو ماندانی پهقرار گاه کښی پرانستل شوه.

**دچنگابښ۲:**

دکابل او هرات پهولایاتو کښی دکورنیود دعوود سرگردانیو دمنځه وړلو دپاره دکورنیو دوه اختصاصی محکمی جوړی شوی .

**دچنگابښ۳:**

دپنځوس متره او برده او اوه متره سوره سرك په جوړیدو سره دبادغیس ولایت دمرکز کلای نو اودهرات ولایت دکـــــر خ دلسوالی ترمنځ لاره څلویښت کیلو متره لنډه شویده.

**دچنگابښ ۵:**

شل زره یوسلو اویا ټنه یـــوریا ســـره دسږکال دپیل څخه دغبرگولی ترپایه پوری دمزارشریف دسری په فابریکه کښی تولیـد شویده.

**دچنگابښ ۵:**

دجمهوری دولت دتجویز په اساس پههغو کورنیو باندی پوره اندازه پرو تینی مواد او درمل ویشل شویدی چه دگلران پهولسوالی کښی دچرمك ددانو دخوړلو له امله نارو غه شوی دی.

**دچنگابښ ۸:**

دباندنیو چارو دزوارت داطلاعاتو مد یریت خبرراکړ چه دمری قوم شپیتو تنونورو بلوڅو پناه وړونکی چه ماشومان او ښځـــی پکښی شاملی دی پهدیوختوکښی دپاکستان دحکومت

دظلم اوتيري اودهغه هيواد دنظا مي قواؤ دبي رحمانه عملياتو څخه افغانستان ته پناه راوړيده.

**دچنګاښ ۸:**

دتجارت دوزارت په پيشنهاد دوزير انو دعالي مجلس په تصويب او ددولت درئيس اوصدراعظم ښاغلي محمد داؤد په منظو ر ی دمالونو دوارد اتو دسيا ست په باب ځينې تصميمونه ونيول شول .

ددغې مصوبې له مخې اود دولت دتګ لاری اودتجارت دپراختيا دپروګرام په اساس حکومت دښکلا اوغير ضروری ښکلو قلمو مالو نو واردول منع کړی اودګمرکي تعرفو له لاری يې دښکلا داستهلا کي اوغيرضروری ديرشوقلمونو مالونو په وارد ولوکي محدود يتونه لګولي دي.

**دچنګاښ ۹:**

دقضا دعالي شوراپه پيشنهاد او ددو لت د ښاغلي رئيس او صدراعظم په منظور ی حسابي اختصاصي محکمه دعدليې دوزارت دقضا ئي اداری په چوکاټ کښې جوړه شوه.

**دچنګاښ ۱۰:**

دافغانستان ددولتي مطبعو دريا ست اساس نامه درسمي جريدې په فوق العاده ګڼه کښې خپره او نافذه شوه.

**دچنګاښ ۱۱:**

دپروان دولايت دپنځه ځلويښتو لومړ نيو ښوونځيو اود ښوونکو داو سيدنې دځـــای دجوړولو دپاره پنځوس مليونه افغانۍ تخصيص ورکړی شويدي.

**دچنګاښ ۱۱:**

دولت په تيرو څلورو مياشتو کښې دکونړ دلويې ولسوالي له خلکونه داوه ويشتو مليونو اوشپږ سوه زره افغانيو انډول دودانيو لرګي پيرودلي دي. همدغه راز نولس زره اوه سوه ديرش زره مکعب متره لرګي دتيرکال دکب د مياشتې نه راهيسې پيرودل شوی اوزيا تـه اندازه يې کابل ته راوړل شوې دي.

**دچنګاښ ۱۲:**

ددیپلوماسي مؤسسې اساسنامه د رسمـي جريدې د۱۳۵٤ کال دچنګاښ دمياشتې په ګڼه کښې خپره اونافذه شوه.

**دچنګاښ ۱۲:**

ترځمکې لاندې کار اوکانونو دپاره دښځو داستخدام په باب دکاردبين المللي جرګـــې د غـــو نـډ ی پنځـه ځلـو يښتمـه ګڼـــه مقاوله ليك دلومړی مادې له مخې په دری سوه شپږمه فوق العاده ګڼه کښې خپره اونا فذه شوه. دغه راز په همدغه ګڼـــه کښې ددو لت دمامورينو دقانون واحده ضميمه ماده خپـر ه او نافذه شويده .

**دچنګاښ ١٤ :**

دملګرو ملتو دپراختيا دپروګرام اداری د کورنې دلارښوونې دټولني دتبليغاتو په مقصد دسمعي اوبصری يوه اندازه سامان او آلات هغې ټولنې ته ورکړيدی .

دغه سامان اوآلات په افغانستان کښـــې دملګرو ملتو دپراختيايي پروګرام داداری آمر ښاغلي بارتويك دکورنې دلارښوونې دټولنې

سکرتر جنرالی میرمن نظیفی غازی نواز ته ورکړل .

**دچنګاښ ۱٤ :**

دلومړیو دوهمو اودریمو ټولګیو دزده‌کوونکو داتومات لوړولوپروژه دپوهنۍدبنیادی ریفورم په اساس له مینځه لاړه .

څرنګه چه ریفورم ازموینه او ښوونه دزده‌کوونکو دسویې دلوړولو دپاره یوه پرله پسې عملیه بولی په‌دې باره کښې یې‌داتومات لوړولو پروژه ګټوره ونه ګڼله اوله مینځه یې یووړه .

**دچنګاښ ۱۵ :**

دامریکادبین‌المللی پرمختیاداری، دلومړیو ټولګیو څه دپاسه اوه سوه ، اویازره ټوکه درسی کتابونه دپوهنی وزارت ته ورکړیدی .

**دچنګاښ ۱۵ :**

په خارج کښې دبورسونو او تحصیلاتو مقررات دوزیرانو دعالی مجلس دتصویب اود دولت دښاغلی رئیس اوصدراعظم له منظوری وروسته درسمی جریدی دچنګاښ دیوولسمی نیټې په دری سوه اوومه ګڼه‌کښې خپاره او نافذ شویدی .

**دچنګاښ ۱۵ :**

دلرګیو دتصدی اساسنامه درسمی جریدی د۱۳٥٤ کال دغبرګولی دیودیرشمی نیټی په اومه ګڼه کښې خپره اونافذه شوه .

**دچنګاښ ۱۷ :**

په پرمختیایی اولږ وپرمختیایی هیوادوکښې دښځو دوړاندی تګ اوپراختیا لپاره دمرستی د صندوق د تاسیس په باب دافغانی هیأت پیشنهادونه دمکسیکو په ښار کښې دښځو دبین المللی جرګی له خواتائید شویدی .

**دچنګاښ ۱۷ :**

سږکال په پوهنتون کښې دکانکور دشمول ازموینه دساینس اواجتماعیاتو په دووګروپو کښې اخیستله کیږی .

دکابل پوهنتون له پنځوسم‌کال څخه تردری پنځوسم کال پوری دکانکور دازموینی پوښتنی دیوه کتاب په توګه تدوین کړی اوهغه یې دلیسو دزده‌کوونکو دآشنا کیدو لپاره دهیواد په مرکز اوولایاتو کښې ویشلی دی .

**دچنګاښ ۱۸ :**

دپوهنی په برخه کښې دانقلابی دولت دتګ لاری له مخی دغزنی ولایت په مرکز او مربوطاتو کښې دلومړنیو ښوونځیو دنویو ودانیو الحاقیو اودښوونکو داستوګنی دکورونو دشاملو عرفانی اویاؤ پروژوکار پیل شو .

دپوهنی وزیر پوهاند عبدالقیوم دانډړو د ولسوالی دنانی دکلی داساسی‌ښوونځی‌دودانۍ اودهغه دښوونکو داستوګنی دودانۍ دښنسټ دتیږی په ایښودلو سره ددغو پروژو کار پیل کړ .

**دچنګاښ ۱۸ :**

دکابل ګردیز اوخوست په کرښه کښې دچینل سیستم دترمینل دځلورو دستګاو په کار اچولو اوداساسی مزی په غزولو سره دمخابراتودوزارت دمعین‌انجنیرعزیزاللّه‌زایراود پکتیاوالی ترمنځ په لومړی مخابری سره تیلفونی مخابره برانستل شوه .

**دچنگابښ ۱۹ :**

دباندنیو چارو دوزارت نطاق دپاکستان د ستری محکمی دچارشنبی دورځی په غونډه کښی دهغه حکومت دمقاماتو ددغو تورونو په باب چه دافغانستان شخه‌لیږل شوی ورانکاران دپاکستان دهوایی کرښو په یوه الوتکه کښی دبم دچاودنی دپیښی په‌ګډون د ورانکـــاری دعملیاتو مسئول دی ، په ځواب کښی وویل:

له بده مرغه پاکستانی مقامات پدغه ناوړه عادت روږدی شوی دی چه په پاکستان کښی په هرډول وړه اولویه پیښه کښی افغـانستان دخیل ګڼی اوباوردی چه ددوی پــه اوسنــی خندنی ادعابه څوك باورونکړی . خولازمه ګڼم لکه چه مویلی دی داوارهم پەدی باره‌کښی چه افغانستان پەخپله خاوره کښی ورانکاران روزی اودورانکاری دعملیاتو دپاره یی پاکستان ته استوی دپاکستان دمقاماتو پوچ او بیخی دروغ تورونه یوځل بیاپه کلکه اوپه پــوره ډول ردکړم .

افغانستان دپاکستان په مقابل کښی‌هیځکله داسی اعمالوته لاس ندی غزولی بلکه دهغوپه ځای یی څوځله زیار ایستلی دی چــه دداړو هیوادو ترمنځ یوازنی سیاسی اختلاف دخبروله لیاری اودروغی جوړی په وسایلو حل شی .

دباندنیو چارو دوزارت نطاق زیاته کــړه پاکستانی مقامات پدغو مذبوحانه کوښښونو سره غواړی دهغه هیواد په ستره محکمه زور واچوی چه خان عبدالولیخان اوملی عوامی‌ګوند محکوم کړی‌خودافغانستان په خلاف دپاکستانی مقاماتو ددغو بی ځایو او پوچو تورونو بیابیا لګول دداړو هیوادو داړیکو دګډوډی او د افغانستان اوپاکستان دسیاسی اختلاف دپاره دحل‌دلیاری په موندلوپوری دمربوطو کوښښونو له ځنډولوپرته به بله نتیجه ورنکړی .

**دچنگابښ ۲۱ :**

دکوکران اوپنجوایی دولسوالی تـــر مینځ سرك دکندهار والی پرانست .

**دچنگابښ ۲۲ :**

دعرفانی شپږدیرشو پروژو دودانی کار چه دلومړنیو ښوونځیو اوښوونکو دپاره داستوګن ځایونو نوی ودانی پکښی شاملـی دی دڅـه دپاسه یوولسو ملیونو افغانیو په لګښـــت دلغمان دولایت په مرکز اومربوطاتو کښـــی پیل شو .

دپوهنی وزیر پوهاند عبدالقیوم دچاردهی دنجونو دښوونځی اودلغمان دولایت په مرکز مهترلام کښی دروښـــان لیسی دـدوهـــم لمبر ښوونځی دنویو ودانیو دبسټ ډبره کیښوده اودهغه سره په یوه وخت کښی دنوروعرفانی پروژودجوړولو کارپه هغه ولایت کښی پیـــل شو .

**دچنگابښ ۲۲ :**

دآثارو دښیږنی اوهنری جایزودټاکلوورستی

غونډه داطلاعاتو اوکلتور دوزیر پوهاند دکتور نوین په مشرۍ پدغه وزارت کښې وشوه .

**دچنګاښ ۲۲ :**

څه دپاسه یوزروپنځه سوه ټنه تازه میوه دهغی دصادرولو دپیل څخه تراوسه پـوری دکندهار دګمرك له لاری بهرته صادره شویده.

**دچنګاښ ۲۲ :**

دکورنیو اختصاصی محکمه دهرات پهولایت کښې پرانستل شوه .

دادکورنیو دوهمه اختصاصی محکمه ده چه دعدلیې دوزارت دقضا دعالی اداری په چوکاټ کښې دکورنیو دلانهاندیو اودعوواوارولو لپاره پهکابل اوهرتا کښې جوړیږی .

**دچنګاښ ۲۲ :**

دمزارشریف دافغانستان بانك دنمایندګـی دودانۍ دبنسټ ډبره دبلخ والی کیښودله .

**دچنګاښ ۲۳ :**

دلوګر ولایت دمحمدآغه دولسوالی دګمران دپله دبنسټ ډبره ددغه ځای دوالی له خوا کیښودله شوه .

**دچنګاښ ۲۳ :**

دهرات ولایت دکرخ دولسوالی دمرکزداوبو رسولو دپروژی کارپیل شو .

**دچنګاښ ۲٤ :**

دمرکز اوولایاتو ټولوهټیوالوته خبر ورکول کیږی چه ددغی خبرتیا سره دی په راکړو ورکړوکښی دمالونو بیه پهکیلوګرام وښیی اوپه پاو، چارك اونورو پخوانیو تولونوباندی دی دبیی له ورکولو څخه ډډه وکړی .

**دچنګاښ ۲٤ :**

ددولت دښاغلی رئیس او صدراعظم دهمدردۍ او تسلیت پیغام دبدخشان دوالی په واسطه دهغو شپږو تنوپاتی کسانو ته چه دکشم په ولسوالیکښی دسیلاب پهاثرمړه شویووابلاغ کړای شو .

**دچنګاښ ۲٤ :**

دجمهوریت ددویمی کلیزی نیکمرغهجشن د رارسیدو له امله کلتوری او مطبـوعـاتـی جـایـزی دمطبوعاتو پهکلوپ کی په مستحقو کسانو وویشل شوی .

**دچنګاښ ۲٤ :**

دافغانی هیئت هغـه دوه پیشنهادونهچـه داسلامی هیوادو دخارجه وزیرانو دکنفرانس په اجنداء کـی شامـل شوی و درأیو پـه اتفاق تصویب شو.

**دچنګاښ ۲٥ :**

دهرات دولایت دبنځو پنځه څلو ینبـسـت بستره ایزه روغتون نوی ودانۍ د هـــرات والی پرانستله .

**دچنګاښ ۲٥ :**

دجمهوری ددولت دکړنلای پـه اســاس د دوولسو مستحقو کورنیو له پاره د بدخشان دشت سنګ میر په پروژه کی ځمکه وویشله شوه .



رئیس عمومی آب وبرق و مستشار سفارت کبرای شوروی هنگام امضاء اسناد قرار داد پروژه تخنیکی استفاده ازمنابع آبی قسمت سفلای دریای کوکچه .

## عقد قرارداد پروژه تخنیکی استفاده ازآب قسمت سفلای دریای کوکچه بین افغانستان واتحاد شوروی

**۱۲ سرطان ۱۳۵٤**

قرارداد پروژه تخنیکی استفاده مطلوب ازمنابع آبی قسمت سفلای دریای کوکچه بین دولت جمهوری افغانستان واتحاد شوروی د رکابل کابل عقد گردید .

بموجب این قرار داد که ازجانب افغانستان توسط انجنیر جمعه محمد محمدی رئیس عمومی واحد آب وبرق واز طرف اتحاد شوروی بناغلی بریستیوف مستشار اقتصادی سفارت کبرای آنکشور مقیم کابل امضاء گردید پروژه باصرف یك ملیون ودوصدوسه هزارو نهصدو شصت ودوروبل از گریدت اتحاد شوروی تمویل میگردد .

مطالعات این پروژه درنیمه دوم سالجاری آغاز گردیده یکنیم سال رادر بر خواهدگرفت که باستفاده ازنتیجه مطالعات کار پروژه همزمان دوام خواهد یافت .

بتأسی ازپروگرام های انکشافی دولت وبه مقصد استفاده موثرازمنابع آب وخاك قسمت سفلای دریای کوکچه این پروژه رو یدست گرفته شده است .

احداث بند آبگردان واتصال انهار موجوده ارجی ونوآباد جدید بمنظور رسانیدن آب کافی ومنظم برای یکصدو شصت هزار جریب زمین موجوده بادرنظر داشت انکشاف مزید زمین

های جدید ساحه آینده وهمچنان آبیاری‌ساحه راست دریای کوکچه توسط واترپمپ اهداف شصت هزارجریب زمین اراضی جدید سمت عمله این پروژه راتشکیل میدهد *

## قرار دادتو رید یازده هزار تن شکر از اتحادی آلمان

**۱۲ سرطان ۱۳۵۴:**

قرار داد تورید یازده هزار تن شکـــر از جمهوریت اتحادی آلمان به افغانستان درکابل عقد شد .

قرارداد زارئیس انحصارات دولتی ونماینده کمپنی ویست سوکر جمهوریت اتحادی آلمان امضاء نمودند .

بموجب این قرار داد حمل شکر متذکره ازجمهوریت اتحادی آلمان به افغانستان تادو ماه آینده صورت میگیرد .

بـا امضا ء ایـن قرار داد از شـروع سال تا کنون قرار داد تورید چـهـل وشش هزارو ششصد تن شکر با کمپنی های خارجی عقد گردیده است .

## قرار داد سروی مکمل خط آهـــن بین افغانستان وفرانسه

**۱۲ سرطان ۱۳۵۴**

قرار داد مطالعات ساختمان خط آهن ازکابل الی کندهار ، هرات واسلام قلعه وخطـــوط فر عی آن بین وزارت فـواید عـامه وکمپنی سو فرا بل فرانسوی در کـابـل

**انجنیر غوث الدین متین معین وزارت فوایدعامه‌وبناغلی ماتسیو هنگام امضای قرار داد مطالعات اعمار خط آهن کابل واسلام قلعه.**



عقد شد .

قرار داد راانجنیر غوث الدین متین معین وزارت فواید عامه وبناغلی مـاتسیو رئیس کمپنی مذکور امضاء نمودند .

بموجب این قرار داد کمپنی سوفرایـل فرانسوی که یك موسسه مختلط دولتـي و خصوصی فرانسه میباشد مطالعات احداث خط آهن کابل کندهار هرات اسلام قلعه وخطوط فرعی آن رادر دومرحله انجام خواهد داد .

مرحله اول که مطالعات مقدماتی محسوب میشود در ظرف چهارماه بعداز امضای قرارداد تکمیل میشود ومرحله دوم که شامل مطالعات مکمل انجنیری ودیزاین خط عمومی وخطـوط فرعی است درمدت ١٤ ماه دیگر انجام خواهد یافت .

مصارف مطالعات که به چهار ملیون وصدو پنجاه هزار دالر بالغ میگرددازامداد بلاعوض ایران تمویل میشود .

## عقد قرار داد سروی فابر یکـه چرمگری هرات

١٢ سرطان ١٣٥٤:

قرارداد سروي جیالوجی وهایدرولوجی و طرح نقشه هاي ساختمانی وماشینری فابریکه چرمگری هرات بین وزارت معادن وصنایـع و یك مـو سسه چکو سلوا کیا عـقـد گردید .

قرار داد راانجنیر محمدهاشم توفیقی رئیس صنایع وزارت معادن وصنایع وبناغلی‌شویدا مستشار تجارتی سفارت کبرای چکوسلواکیا امضاء نمودند .

بموجب این قرارداد طرح نقشه و سروی جیالوجی وها یدرولوجی‌فابریکه چرمگری‌هرات که ساختمان‌آن ازکریدت حکومت چکوسلواکیا درنظراست توسط موسسه مذکور تاسه ماه آینده صورت گرفته و نتیجه آن بـه وزارت معادن وصنایع ارائه میگردد .

دافغانستان کالنۍ اداره هغو ټولو کسانوته دزړه له کومې کوروداني وائی، چه ددغې کالنۍ دمضامينو په برابرولو، طباعتي اونورو چاروکښي يې صميمانه همکـاري کـړي اوزيارئی ايستلی دی .

«يادداشت ضروری»

نقشه های ولايات از ا تلس افغـــانستان نشريه احصائيه مرکزی استفاده شده وصرف بمنظو ر تعيين ساحات سرويهای احصائيوی وواحد های اداری کشورترسيم گرديده است .
ازنظرسرحدات سياسی افغانستان اعتبارندارد. (اداره)

دافغانستان کالنۍ اداره هغو ټولو کسانوته دزړه له کومی کوروداني وائی، چه ددغی کالنۍ دمضامینو په برابرولو، طباعتی اونورو چاروکښی یی صمیمانه همکاری کړی اوزیارئی ایستلی دی .

«یادداشت ضروری»

نقشه های ولایات از ا تلس افغـــانستان نشریه احصائیه مرکزی استفاده شده وصرف بمنظو ر تعیین ساحات سرویهای احصائیوی وواحد های اداری کشور ترسیم گردیده است .
ازنظر سرحدات سیاسی افغانستان اعتبارندارد. (اداره)